# یا

# تناقضات المقلدین

تالیف

الشیخ ابی محمد امین الله البشاوری حفظه الله

بیرون کنج گیټ منګل مارکیټ پیښور

**د کتاب نوم**

تحفه المناظر

**مؤلف**

فضیله الشیخ ابو محمد امین الله حفظه الله

**موضوع**

د مقلدینو تناقضات او دلچسپ تحقیقونه

**کپوزنگ**

ابو زهیر سیف الله

**اخراج**

ابو سلمان حضرت محمد غفر له۔

**سنه طباعت**

۱۵/ شعبان المعظم ۱٤۲۸، الموافق : ۲۸/اگست ۲۰۰۷ء

**خورونکی**

**مکتبه محمدیه**

منگل مارکیټ بیرون گنج گیټ پیښور

# بسم الله الرحمن الرحیم

إن الحمد لله نحمدهٗ ونستعینه ونستغفره ونعوذ بالله من شرور انفسنا ومن سیئات اعمالنا من یهده الله فلا مضل له ومن یضلل فلا هادی لهٗ وأشهد أن لا إلٰه إلا الله وحدهٗ لا شریک لهٗ وأشهد أن محمّداً عبدهٗ ورسولهٗ.

**أما بعد** : دا یوه مهمه رساله ده په نوم د « تحفة المناظر » یا « د فقهائے احنافو دلچسپ تحقیقونه » دا په دے وجه اولیکلے شوه چه ذب عن سنة ابی القاسم ﷺ وشی۔ یعنی دفاع د سنت نبوی نه وشی او خرافات او بے ځایه خبرے چه په دین کښے داخلے کړے شوی دی چه هغه رد شی۔ او طلاب العلم او عوام مسلمانان په بصیرت شی او گمراه کن خبرو نه بچ شی۔ بتوفیق الله تعالیٰ او د جاهلانو د بے ځایه اعتراضونو نه خلاص شی۔

**سبب د تالیف** : د مقلدینو بے ځایه اعتراضونه هر وخت رالیږل او زمونږ ساده لوح مسلمانان په شك کښے اچول وو۔ او بل د منظور مینگل صاحب کتاب وو په نوم د ((تحفة المناظر)) چه د کراچۍ دوستانو مطالبه کړے وه د هغے د بعضے خرافاتو رد۔

ددے رسالے **خصوصیات** دادی :

(۱) حواله پیش کول سره د بیان د صفحے نه ۔

(۲) اصلی کتابونو ته رجوع کړے شویده۔ که په دے کښے یوه حواله چا غلطه ثابته کړه نو انعام به ورکړے شی۔ هاؤ، د چهاپ په

وجه اختلاف د صفحاتو راتلے شی۔
(۳) په آسانه پښتو ژبه کښے لیکلے شویده۔
(٤) تحقیق نه پس لیکلے شویده۔
(٥) مشتمله ده په (٤٠) تحقیقونو باندے تقریبا۔
(٦) د بدو او فاحش الفاظو نه خالی ده ، صرف علمی تحقیقونه دی په کښے۔

(۷) بل دا چه د تعصب نه خالی ده، صرف د الله تعالیٰ او د هغه د رسول ﷺ د اطاعت په نیت لیکلے شویده۔ چه عوام الناس سره د سنتِ نبوی ﷺ مینه پیدا شی او د بے ځایه کتابونو د ګډوډو خبرونه خلاص شی۔ چه په نوم د (فقه) یا د اصول فقه لیکل شوی دی، یا د متاخرینو دیوبندیانو ګمراه کن کتابونه دی، لکه د اوکاړوی (صاحب خرافات) شو، یا د مولوی منظور مینګل صاحب تحفة المناظر، یا تجلیاتِ صفدر، یا اثبات التقلید د مولوی سرفراز صاحب، یا د تقلید شرعی حیثیت د عثمانی صاحب، یا الطامة الکبریٰ د کوهستانی، یا الصاخة الکبرٰی د خلیفه، یا داسے نور د خرافاتو کتابونه شو چه ددے د خرافاتو نه د خلاصیدو دپاره دا رساله اولیکلے شوه۔

دارنګه د جاهلانو د هر وخت د مناظری چیلنجونو په جواب کښے دا رساله د هر طالب علم بلکه د امی دپاره کافی ده۔ ان شاء الله۔ تاسو ټول د مقلدینو چه حقیقی اهلِ بدعت دی په دے رسالے سره مقابله کولے شئ ان شاء الله۔ ځکه حقائق ئے بیان کړی دی او د

هغوئ دروغ او خرافات تاسو ته په ګوته کوی۔ یو سمجدار انسان دِے په فکر او غور ولولی نو خبره به ورته په ډاګه شی۔
او د تقلید رد بعضے خلقو ته معمولی خبره ښکاری او حال داچه په تقلید باندے د دین اسلام ډیره بیخګندی شویده، تحریفات شوی دی، ډلے پیدا شوی دی ، د حق نه خلق آوړیدلی دی۔ د اسلام اصلی رُخ بدل کړے شویدے، لکه د فقه السنه مقدمه اوګوره (ص : ۲) د تقلید ډیر نقصانات په کتاب [ حقیقة التقلید] کښے اوګوره چه زما تالیف دے۔ والله المستعان۔

## د کتاب طرز او طریقه :

د احنافو مقلدینو متضاد خبرو په باره د تقلید کښے رانقل کول چه قاری ته خپله پته ولږیږی چه دا خو رد الأحناف على الأحناف دے۔ اوکه مناظره کښے مقلدین یا په یو کتاب کښے څه خبره پیش کړی د تقلید د اثبات دپاره نو ته د هغے متضاد خبره پیش کولے شے، د هغوئ د کتابونو نه نو د عوئ به ئے هیڅ کله نه ثابتیږی، نو مقلدین په خپلو کتابونو وهل دی (کالباحث عن حتفه بظلفه) مثال به شی۔
دارنګه کله کله لږه تبصره به ورسره زمونږ هم ملګرے وی۔
اکثر نقل مونږ د احنافو د کتابونو نه کړے دے د نورو محققینو اقوال مو غالبا نه دی راوړی، ځکه چه هغه نور کتابونو کښے شته

دلته زمونږ رد الأحناف على الأحناف غرض دے، یا ضرب المقلدین بسیف المقلدین مراد دے۔

بل په خبره کښے مونږ کله اختصار کړے دے ځکه واضحه وی لږ سوچ سره حل کیږی۔ وس به راشو او هغه تحقیقونه به اوګورو چه دا مقلدین څرنګه تحقیق کوی ؟ او په خبرو کښے ئے څومره تناقض او تضاد او خرافات دی۔ او دا مقلدین د کتاب او سنت او اقوال د صحابه کرام او د اجماع هیڅ پرواه نه لری الا ما وافق تقلید هم۔ که د تقلید د دوی خلاف هر څه راشی نو د هغے هیڅ پرواه نه کوی۔ دا راتلونکے مسئلے د هغے شاهد عیان دے۔ فتدبر۔

## (۱) - اول تحقیق :

دادے چه مقلدین په وخت د مناظره کښے په تقلید باندے د حکم لږولو نه انکار کوی یعنی واجب ورته نه وائی او د مقلدینو په ډیرو کتابونو کښے ورته واجب وئیلی دی ۔

او کله وائی : تقلید جهالت دے، او ضلالت دے او بدعت دے ۔ نو دا څومره عجیب تحقیق دے د دوئ ؟ اوګوره لاندے حواله جات :

(۱) – قال ابن نجیم فی البحر الرائق (۱۹۵/۵) باب الجزیة : نعم نفس المؤمن تمیل الی قول المخالف (یعنی فی مسألة قتل الذمی بسب النبی ﷺ) ولکن اتباعنا للمذهب واجب۔

مطلب دا چه د ائمه حدیث مذهب په دے کښے مسئله کښے (چه ذمی که زمونږ پیغمبر ته کنځل اوکړی نو قتلولے به شی) د

مؤمن نفس ورته مائله کيږی، ليکن مونږ باندے د خپل مذهب حنفی اتباع او تقليد واجب دے۔
نو تقليد ئے واجب کړلو او د ايمان مخالفت ئے وکړلو، ته فکر وکړه !
(۲) – وقال المولوی محمود الحسن الديوبندی فی تقرير الترمذی ص : ٣٦ : والحق والانصاف ان الترجيح للشافعی فی هذه المسالة ونحن مقلدون يجب علينا تقليد امامنا ابی حنيفة.

**محمود الحسن** صاحب وائی چه حق او انصاف دادے چه په مسئله د خيارِ مجلس کښے ترجيح امام شافعی لره ده ليکن مونږ مقلدين يو په مونږ د امام ابو حنيفهؒ تقليد واجب دے۔
اے مسلمانه ! سوچ وکړه داڅه دی ؟
وائی مونږ حق او انصاف نه منو څکه مقلدين يو !
(۳) – وقال المولوی اشرف علی التهانوی فی امداد الفتاوی (٤/٥٦٤) : وجوب تقليد شخصی وبطلان تلفيق تقرير بالا سے کالشمس فی کبد السماء واضح ہوگیا۔
نو اوګوره د تقليد شخصی يعنی د يو ملا (امام) تقليد واجب ګنړی او بيا په وخت د بحث او مناظره کښے وائی (تقليد العلماء لازم) نو تقليد شخصی د وجوب قول نشی ليکلے اونه دا خپله دعویٰ جوړوی ؟
(٤) – وقال محمود الحسن فی رسالته (سوالاتِ غير مقلدين ص : ٦٧) : آپ ہم سے وجوب تقليد کے دليل کے طالب ہے، ہم آپ سے وجوب اتباع محمد ﷺ ووجوب اتباع قرآنی کے سند کے طالب ہیں الخ۔
نو اوګوره د تقليد د وجوب قائل دی۔ او دا لا په کښے بل بکواس هم کوی چه اهلِ حديثو ته وائی چه د قرآن او حديث په

اتباع باندے تاسو سره څه سند او دلیل دے ؟ داسے خبره کوی لکه کافران !!

(٥) – قال فی الدر المختار (٤/٣٣٥) قضی من لیس مجتهدا کحنفیة زماننا بخلاف مذهبه عامدا لا ینفذ اتفاقا و کذا ناسیا عندهما.

قال الشافعی : فاما المقلد فانما و لاه لیحکم بمذهب ابی حنیفة فلا یملك المخالفة فیکون معزولاً بالنسبة الی ذلك الحکم.

نو اوګوره د امام ابو حنیفهؒ مذهب داسے لازم او ضروری ګڼړی که څوك په بل مذهب یا په حدیث باندے فیصله وکړی نو فیصله به ئے نافذه نه وی د دوئ په نیز باندے ـ

(٦) – وقال المولوی منظور مینګل فی تحفة المناظر ص (١٠٠) :
*تقلید شخصی میں احناف کا دعویٰ: ہمارا دعویٰ یہ ہے کہ تقلید شخصی (شخص معین کی پیروی) مسائل غیر منصوص علیہا اور مسائل منصوصہ متعارض فیہا کے دفع تعارض میں واجب لغیرہ کے درجے میں ہے۔*

نو اوګوره د دیوبندیانو مناظر اسلام ورته واجب لغیره اووئیلو او په مسائل غیر منصوص علیها او متعارض فیها کښے ـ او حال دادے چه احناف خو د کتاب الطهارة نه تر کتاب الوصایا پورے مقلدین دی، او د احادیثو نه جوابونه کوی۔ بهر حال د دغه خبرے تحقیق ځائے بل دے۔ دلته دا مقصد دے چه د وجوب تقلید شخصی قائل دیؒ یعنی صرف د امام ابو حنیفهؒ تقلید واجب ګڼړی په ځان باندے او ددے دعوت کوی۔

(٧) – وقال ابو بکر الجصاص فی احکام القرآن (٢/٢١٥) :

ومنها ان العامی علیه تقلید العلماء فی احکام الحوادث۔

منظور مینګل صاحب داسے عنوان ورکړے دے په تحفة المناظر ص (۱۱۹) کښے : عامی پر تقلید علماء واجب ہے۔

(۸) بیا ئے د تفسیر کبیر نه نقل کړیدے (۱۰/۲۰۰) : ان العامی یجب علیه تقلید العلماء فی احکام الحوادث۔

په دے عباراتو کښے تقلید شخصی نشته، او تقلید نه مراد د هغوئ د علماؤ ژوندو نه تپوس کول دی۔ (ولکنهم لا یعلمون) زمونږ مقصد دادے چه دوئ د وجوب تقلید شخصی قائل دی اګرکه دلائل د مطلق تقلید پیش کوی او هغه دلائل هم دلائل نه دی۔

(۹) – وقال المولوی منظور مینګل نقلا عن القرطبی (۱۱/۲٤۱) سورة الأنبیاء : لم یختلف العلماء ان العامة علیها تقلید علمائها وانهم المراد بقوله عز وجل : فاسئلوا اهل الذکر الخ.

منظور صاحب داسے عنوان ورکړے : غیر مجتہد کے لئے تقلید سے مفر نہیں۔

یعنی تقلید غیر مجتهد دپاره ضروری دے او خلاصیدل ترے نشته۔

(۱۰) – وفی رد المحتار (۱/٤۹) : یحل الافتاء بقول الامام بل یجب وان لم یعلم من این قال ؟

د امام ابو حنیفهؒ په قول فتویٰ ورکول جائز دی بلکه واجب دی اګرکه د هغه دلیل معلوم نه وی مونږ ته۔ (دا یهودیت نه دے څه ؟)

نو د حوالجاتو نه معلومه شوه : چه تقلید شخصی واجب دے

یا واجب لغیره دے او خاصکر د امام صاحبؒ تقلید واجب دے۔ او عوامو باندے تقلید د علماؤ واجب دے اوکه دلیل مخالف راشی هم تقلید د امام صاجب واجب دے او دلیل پریخودل پکار دی۔

## ﴿ تناقض ﴾

بیا همدغه احناف مقلدین لیکی په خپلو کتابونو کښے چه تقلید صحیح نه دے ، جهالت دے، ضلالت دے، او بدعت دے، او آفت دے۔ لکه ته په لاندے حوالو باندے ښه سوچ وکړه، سرسری پے مه تیریږه۔

(١) – قال عبد العلی محمد بن نظام الدین فی فواتح الرحموت شرح مسلم الثبوت علی هامش المستصفی (٢/٤٠٦) : اذ لا واجب الا ما اوجبه الله تعالیٰ والحکم له ولم یوجب علی احد ان یتمذهب بمذهب رجل من الائمة فایجابه تشریع شرع جدید الخ۔

ددے عبارت نه صفا معلومیږی چه تقلید الله تعالیٰ په هیچا باندے نه دے واجب کړے، نه د امام ابو حنیفهؒ، نه د امام مالكؒ او نه د امام احمدؒ او نه د امام شافعیؒ ۔نو تقلید ته واجب وئیل د ځانه نوے شریعت جوړول دی۔ داخو مره واضحه خبره ده۔

(٢) – وقال ملاجیون فی نور الأنوار باب السنة قبیل باب الاجماع ص (٢١٩) : واما التابعی فان ظهرت فتواه فی زمن الصحابة کشریح کان مثلهم عند البعض وهو الأصح، فیجب تقلیده وان لم تظهر فتواه ولم یزاحمهم فی الرأی کان مثل سائر الائمة : لا یصح تقلیده.

یعنی د تابعی فتویٰ په زمانه د صحابه کرامو کښے ښکاره نه

وه نو د عام علماؤ پشان حیثیت لری چه تقلید ئے صحیح نه دے۔
اوګوره د صحابی په هغے کښے اختلاف دے (د احنافو په نیز) او د تابعی تقلید صحیح نه دے۔ نو څرنګه تقلید د مقلدینو واجب شو۔ لږ شان فکر وکړه۔
او امام ابو حنیفهؒ خو هم تابعی دے (علی قول) نو د هغه تقلید څرنګه واجب شو؟

(۳) دارنګه عبارت په تلویح توضیح (۳۷/۲) (مکتبه فاروقیه) کښے دی:
واما التابعی فلا تقلید له مطلقا فی ظاهر الروایة.
د تابعی تقلید نشته (هر قِسم تابعی چه وی) په ظاهر الروایت کښے (د احنافو)۔

(٤) – دارنګه نسمات الأسحار شرح شرح المنار للشامی ص (۲۰۸) کښے هم شته بعینهٖ د غه رنګه عبارت لکه وائی:
واما التابعی فان ظهرت فتواه فی زمن الصحابة کشریح کان مثلهم ای الصحابة فی وجوب التقلید عند البعض وهو الروایة النادرة عن ابی حنیفهؒ وهو الصحیح وظاهر الروایة لا۔ قال ابن نجیم: ویجب الاعتماد علی ظاهر الروایة وان لم تظهر فتواه کان کسائر الأئمة۔ یعنی لا یجب تقلیده۔
په ظاهر الروایت کښے د امام ابو حنیفهؒ نه نقل دی چه د تابعی تقلید نشته اګرکه دده فتویٰ په زمانه د صحابه کرامو کښے ښکاره شوے وی۔ ابن نجیمؒ وائی: په دے روایت اعتماد پکار دے۔ اوکه د

تابعي فتویٰ په زمانه د صحابه کرامو – رضی الله عنهم – کښې نه وی ښکاره یعنی (روسته راغلے وی) نو بیا خو د نورو مفتیانو پشان حکم لری چه تقلید ئے نشته دے۔

(٥) دارنګه په الحسامی وشرحه النامی کښې دی (ص : ۱۹۲) :

واما التابعی المجتهد یجوز تقلیده عند بعض مشائخنا خلافا لبعض ثم قال : وعن ابی حنیفة فیه روایتان : احداهما انه قال : لا قلدهم رجال اجتهدوا ونحن رجال نجتهد. وهذا هو الظاهر من مذهبه والثانیة : ما نقل فی النوادر انه قال : اقلدهم ۔

نو اوګوره : د تابعي تقلید د امام ابو حنیفهؒ په قول کښې نشته د هغوئ رائے داده چه د تابعي تقلید نشته۔ نو څرنګه واجب شو تقلید د امام ابو حنیفهؒ ؟

٦ – وفی رد المحتار للشامی (۱/۳۳) :

ولو التزم مذهبا معینا کأبی حنیفة والشافعی قیل : یلزمه و قیل : لا یلزمه ، وهو الأصح.

که څوك په یو مذهب پسے روان شو لکه مذهب د ابو حنیفهؒ یا شافعيؒ (مثلا) نو بعضے (نامعلومه کسان) وائی چه دا مذهب پرے لازم دے اوبعضے وائی : لازم نه دی په دے مذهب باندے تلل۔ او همدا خبره ډیره صحیح ده۔

نو دے خبرے ته خپله سوچ وکړه چه آیا ددے نه پس تقلید واجب ګنړل هم جائز دی ؟ او دا تصریح د احنافو خپله ده۔

۷ – وقال الطحاوی رحمه الله :

أو کل ما قال به ابو حنیفة أقول به وهل یقلد الا عصبی اوغبی.

(لسان المیزان : ۱/۲۸۰)۔

امام طحاویؒ ته ابو عبید بن جرثرمه اوؤئیل په یو، مسئله کښې چه ته خو د ابو حنیفهؒ مقلد ماته ښکاره کیدلې۔ او دلته دې خلاف وکړو، نو هغه اوؤئیل : آیا زه به د ابو حنیفهؒ هره خبره اخلم څه ؟ تقلید خو د متعصب سړی کار دې، یا د غبیانو خلقو کار دې۔
نو ددې نه مثال جوړ شو په مصر کښې چه « وهل یقلد الا عصبی او غبی »۔
نو اوګوره : تقلید امام طحاویؒ د متعصبینو او غبیانو عمل وګرزولو۔ نو آیا بیا هم واجب دې ؟

۸ – وفی المبسوط للسرخسی (۱/۲۸) :
قال محمد بن الحسن الشیبانیؒ : و لو جاز التقلید کان من مضی من قبل ابی حنیفة مثل الحسن البصری و ابراهیم النخعی احری ان یقلدوا۔

که چرته تقلید جائز وې نو د ابو حنیفهؒ نه مخکښې چه کوم علماء تیر شوی دی لکه حسن بصریؒ، ابراهیم نخعیؒ شو، د هغوئ تقلید به ډیر لائق وې د ابو حنیفهؒ د تقلید نه۔
نو اوګوره : امام محمدؒ د عدم جواز د تقلید قائل دې۔ چه تقلید بالکل جائز نه دې د هیچا۔ ته خپله مبسوط اوګوره چه دا خبره درته ښکاره شی۔ نو څرنګ د امام ابو حنیفهؒ تقلید واجب شو ؟

۹ – وفی اصول الفقه الاسلامی للدکتور وهبة الزحیلی (۲/۱۱۳۷) :
فلو التزم مذهبا معیناً کمذهب ابی حنیفة و الشافعی او غیرهما

لا يلزمه الاستمرار بل يجوز له الانتقال كليا منه الى مذهب آخر ولو بعد العمل اذ لا واجب الا ما اوجبه اللّٰه ورسوله وقد التزم بشئ لم يلزمه اللّٰه ولا رسوله فان اللّٰه تعالىٰ لم يوجب عليه اتباع مذهب معين وليس التزامه لمذهب نذرا عليه حتى يجب الوفاء به وانما اوجب اللّٰه اتباع العلماءِ من غير تخصيص.

حاصل داچه : كه يو سړے يو مذهب په ځان لازم كړى لكه د ابو حنيفهؒ يا د شافعيؒ يا د يو بل امام مذهب نو په دے مذهب باندے باقى پاتے كيدل لازم نه دى بلكه ددے مذهب نه بل مذهب ته آوړيدل جائز دى اگركه ډيره موده په دے مذهب باندے ئے عمل كړے هم وى۔ ځكه واجب خو هغه وى چه الله تعالىٰ او د هغه رسول (ﷺ) واجب كړے وى او په يو مذهب پورے نختل خو الله تعالىٰ او رسول (ﷺ) نه دى واجب كړى۔

دارنگه د يو مذهب پسے روانيدل خو څه نذر نه دے چه وفاء په لازم وى بلكه د عامو علماؤ نه استفاده پكار ده۔

نو اوگوره : تقليد چا واجب كړو؟

١٠ – شاه اسماعيل شهيدؒ په ايضاح الحق الصريح كښے ليكلى لكه امداد الفتاوى د اشرف على تهانوى صاحب (٥٦٦/٤) كښے هم دى : دارنگه د شاه صاحبؒ بل كتاب (بدعت كياهے ص : ١٢٥، ١٢٧) كښے ليكى :

وجوب تقليد شخص متعين از ائمہ مجتهدين مثلِ تحديد كلمہ تهليل باوضاع مخصوصہ از اعداد وضربات وجلسات وتحديد ماء كثير بعشر فى عشر وترويج مسائل قياسيہ وكشفيہ ..... همہ از قبيلِ

بدعت حقیقیہ است ۔ وآنچہ در مقام عذر آن میگویند ہر چند کہ این امور محدث است اما مشتمل بر مصلحتی از مصالح دینیہ است یا اصل آن در شرع ثابت است اگر چہ خصوصیت مذکورہ محدث باشد پس مجرد این عذر امور مذکورہ را از حدِ بدعت خارج نمی گرداند الخ۔

دا عبارت مفصلا اوگوره که تحقیق دے خوښ وی ډیر مفید عبارت دے او علمی دے۔

نو اوگوره شاه صاحب (چه دیوبندیان ئے خپل دیوبندی گنړی) فرمائی چه تقلید شخصی بدعتِ حقیقی دے۔

نو بیا ئے لیکلی دی چه د ټولو علماؤ مذاهب داسے مثال لری لکه دکان د عطار او پنساری۔ فرمائی ص (۱۲۷) :

بلکہ ان فقہی مذاہب اور صوفی طریقوں کو عطار اور پنساری کی دکانوں کی طرح سمجھنا چاہیئے کہ جب کسی چیز کی ضرورت پڑی نوان میں سے کسی بھی دکان سے جا کر لے لی جائے اور اپنے آپ کو صرف محمدی فوج کا سپاہی سمجھنا چاہیے الخ۔

دا هم اوگوره ډیر مفید عبارت دے اوگد دے هلته ئے مطالعه کړه۔
مقصد دا چه دیوبندیانو لیکلی دی چه تقلید شخصی بدعت دے۔

۱۱ – وقال فی مسلم الثبوت و شرحه علی هامش المستصفی (۲/٤۰٤) :

وعن ائمتنا : لا یحل لأحد ان یفتی بقولنا ما لم یعلم من أین قلنا ؟

زمونږ امامانو فرمائیلی دی چه هیچا له جائز نه دی چه زمونږ په قول فتویٰ ورکړی تر څ چه ورته معلوم نشی چه مونږ دا فتویٰ د کوم ځایه ورکړے ده۔ یعنی زمونږ دلیل ونه پیژنی۔

نو تقلید به څرنگ واجب شی چه د امام د قول دلیل سړے

معلوم کړی ؟ همدا عبارت په شرح عين العلم لعلی القاریٔ کښې اوګوره ص (۲٤) طبع مکتبه قديمي۔

۱۲ – وقال اشرف علی التهانویؒ فی تذکرة الرشيد (۱/۱۳۱) :

مثلاً تقلید شخصی کہ عوام میں شائع ہورہی ہے اور وہ اسکو علماء عملاً اشد ضروری سمجھتے ہیں کہ تارکین تقلید سے گوکہ اسکے تمام عقائد موافق کتاب وسنت کے ہوں اس قدر بغض ونفرت رکھتے ہیں کہ تارکینِ صلاۃ فُساق وفجار سے بھی نہیں رکھتے۔ اور خواص کا عمل وفتویٰ وجوب اسکا مؤید ہے گوخود انکو علی سبیل الفرض اتنا غلو نہ ہو اور دلیل ثبوت اس کی یہ مشہور ہے کہ ترکِ تقلید سے مخاصمت و منازعت ہوتی ہے جوکہ ممنوع ہے۔ سو مؤدی الی الممنوع ہوگا۔ پس اس ضد واجب ہوگی۔ مگر دیکھا جاتا ہے کہ بوجہ اختلاف آراء علماء وکثرتِ روایات مذاہب واحد معین کے مقلدین میں بھی عوام کیا خواص میں مخاصمت ومنازعت واقع ہے۔ او غیر مقلدین میں بھی اتفاق واتحاد پایا جاتا ہے۔ غرض اتفاق واختلاف دونوں جگہ ہے اور مفاسد کا ترتب یہ کہ اکثر مقلدین عوام بلکہ خواص اس قدر جامد ہوتے ہیں کہ اگر قول مجتہد کیخلاف کوئی آیت یا حدیث کان میں پڑتی ہے اُنکی قلب میں انشراح وانبساط نہیں رہتا بلکہ اول استنکار قلب میں پیدا ہوتا ہے پھر تاویل کی فکر ہوتی ہے خواہ کتنی ہی بعید ہو اور خواہ دوسری دلیل قوی اسکے معارض ہو بلکہ مجتہد کی دلیل اس مسئلہ میں بجز قیاس کے کچھ بھی نہ ہو بلکہ خود اپنے دِل میں اس تاویل کی وقعت نہ ہو۔ مگر نصرتِ مذہب کے لیے تاویل ضروری سمجھتے ہیں دِل یہ نہیں مانتا کہ قولِ مجتہد کو چھوڑ کر حدیث صحیح صریح پر عمل کرلیں۔ بعض سنن مختلف فیہا مثلاً آمین بالجھر وغیرہ پر حرب وضرب کی نوبت آجاتی ہے اور قرونِ ثلاثہ میں اسکا شیوع بھی نہ ہوا تھا بلکہ کیفما اتفق جس سے چاہا مسئلہ دریافت کرلیا اگر چہ اس امر پر اجماع نقل کیا گیا ہے کہ مذاہب اربعہ کو چھوڑ کر مذہب خامس مستحدث کرنا جائز نہیں یعنی جو مسئلہ چاروں مذہبوں کے خلاف ہو اس پر عمل جائز نہیں کہ حق دائر ومنحصر ان چار میں ہیں مگر اس پر بھی کوئی دلیل نہیں کیونکہ اہلِ ظاھر ہر زمانہ میں رہے۔ اور یہ بھی نہیں کہ سب اہلِ ہواء ہی ہوں وہ

اس اتفاق سے علیحدہ رہے۔ دوسرے اگر اجماع ثابت بھی ہو جاوے مگر تقلید شخصی پر تو کبھی اجماع بھی نہ ہوا۔

نو ددے عبارت نه معلومه شوه چه تقلید ضروری شے نه دے اونه په تقلید شخصی باندے چرته اجماع شته اونه شوے ده۔ او اهلِ حدیث هره زمانه کښے موجود وو۔ او بعضے مقلدین دومره غلو او زیاتے کوی چه صحیح حدیث مقابل کښے صرف په قیاس کلك پاتے کیږی او قصدا او عمدا د مذهب د نصرت دپاره په صحیح حدیث کښے تاویلات کوی!

نو اوګوره اشرف علی صاحبؒ هم د وجوبِ تقلید شخصی قائل نه دے۔ چه د دیوبندیانو مشر دے د هغه دغه عبارت مطالعه کړه اګرکه دغه عبارت کښے بعضے غلطے خبرے هم شته چه وس د هغے رد نشو بیانولے۔ لیکن فی الجمله ډیر ښه عبارت دے۔

۱۳ – وقال علی القاری فی شرح عین العلم (طبع مکتبة القدس کانسی روڈ کوئیته) (۱/٤٠٤) فی باب الصحبة قبیل باب الصمت و آفات اللسان فی مسئلة اکل الضب : ومن المعلوم ان الله سبحانه ما کلف احداً ان یکون حنفیا او مالکیا اوشافعیا او حنبلیا بل کلفهم ان یعملوا – وفی الأصل ان یعلموا – بالکتاب والسنة ان کانوا علماء وان یقلدوا العلماء اذا کانوا من الجهلاء۔ اقول : والمراد بالتقلید سؤال اهل الذکر هنا۔

ملا علی قاری رحمه الله فرمائیلی دی په شرح د عین العلم کښے چه دا خبره معلومه ده چه الله تعالیٰ هیڅوك په دے نه دے

مکلف کړے چه حنفي یا مالکي یا شافعي یا حنبلي دے جوړ شي بلکه په ټولو باندے ئے د کتاب او سنت عمل لازم کړ دے که علماء وی (نو خپله دے د قرآن او حدیث نه استفاده وکړی) او که جاهلان وی نو د علماؤ نه دے تپوس وکړی۔ (کوم چه ژوندی علماء دی) ځکه د مړی نه جاهل سړی تپوس نشی کولے نه د ذات د هغه نه او نه د کتاب د هغه نه۔

نو سوچ وکړه تقلید د ابو حنیفهؒ شافعیؒ وغیره څرنګه واجب شو ؟ او چا واجب کړو ؟ او دلیل د وجوب ئے څه دے ؟

د ملا علی قاریؒ خبره آیا تاته غلطه ښکاری او که نه په دے کښے هم څه تاویل کوئ ؟ لکه ستاسو عادت تاویل دے په هره ښه خبره کښے !!

۱٤ – وقال ثناء الله پانی پتی فی تفسیره تفسیر المظهری (۲/۲۵۹) سورة آل عمران قوله تعالیٰ : ﴿ ولا یتخذ بعضنا بعضها اربابا من دون الله: فان اهل السنة و الجماعة قد افترقوا بعد القرون الثلاثة او الأربعة علی اربعة مذاهب.

فرمائی : اهل السنت والجماعت مخکښے یوه ډله وه او د درے یا څلورو پیړو نه پس په مذهبونو کښے تقسیم شول۔

نو ته فکر اوکړه چه دا څلور مذهبه وروسته زمانی پیداوار دے نو څرنګه ددے تقلید واجب شو او چا واجب کړو ؟

۱۵ – وقال ولی الله الدهلوی فی حجة الله البالغة (۱/۱۵۲) : اعلم ان الناس قبل المائة الرابعة لم یکونوا مجتمعین علی التقلید

الخالص علی مذهب واحد بعينه .

د ثلور سوه کالو نه مخکښې خلق په يو مذهب د يو عالم راجمع نه وو، بلکه کوم عالم به چه ورته پوهه ښکاره شو د هغه نه به خلقو تپوسونه کول الخ۔

نو تقليد ځرنګه واجب شو خاصکر تقليد شخصي د امام ابو حنيفهؒ لکه دا زمونږ ياران احناف ديوبنديان چه قائل دی، او په دې مناظرې هم کوی، لږ د خپلو مشورانو کتابونه خو دې اوګوری۔

۱٦ – وقال شاه عبد العزيز فی تفسير عزيزی طبع دهلی ص ۱۳۸ فی تفسير قوله تعالیٰ : ﴿ فلا تجعلوا اندادا ﴾ :

*درین جا دانست چنانچہ عبادت غیر خدا (اللہ) شرک است اطاعت غیر او تعالیٰ نیز بالاستقلال کفر است معنیٰ اطاعت غیر بالاستقلال آنست کہ اورا در مبلغ احکام نادانستہ البتہ تقلید او در گردن انداز دو اورا لازم شارد باوجود ظهور مخالفت او با حکم او تعالیٰ دست از اتباع بر ندارد و این هم نوع است از اتخاذ انداد کہ در آیت کریمہ ﴿ اتخذوا احبارهم ورهبانهم اربابا من دون الله ﴾ الآیہ (داخل است)۔*

مطلب دا چه عبادت د غير الله کفر او شرك دې دارنګه طاعت مستقله د يو سړی يا يو ملا کول هم کفر دې ۔ د طاعت مستقله مطلب دادی چه د يو سړی تقليد کول اوهغه په ځان لازم ګنړل اوبيا ورته پته ولګيږی چه قرآن او حديث په بل طرف دی بيا هم دغه تقليد کښې اخته دې دا يو نوع شرك دې چه په ﴿اتخذوا احبارهم ﴾ کښې داخل دې۔

زه وايم : وسنی مقلدين هم دا قسم تقليد کوی غالبا ۔

تقليد واجب ګنړی اګرکه قرآن او حديث د دغه امام د قول

خلاف راشی دا پریدی او تقلید نه پریدی ۔ فتدبر!

۱۷– وقال ابن الهمام فی فتح القدیر (٦/ ٣٦٠) باب اداب القاضی : ونقله علی القاری فی شرح عین العلم ۔ وجوب تقلید مجتهد لاحجة علیه لا من جهة الشریعة ولا من جهة العقل» .

امام ابن الهمامؒ او علی القاریؒ وائی : چه د مجتهد تقلید واجبوالی باندے هیڅ دلیل نشته نه په شرع کښ او نه په عقل کښ"۔ دا ډیر مهم عبارت دے تاسو مطالعه کړئ پدغه صفحه او باب کښ ۔ دارنګه شاه صاحب عقد الجید آخر کښ راوړے (۱٦٥) ۔

نو بیا تقلید چا واجب کړو؟ ۔

۱۸ – وقال الشاه اسماعیل فی ایضاح الحق الصریح ص(۳۳) : ثم لیت شعری کیف یجوز التزام شخص معین مع تمکن الرجوع الی الروایات المنقولة عن النبی ﷺ الصریحة علی خلاف قول الامام المقلد فان لم یترك قول امامة ففیه شائبة من الشرك ۔

د یو عالم تقلید څرنګ لازم شی او حال دا دے چه احادیث صحیحه موجود دی او د هغے نه مسئله اخستل آسان دی او دغه روایات د مجتهد د قول خلاف هم دی او بیائے یو سړے تقلید کوی (ددغه امام) نو (دا یو قسم شرك دے) او شائبه د شرك ده په کښ ۔

نو تقلید شخصی باندے شاه صاحب دا قسم سخت رد اوکړو که څوك پو هیږی ؟ او زمونږ دور کښ احادیث ټول میدان ته راوتلی دی ۔

۱۹– وقال ثناء الله رحمه الله فی تفسیر المظهری (۲/ ۲٥۹)

فمن تعصب لواحد معين غير الرسول ﷺ ويرىٰ ان قوله هو الصواب الذى يجب اتباعه دون الائمة الآخرين فهو ضال جاهل ۔

**فرمائی : څوك چه د يو شخص دپاره تعصب كوی سوی د رسول الله ﷺ نه او د هغه قول هميشه حق ګنړی او اتباع او تقليد واجب ګنړی او د نورو ائمه اتباع نه كوی دا ګمراه دی او جاهل دی ۔**

**نو اوګوره آيا دا صفت مقلدينو وسنو كښ موجود ندے څه ؟، ښكاره پكښ موجود دے ۔**

۲۰ – وفی نصب الراية (۲۱۹/۱) «فالمقلد ذهل والمقلد جهل»۔

**د چا چه تقليد شوی دے هغه غافل شوے دے او مقلِد جهالت كړے دے، نو تقليد ته جهالت وئيلے شويدے نو څرنګ به واجب شی ۔**

۲۱ – وفی البناية شرح الهداية للعينی (۳۱۷/۱) «وآفة كل شیء من التقليد» ۔

**د هر شی آفت د تقليد په وجه وی ۔**

**نو تقليد خپله هم آفت دے او د نور شيانو دپاره هم آفت دے خاصكر د دين او سنت نبوی آفت دے ۔**

**نو آفت به څرنګ واجب شی ؟ ۔**

۲۲ – وفی مجموعة الرسائل للشامی (۳۲) وابن الهمام بلغ رتبة الاجتهاد وكذلك نفس العلامة قاسم من اهل تلك الكتيبة فانه قال فی اول رسالته المسماة رفع الاشتباه عن مسئلة المياه : لما منع علماؤنا رضی الله عنهم من كان له اهلية النظر من محض تقليدهم علی ما

رواه الشيخ الامام العالم العلامة ابو اسحاق ابراهيم بن يوسف قال حدثنا ابو يوسف عن ابی حنيفة رحمه الله تعالىٰ انه قال لا يحل لاحد ان يفتی بقولنا ما لم يعرف من اين قلناه، تتبعت مأخذهم وحصلت منها بحمد الله على الكثير ولم اقنع بتقليد ما فی صحف كثير من المصنفين الخ وقال فی رسالة اخرىٰ وانی والحمد لله لأقول كما قال الطحاوی لابن حربويه لا يقلد الا عصبی او غبی الخ ۔

۲۳ – وفی حاشية البخاری للسهارنفوری الديوبندی سورة يوسف (۲/٦٧٩) وقال بعضهم ان البخاری تبع ابا عبيدة فلحقه آفة التقليد ۔

**نو اوګوره تقليد ته ئے آفت وئيلے دے چه بخاری يوه مسئله کښې تقليد اوکړو نو په آفت کښې پريوتو نو څوك چه ټول دين کښې تقليد کوی هغه به څومره آفت زده وی والعياذ بالله ۔**

**نو اوس چه کوم حنفی ملا مناظره کوی او دعویٰ وليکی چه تقليد شخصی د امام ابوحنيفه واجب دے نو ته به دا حوالجات ور وړاندے کړے نو د هغه دعویٰ به باطله شی او باطله ده ۔**

**او د قرآن او سنت دلائل خو ډير دی په بطلان د دغه دعویٰ ليکن دوی په خپله توره وال پکار دی څکه چه پدے مقلدينو قرآن او سنت او آثار الصحابه رضی الله عنهم تاثير نه کوی !! ۔**

۲٤ – وقال ابن ابی العز الحنفی فی الاتباع ص (۳٤) ولم يقل احد من العلماء انه يجب او يشرع التزام قول شخص معين فی كل ما مه ، بسحه غىر رسول الله ﷺ بل قال الشافعی رحمه الله

اجمع المسلمون على ان من استبانت له سنة من رسول الله ﷺ لايحل له من ان يدعها لقول احد وانظر اعلام الموقعين (۳٦١/٢) وايقاظ همم اولى الابصار (٦٨) ۔

وقال ابن ابى العز ايضا فى (٧٩) فمن تعصب لواحد معين غير النبى ﷺ كمالك وابى حنيفة والشافعى واحمد ورأى ان قول هذا هو الصواب الذى ينبغى اتباعه دون قول الائمة الباقين فهو جاهل ضال وان اعتقد انه يجب على الناس اتباعه دون غيره من هؤلاء الائمة فانه يخشى عليه، فان الأمة قد اجتمعت على انه لايجب طاعة احد فى كل شىء الا رسول الله ﷺ بل غاية ما يقال انه ينبغى او يسوغ او يجب على العامى ان يقلد واحداً من الائمة من غير تعيين زيد وعمرو الخ ۔ ( والمراد بالتقليد هنا سوال العالم ليوافق باقى اقوالهم) ۔**نو اوګوره ستاسو دا تقليد شخصى د امام ابوحنيفهؒ چا واجب کړو دا اجماع خلاف کوئ دا ولے ؟** ۔

## (۲) - دویمه مسئله او تحقیق :

دا دے چه فقه حنفى کښ او اصول فقه حنفى کښ ئے ليکلى دى چه تقليد د صحابى رضى الله عنه شته او د هغه خبره منل لازم دى بلکه اجتهادى مسئله د صحابى منل لازم دى او بيا

روسته وائی ندی لازم او د صحابی تقلید نشته او د صحابی ﷺ د قول اتباع گمراهی ده لکه ته لاندے حوالجات تفصیلا مطالعه کړه او خپله تحقیق اوکړه۔

(١) - قال ملاجيون فى نور الانوار (٢١٩ - ٢١٨) ونحوه فى التلويح والتوضيح (٢/٣٧) والحسامى (٢٩٢) فصل فى تقليد الصحابى : يجب اجماعاً فيما شاع فسكتوا مسلمين ولا يجب اجماعاً فيما ثبت الخلاف بينهم واختلف فى غيرهما فعند الشافعى رحمه الله لايجب لانه لما لم يرفعه لا يحمل على السماع وفى الاجتهاد هم وسائر المجتهدين سواء۔

وعند ابى سعيد البردعى يجب لقوله اصحابى كالنجوم ولأن اكثر اقوالهم مسموع من حضرة الرسالة وان اجتهدوا فرأيهم اصوب لانهم شاهدوا موارد النصوص ولتقدمهم فى الدين وبركة صحبة النبى عليه السلام وكونهم فى خير القرون وعند الكرخى يجب فيما لا يدرك بالقياس لانه لا وجه له الا السماع او الكذب والثانى منتف، لا فيما يدرك (بالقياس) لان القول بالرأى منهم مشهور المجتهد يخطئ ويصيب الخ واللفظ للتلويح۔

وفى نور الانوار ومتنه (٢١٧) وقد اتفق عمل اصحابنا بالتقليد فيما لا يعقل بالقياس واختلف عملهم فى غيره اى عمل اصحابنا فى غير ما لا يدرك بالقياس وهو ما يدرك بالقياس فان بعضهم يعملون بالقياس وبعضهم يعملون بقول الصحابى الخ۔

مطلب دا دے چه د صحابی تقلید واجب دے په هغه مسائلو

کښې چه مدرك بالقياس نه وی او که مدرك بالقياس وو بيا بعضِ احناف په قياس عمل کوی او بعض د صحابی په وينا باندے او د صحابی د تقليد دپاره ئے ډير وجوهات بيان کړل ـ

(۲) – وفی بذل المجهود لخليل احمد السهارنفوری (۱/۱۵) وتنظيم الاشتات (۱/۱٤۳) والصحابی اولیٰ ان يتبع من غيره .ـ

د صحابی ﷺ اتباع ډيره بهتره ده د غير صحابی نه ـ

(۳) – وفی رد المحتار للشامی باب الجمعة (۱/۵۵۰) والحاصل ان قول الصحابی حجة يجب تقليده عندنا اذا لم ينفه شیء آخر من السنة .

د صحابی قول حجت دے تقليد واجب دے چه کله د حديث خلاف نه وی نو اوګوره دلته قول د صحابی حجت ګنړی او تقليد واجب ګنړی ـ

(٤) – وفی قواعد علوم الحديث لظفر احمد العثمانی (۱۲۸) قول الصحابی المجتهد فيما لا نص فيه حجة عندنا يترك به القياس ـ

اوس راشه بير ته دا خبره تفصيلا رد کوی :

## تناقض

(۱) – بيا ليکی احناف لکه مسلم الثبوت آخری صفحه کښې دی (۲/٤۰۷) : اجمع المحققون علی منع العوام من تقليد اعيان الصحابةؓ فان اقوالهم قد يحتاج فی استخراج الحکم منها الی تنقير کما فی السنة ولا يقدر العوام عليه بل يجب عليهم اتباع الذين سبروا وبوبوا فهذَّبوا ونَقَّحُوا وجمعوا وفرَّقُوا وعلَّلُوا وفصَّلُوا الخ وعليه ابتنیٰ

ابن الصلاح منع تقليد غير الائمة الاربعة الخ ۔

د محققينو پدے اجماع ده چه عوام مسلمانان به د صحابه کرامو تقليد او اتباع نه کوی ځکه د هغوی خبری کله واضح نه وی لکه حديث چه څرنګ واضح ندی او عوام خلق خو بحث او تحقيق نشی کولے نو په دوی باندے صرف د هغه امامانو څلورو تقليد لازم دے کوم چه تحقيق کړے، بابونه ئے جوړ کړيدی تهذيب او تنقيح د عباراتو ئے کړيده جمع او تفريق او تفصيل ئے کړے او علل ئے راويستلی دی نو ځکه ابن الصلاح وائی چه صرف د څلورو امامانو تقليد شته او د نورو علماء او صحابه کرامو تقليد نشته ۔

نو اوګوره د صحابه کرامو اقوال مجمل او غير واضح ګنړی احاديث نبوی خو بالکل مشکل کړی دی او په هغے خو څوك نه پو هيږی په غير د امام صاحب نه ۔

بلـه دا واوره چه امام ابو حنيفه کوم کتاب ليکلے دے چه بابونه او تهذيب او تفصيل او علل ئے په کښ بيان کړی دی ؟ ؟ لږ سوچ خو هم پکار دے !! ۔

پدے عبارت کښ څو مره ظلمات دی دا د احنافو د اصولو کتاب دے او دا د دوی سره د سنت نبوی ﷺ او د صحابه کرامو رضی الله عنهم عظمت دے ؟ ۔

بلـه دا چه عوام لکه د صحابه کوامو په خبره نه پو هيږی دارنګه د ائمه اربعو په کتابونو هم نه پو هيږی ( کچرته وی ) نو څرنګ د صحابی تقليد جائز نشو او صرف د څلورو امامانو پرے

لازم شو ؟ او بیا د یو امام ؟ ۔

(۲) – قال تقی عثمانی فی درس ترمذی (۱/۱۹۱) نیز صحابی کا اجتہاد حجت نہیں۔ باب فی النهی عن استقبال القبله بغائط او بول

وقال فی (۱/۲۸۳) بحث میتات البحر : ایک صحابی کا اجتہاد ہو سکتا ہے جو حدیث مرفوع کے مقابلے میں حجت نہیں۔

(۳) – وفی نور الانوار (۱۹٤) بحث التعارض : القیاس مقدم علی اقوال الصحابة مطلقاً وقیل فی التطبیق ان اقوال الصحابة مقدمة فیما لا یدرك بالقیاس والقیاس مقدم فیما یدرك ( بالقیاس ) ۔

د احنافو قیاس به مخکښې وی د اقوال د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه نو دلته ئے حجت نه گنړی بلکه یو ځائے کښې هم نه منی کله چه د امام صاحب د قول خلاف راشی !! ۔

(٤) – وقال فی اعلاء السنن (۸/۲۱۷) فی مسألة ظفائر المیتة الجنائز – ان افعال الصحابة فی زمنه ﷺ لا حجة فیها ما لم یثبت علمه ﷺ بها وتقریره علیها الخ .

نو د صحابه کرامو افعال د نبی علیه السلام په زمانه کښې حجت او دلیل ندے نو روسته به څرنګ حجت شی او حال دا چه هغه زمانه د نزول د وحی ده ۔

(۵) – اعلاء السنن کښې وائی (۸/۲۱۷) همدغه صفحه کښې : ورأی الصحابة انما هو حجة فیما فعلوه من حیث الدین اذا کانوا مجتهدین، واذا لم یکونوا مجتهدین فلیس رأیهم حجة ویکون فتوی الفقهاء اهل الاجتهاد فیه حجة ۔ ملخصاً ۔

حاصل دا شو چه عام صحابه رضی الله عنهم دوی مجتهدین نه ګڼړی او د هغوی اقوال حجت ندی صرف د امام صاحب قول چه مجتهد دے هغه حجت دے ؟ ۔

(٦) – وفی الصاوی فی تفسیر سورة الکهف (۹/۳) والبصائر لحمد الله الداجوی (۵۳) :

ولا یجوز تقلید ما عدا المذاهب الاربعة ولو وافق قول الصحابة والحدیث الصحیح والآیة فالخارج من المذاهب الاربعة ضال مضل وربما اداه اذلك للکفر لان الاخذ بظاهر الکتاب والسنة من اصول الکفر ۔

د څلور مذهبونو نه ماسویٰ د بل چا تقلید جائز ندے اګرکه د صحابه کرامؓ قول سره موافق وی یا د صحیح حدیث سره یا د آیت سره نو د څلور مذهبونو نه بهر ضال او مضل دے او کله کله د کفر سبب جوړیږی ځکه د قرآن او حدیث په ظاهر باندے عمل کول د کفر اصول دی ۔

تاسو فکر اوکړئ ! دے کښ څومره بے ادبی ده !! ۔

(۷) – وفی تحفة المناظر لمنظور مینګل (۱٤۳) : اکابر صحابہ وغیرہ اگر چہ بعد والوں سے علم وعمل میں بہت آگے ہیں لیکن پھر بھی کسی کے لئے جائز نہیں کہ صحابہ کرام کے مذہب کو اپنائے کیونکہ صحابہ کرام کو اتنا موقع نہیں ملا کہ وہ اپنی مذہب کو مدون کرتے اور اس کے اصول وفروع کو محفوظ کرتے ، اسی وجہ سے صحابہ میں سے کسی بھی صحابی کا مذہب مدوّن ومنقح نہیں ، ہاں بعد میں آنے والے آئمہ امام مالک ، امام ابوحنیفہ وغیرہ نے اس کام کا بیڑا اٹھایا او با قاعدہ مذاہب مدوّن کر کے ان کے اصول وفروع کو محفوظ

*کیااومسائل کے وقوع سے پہلے ان کاحل تلاش کیا،،۔*

مونږ وایو امام ابو حنیفهؒ کوم اصول لیکلی دی او کوم ئے مدون کړیدی د صحابه کرامو مذهب ښه محفوظ دی په کتابونو د حدیث کښې او د امام صاحب یوه رساله هم نشته او نه ئے اصول شته که وی ، اوښایه ! ۔ او د فقه حنفی د اصولو کتابونه خو فخر الاسلام لیکلی دی چه اکثرئے غلط اصول جمع کړیدی ۔

تاسو فکر وکړئ دا صحابه کرامو رضی الله عنهم ته څومره گستاخانه نسبت دے کوم چه دوئ اوکړو چه د یو صحابیؓ اتباع اوس نشته نو مونږ وایو چه بیا تاسو خلفاء راشدین رضی الله عنهم څرنګ مخې ته مخې کوئ ؟ ته فکر اوکړه دا مقلدین څه وائی چه اهل حدیث خلفاء راشدین نه منی ؟ او اوگوره ټول صحابه کرام رضی الله عنهم ئے ناوزګار کړل چه علم دین ته وزګار نه وو ۔

امام صاحبؒ وزګار وو څکه بزاز نه وو بچی او ښځه ئے نه وه بیماری پرے نه راتله او نه جهاد له تلو او نه ئے عبادت کولو صرف بس قیاسونو ته ناست وو ! ۔

## ۳ - دریمه مسئله او تحقیق

د دوی دا دے :

د صحابه کرامو رضی الله عنهم په باره کښې د دغه متضاد خبرو سره کوم چه مخکښې بیانے شوے بیا احناف د صحابه کرامؓ څومره بی ادبی کوی دارنګه د نور علماؤ مجتهدینو او محققینو،

**کله چه د هغوی اثار او اقوال د مذهب حنفی خلاف راشی ۔**

**تاسو لږ سوچ سره لاندے مثالونه اوګورئ ! :**

۱ – قال فی نور الانوار (۱۷۹) بحث احوال الراوی وان عرف بالعدالة والضبط دون الفقه کانس وابی هریرة ان وافق حدیثه القیاس عمل به وان خالفه لم یترك الا للضرورة وهی انه لو عمل بالحدیث لانسد باب الرأی من کل وجه الخ ۔

۲ – وقال فی اصول الشاشی (بحث السنة) ص (۷۵) والقسم الثانی من الرواة هم المعروفون بالحفظ والعدالة دون الاجتهاد والفتوی کابی هریرة وانس بن مالك (وعقبة بن عامر) فاذا صحت روایة مثلهما عندك فان وافق الخبر القیاس فلا خفاء فی لزوم العمل به وان خالفه کان العمل بالقیاس اولیٰ ۔

۳ – وقال فی التلویح (۷/۲) حاصله : ان الراوی اما معروف بالروایة او مجهول اما المعروف فان کان معروفا بالفقه یقبل سواء وافق القیاس ام لا ؟ والا فاما ان یوافق قیاسا ما فیقبل اولا فیرد الخ ونحوه فی الحسامی وجمیع کتب اصول الفقه الحنفی۔

**حاصل دا دے که صحابی غیر فقیه وی او فقاهت نه لری نو که حدیث زمونږ (د احناف) د عقل او قیاس سره برابر وو خو قبلوو به ئے او که زمونږ د قیاس او عقل سره برابر نه وو نو عمل به په خپل قیاس کوو او حدیث د دغه صحابیؓ به غورځولے شی او عمل به پرے نه کوو ۔**

**دا خو قانون شو بیا وائی : ددے مثال ابو هریره او انس بن مالك**

او عقبه بن عامر رضی الله عنهم دی نور مثالونه هم شته لکه روستو راځی ۔

نو ته اوګوره څومره لوئی صحابه کرام جاهلان او ناپوهه ګنړی او خپل عقل او قیاس د هغوی د عقل او پوهے او تقویٰ نه اوچت ګنړی او دا خبره واضحه ده که څوك پوهیږی ؟ ۔

او مخکښں ئے اوونیل (تقلید الصحابی واجب) نو د کوم صحابی تقلید واجب دے ؟ ۔

وانظر قواعد التحدیث للقاسمی (۹۸) فی رد هذه الخرافة ۔

۲- دویم مثال د بے ادبیٔ دا دے :

قال فی نور الانوار ص (۱۸۰- ۱۸۱) وان کان مجهولاً ای فی روایة الحدیث والعدالة لا فی النسب کوابصة بن معبد وفاطمة بنت قیس الخ ۔

نو ددوی په نیز په صحابه کرامو کښں مجهول هم شته یعنی مجهول العدالة او مثال ئے د وابصه بن معبد او فاطمه بنت قیس رضی الله عنهما ورکړیدے دارنګه حسامی (٤٥) کښں وائی سلمة بن المحبق رضی الله عنه مجهول دے ۔

او حال دا دے چه د ټولو علماؤ اتفاق دے په دے باندے چه (الصحابة کلهم عدول فلا تضر جهالتهم ) لکه دا خبره په تدریب الراوی (۱/ ۲۱٤) کښں او قواعد التحدیث للقاسمی (۱۹۹) او شرح النخبه (۳۸) التقریب (۳) الباعث الحثیث (۲۷۳) ارواء الغلیل (۱/۱۲۷) (۲/ ۲٦۱) کښں تفصیلا اوګوره ۔

لیکن د دوی د مذهب خلاف حدیث چه راوړی یو صحابی نو هغه مجهول شی او بیا عدالت مجهول شی ؟ دا لا څه کوے تلویح کښ لیکی :

٤- قال فی التلویح (۲/ ۱۰) إلا ان الجزم بعدالة ( الصحابة ) مختص بمن اشتهر بذلك والباقون كسائر الناس فيهم عدول وغير عدول ۔

مطلب دا دے چه کوم صحابه کرام رضی الله عنهم چه مشهور دی په عدالت نو هغوی عدول ( عادلان ) دی او باقی تمام صحابه کرامؓ د عامو مسلمانانو پشان دی په دوئ کښ عادلان او غیر عادلان (یعنی فاسقان ) شته ۔

نو اوگوره عام صحابه کرامؓ کښ فاسقان گنړی ! دا څومره گستاخی ده د تفتازانی صاحب او دا حنفی دے ؟ ۔

٥- وفی التلویح (۲/ ۱٦) بحث السنة : وذكر فی المبسوط : ان القضاء بشاهد ويمين بدعة واول من قضى به معاوية، ثم قال ليس المراد ان ذلك امر ابتدعه معاوية فی الدين بناء على خطأه كالبغی فی الاسلام ومحاربة الامام وقتل الصحابة لانه ورد فيه الحديث الصحيح بل المراد انّه امر مبتدع لم يقع العمل به الى زمن معاوية الخ ۔

نو اوگوره معاویه رضی الله عنه ته باغی او محارب او د صحابه کرامو قاتل او مبتدع وئیلے دے نو آیا دا بے ادبی به بے ادبی نه وی څه ؟ او دا د صحابه کرامو عزت دے د مقلدینو احنافو سره کله چه د مذهب خلاف حدیث کوم صحابیؓ پیش کړی نو هغه

ته دا قسم نسبتونه کوی ۔

لږ غوروفکر پکار دے تا لره که د خپل دین غم درسره وی ۔

دغه شان خبره په مسلم الثبوت مع شرحه کښې هم شته (۳۹۰/۲) ۔

٦– وفی معانی الآثار للطحاوی (۲۰۳/۱) باب الوتر :

عن ابن عباسؓ انه قال فی بابة معاویة لما صلی برکعة واحدة قال لعکرمة : من این تری اخذها الحمار ۔

معاویه رضی الله عنه یو رکعت وتر وکړو او ابن عباسؓ د هغه په باره کښې اووئیل : چه دے حمار (خر) ته اوګوره چه دا عمل ئے د کوم ځائے نه اخستلے دے ۔

نو معاویهؓ ته خر وئیلے دے او حال دا چه دا روایت منکر دے او طحاوی پرے هیڅ کلام ندے کړے والتفصیل فی الدین الخالص (۵۵٦/۵) او احناف طحاوی کلك مقلد ګڼړی لکه تقریر بخاری د شیخ زکریا کښې اوګوره (۴۱/۱) امام طحاوی پکے حنفی ہے۔

۷– نور الانوار کښې لیکی : (۱۸۰) : معقل بن سنان اعرابی بوال علی عقبیه ۔

معقل بن سنان صحابی بانده چی دے په پوندو متیازے کونکے دے یعنی بے احتیاطه دے او جاهل دے لکه حاشیه د نور الانوار کښې لیکی ۔

او نور الانوار دا خبره علی رضی الله عنه ته منسوب کړیده چه هغه وئیلی دی چه معقل بن سنان (بوال علی عقبیه) دے لیکن

**ملا علي القاري په شرح د منار کښې وائی : ولم يصح ذلك عن علی**
رضى الله عنه كما فى حاشية نور الانوار (۱۸۰) ـ

**نو اوګوره بعض مقلدينو څومره بے ادبی اوکړه د صحابیؓ او دا د اصولو کتاب دے ؟ مدارسو کښې لوستل کيږی او څوك نشته چه رد پرے اوکړی ؟ـ**

۸– وفی جاء الحق لاحمد يار خان البريلوی الحنفی(۲/ ٦٤)
*ابوحمید الساعدی نہ فقیہ ہے اور نہ عالم اور نہ انہیں حضور کی زیادہ صحبت میسر ہوئی ـ*

**نو اوګوره ابو حميد الساعدی رضى الله عنه څومره جليل القدر صحابی دے او دا ظالم وائی : چه نه فقيه دے او نه عالم دے او نه د رسول الله ﷺ سره ورته زيات صحبت ميسر شويدے ـ**

وفی التقريب ابوحميد الساعدی صحابی مشهور واسمه المنذر بن سعد الخ ـ

وفی المرعاة (۳/ ۱۰) شهد احداً وما بعدها وعاش الى خلافة يزيد (٦۰) له ستة وعشرون حديثاً (فهو من اهل بيعة الرضوان وهو من اهل الجنة ـ وفی الاصابة (٤/٤٦) روى عنه ولد ولده سعد بن المنذر وجابر الصحابی وعباس بن سهل وعبد الملك بن سعيد وعمرو بن سليم وعروة ومحمد بن عمرو بن عطاء وغيرهم ـ

**نو اوګوره دومره ډير شاګردان لری نو څرنګ غير فقيه او بے علمه شو ؟ ليکن دا مقلدين سخت بے ادبه دی د صحابه کرامؓ څکه په امام صاحب مئين دی ـ**

۹– وفی جامع المسانيد (۱/ ۳۵۸) قال ابوحنيفة : قال ابراهيم

النخعي وائل بن حجر اعرابی وفی رواية : لا يعرف شرائع الاسلام، لم يصل مع النبی ﷺ صلاة قبلها قط فهو اعلم من عبد الله واصحابه حفظ ولم يحفظوا يعنی رفع اليدين عند الركوع ؟ ۔

**نو اوګوره وائل بن حجر هم اعرابی (بانډه چی جاهل) ګڼړی او بیا وائی : ده مخکښں ددے مونځ نه هیڅ کله د نبی علیه السلام سره مونځ ندے کړے ، ددے څه مطلب دے ؟ ۔**

**روسته خوئے ډیر مونځونه کړی دی کما فی اسد الغابه (۳۰۶/٤) روی عن النبی ﷺ احاديث وشهد مع علی صفين الخ وفی ابی داود : فرأيتهم يرفعون ايديهم الی صدورهم الخ ، هر صحابی اول او آخر لری لیکن ددے خلقو ورانے غرض دے صحابه کرامو باندے طعنونه دوی ته آسان دی ۔**

۱۰ – وفی اصول الشاشی بحث السنة (۷٦) روی عن علی بن ابی طالب انه قال كانت الرولة علی ثلاثة اقسام مؤمن مخلص صحب رسول الله ﷺ فعرف معنی كلامه واعرابی جاء من قبيلته فسمع بعض ما سمع ولم يعرف حقيقة كلام رسول الله ﷺ فرجع الی قبيلته فروی بغير لفظ رسول الله ﷺ فتغير المعنی وهو يظن ان المعنی لا يتفاوت ومنافق لم يعرف نفاقه فروی ما لم يسمع وافتری فسمع منه اناس فظنوه مؤمنا مخلصاً فرووا ذلك واشتهر بين الناس الخ ۔

**مطلب دا دے چه اصول الشاشی والا وائی : راویان صحابه درے قسمه دی (۱) مؤمنان مخلصین (۲) اعراب (بانډه چیان) چه د رسول الله ﷺ په مراد نه پو هیدل او غلط روایات نقل کولو والا**

وو (۳) دریم منافقان وو چه هغوی هم روایات نقل کړی دی او خلقو کښې مشهور شویدی ۔

نو تاسو سوچ وکړئ دا څومره دروغ دی چه اصول الشاشی والا وئیلی دی دا احادیثو د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو دشمنی په کښې پرته ده او دا خبره غلطه ده د یو څو وجوهاتو نه ۔

اولاً : ده نسبت ددې روایت علیؓ ته کړے او حال دا چه دا د علی رضی الله عنه نه چرته نقل ندی په کتابونو د مسلمانانو کښې بلکه دا روایت د شیعه ګانو په کتاب کښې نقل دی نهج البلاغه (۲۲۳)

او قواعد التحدیث کښې جمال الدین القاسمی راوړے دے (۱٦۲) او ډیر باطل روایت دے ۔

ثانیا : دا وائی : چه په دے صحابه کرامو کښې چه د احادیثو کوم راویان دی په هغوی کښې منافقان او اعراب جاهلان هم شته ۔ نو دا دروغ وائی : ځکه یو منافق نه هم حدیث نقل ندے هغوی خو الله تعالی جدا کړی وو لیمیز الله الخبیث من الطیب ددے خبرے بنه تفصیل زمونږ شیخ عبد السلام حفظه الله په کتاب ( انکار حدیث سے انکار قرآن تك (۱/۲۳۸) کښې اوګوره ۔

د منافقانو دوه سوه صفات هغوی د قرآن نه راویستلی دی چه هغے سره د مؤمن او منافق پوره تمییز شوے دے نو د منافق نه چا روایت نه دے نقل کړے ۔

ثالثا : د محدثینو ددے قاعدے چه الصحابة کلهم عدول فلا تضر جهالتهم ) څه مطلب دے ؟ کله چه هغوی کښې منافقان هم

دی او اعراب جاهلان هم دی بیا خو دا قاعده غلطه شوه ؟ ۔

رابعا : دا خبره د اصول الشاشی بعینه د پرویزیانو ده هغوی وائی : مونږ احادیث نبویه ځکه نه منو چه پته نشته چه دا صحابی دے او که منافق کوم چه د احادیثو نقل کونکی دی ۔

نو مبارك دِے شی د پرویزیانو چه اصول الشاشی او مقلدینو ورته لاره همواره کړه او اصول ( منکړت ) ئے ورته کیخودل دا اصول دی او که د احادیثو انکار دپاره د متاخرینو مقلدینو خو ساخته قاعدے جوړے کړی دی ؟ او دا کتابونه طالبانو ته ویل کیږی او هغوی ته ددے کتابونو غلطی قاعدے نه وریه گوته کیږی ۔ فالی الله المشتکیٰ ۔

## ۱۱ - یولسم مثال د بے ادبئ د مقلدینو د صحابه کرامو رضوان الله علیهم اجمعین :

قال فی الدر المختار ورد المحتار المعروف بالشامی (۱/۳۸) : واما سلمان الفارسی فهو وان كان افضل من ابی حنیفة من حیث الصحبة فلم یکن فی العلم والاجتهاد ونشر الدین وتدوین الفقه واحکامه کابی حنیفة ۔ قال فی الدر المختار والحاصل ان اباحنیفة النعمان من اعظم معجزات المصطفی بعد القرآن ۔

وائی : چه سلمان فارسی خو د صحبت په وجه د ابو حنیفه نه غوره دے لیکن سلمان فارسی په علم او اجتهاد او د دین په خوررلو

کښې او په مدون کولو د فقه کښې او احکامو کښې ابو حنیفهؒ ته نشي رسیدلے ۔

بیا وائی : ابو حنیفهؒ د قرآن نه بعد د نبی علیه السلام لویه معجزه ده ۔

نو ته فکر اوکړه ! سلمان فارسیؓ ئے په علم او اجتهاد او فقه او احکامو کښې د ابو حنیفه نه ښکته کړو او بیا ټول صحابه، تابعین او ائمه مجتهدین او محدثین ئے د رسول الله ﷺ معجزه نکړه صرف ابو حنیفه نه ئے د نبی علیه السلام معجزه جوړه کړه، نو صحابهؓ څه شو نور علماء محدثین څه شو ؟ ۔

دا څومره بے ادبی ده که څوك پو هیږی او څومره غلو ده که څوك پو هیږی ! ۔

دارنګه مونږ وایو چه امام ابو حنیفه کوم کتاب لیکلے دے چه په هغے کښې فقه مدون کړے ده ؟ یوه رساله خو وښایئ ! هسے په ګرد غبار پسے روان دی ؟ ۔

۱۲ - نور مثالونه د تخطئة الصحابة یعنی صحابه کرامؓ ته د غلط فهمئ او خطاګانو نسبتونه کول کله چه د دوی د مذهب خلاف حدیث راوړی ۔

لکه مبسوط د سرخسی (۱/۱۰۱) کښې لیکی :

فی مسألة مسح العمامة : و[illegible] بلالاً ( رضی الله عنه ) کان بعیداً ( یعنی عن رسول الله ﷺ ) فظن انه [illegible] مسح علی العمامة ملتحصاً ۔

مطلب دا چه بلال رضی الله عنه مسح په پټکی نقل کړیده د

نبی علیه السلام نه لیکن دا غلط شوے دے ځکه دا لرے ځائے کښې ولاړ وو او رسول الله ﷺ په سر مسح کوله لیکن دده گمان راغے چه رسول الله ﷺ په پټکی مسح اوکړه او بس بے احتیاطه او په گمان دا حدیث امت ته نقل کړو چه په پټکی مسح شته ۔

نو ته سوچ اوکړه صحابه کرامو رضی الله عنهم باندے څومره بد گمان لری دوی چه هغوی دومره بے احتیاطه خلق وو چه غلط روایات او بے تحقیقه روایات به ئے نقل کول ۔ دا خبره که چا د امام ابوحنیفهؒ په باره کښې اوکړه بیا خو آسمان راغورځیږی او دوی کله هم خپل امامانو ته د خطا نسبتونه ونکړو لکه روستو راځی ان شاء الله ۔

۱۳ – وفی الهدایة (۸۵/۱) وحاشیة الکنز (۸۱/۱) فی باب الاذان ۔ وکان ما رواه ابومحذورة رضی الله عنه تعلیماً فظنه ترجیعاً،، مطلب دا چه ابومحذوره رضی الله عنه اذان د ترجیع والا نقل کړے لکه صحیح مسلم (۱٦٥/۱) کښې راځی : صاحب الهدایه وائی : چه دا د ابومحذورهؓ خطائی ده نبی علیه السلام تعلیم ورکولو بار بار به ئے کلمات د اذان لوستل نو ده گمان اوکړو چه گنے د اذان کلمات نورلس (۱۹) دی ۔

نو اوگوره په ابومحذورهؓ څومره بد گمانه دی او حال دا چه اذان د ابومحذوره به د رسول الله ﷺ په زمانه کښې په مکه کښې نورلس (۱۹) کلماتو والا کیدو لکه د تحقیق ځائے الدین الخالص دے (۳٤۷/۳) ۔

۱٤ – وفی نور الانوار (۱۹۱) (مبحث الطعن یلحق الحدیث) لانه من الحوادث النادرة التی تحتمل الخفاء علی ابی موسیٰ الاشعری یعنی الوضوء بالقهقهة .

**مطلب دا چه د ابو موسیٰ اشعریؓ نه دا حدیث پټ پاتے شوے دے مونږ وایو دا خبره صحیح ده داسے کیدے شی لیکن تاسو کله د خپلو مشرانو باره کښ دا چرته اووئیل ؟ ۔**

۱٥ – وقال فی حاشیة الهدایة باب الشهادة (۲/۱٦۳) ابو حنیفة واصحابه سلفنا والصحابة والتابعون سلف لابی حنیفة.

**نو مطلب دا شو چه صحابه کرام او تابعین رضی الله عنهم خپل سلف نه ګنړی صرف ابو حنیفه او د هغه شاګردان د دوی سلف دی ۔ اے مسلمانانو ! لږ سوچ وکړئ ! ۔**

۱٦ – وفی البصائر لحمد اللّٰه الداجوی (٥۲) والصاوی (۳/۹) تفسیر سورة الکهف : ۔

ولایجوز تقلید ما عدا المذاهب الاربعة ولو وافق اقوال الصحابة الخ ۔ **مخکښ دا عبارت تیر شو چه د څلورو مذاهبو نه ما سویٰ د بل چا تقلید جائز نه دے اګرکه د صحابه کرامو رضی الله عنهم د قول موافق قول ولے نه وی ؟ نو اوګوره نه د خلفاء راشدینو او نه د نورو صحابه کرامؓ منی کله چه د ابو حنیفةؒ د قول خلاف قول راشی ۔**

۱۷ – وفی نور الانوار (۳۰۰) بحث الاهلیة، وجهل من خالف فی اجتهاده الکتاب کجهل الشافعی فی حل متروك التسمیة ثم قال : وکجهل الشافعی فی جواز القضاء بشاهد ویمین ۔

نـو اوګوره امام شافعی ته جاهل وائی او حال دا دے چه هغه په دغه مسئله کښ د صحیح حدیث تابع دے ۔
او کـه داسـے مسـئلـه کـښ یوامام په اجتهاد کښ خطاء شی نو دیتـه جهالـت نه وائی بلکه خطاء فی الاجتهاد ورته وئیل پکار دی خو دا ددویٔ د تریکنیٔ الفاظ دی ۔
۱۸ – وقـال التفتازانی الحنفی فی شرح العقائد (۱۱۷) وبعضهم اطـلـق الـلـعـن علیه ( یعنی علی یزید بن معاویة ) لما انه کفر حین امر بـقـتـل الـحسیـن ونـحن لا نتوقف فی شانه بل فی ایمانه لعنة الله علیه وعلی انصاره واعوانه ۔
تـفتـازانیؒ وائـی : یـزید ملعون دے او کافر شوے دے کله چه ده امـر اوکړو پـه قتل د حسینؓ مونږ دده په ایمان کښ شك نه کوو په ده باندے د الله لعنت دے او دده په ملګرو او مددګارانو باندے ۔
نـو اوګـوره یزید یو مسلمان سړے دے او دا حنفی ملا ورته کافر وائـی : او بلکه دده ټول مددګارانو باندے لعنت وائی او حال دا چه د هغه مددګاران اکثر صحابه کرام او تابعین وو ۔
نو دا څومره عدوان دے ؟ ۔
دارنـګه بزازیه کښ دی : عـلی هامش الهندیة (٣٤٤/٦) والحق ان یلعن یزید بناء علی اشتهار کفره .
۱۹ – وفـی تنظیم الاشتات شرح مشکاة (۹٦/۳) باب الجهاد امام اعظم کے اس بات کو بے ادب غیر مقلد شوکانی طعن او تشنیع کی ماتحت مسخ کر کے نقل کرکہا: ( وهذه حجة ضعیفة ) ای فی مسألة سهم الفارس والراجل ۔

نو اوګوره شوکانی رحمه الله صرف د امام صاحب يو ضعيف دليل ته ضعيف وئيلے دے نو دا مقلد ظالم ورته بے ادب مسخ شوے وائی او تحقيق ته ئے طعن او تشنيع وئيلے ده نو خپله د علماؤ څومره بے ادبی کوی ؟ ۔

٢٠ – وفی درس ترمذی (١٨٩/١) مسئله استدبار القبله : ابن عمر کوقصداً دیکھانہیں بلکہ اتفاقاً نظر پڑ گی ہوگی اوراس میں غلط فہمی کے امکانات بہت زیادہ ہیں ملخصاً۔

نو اوګوره ابن عمر رضی الله عنه ته د غلط فهمئ نسبت کوی او کله ئے هم امام صاحب ته د غلطئ نسبت اونکړو ته به وائے چه هغه ګنے مجتهد نه دے ځکه که هغه ئے مجتهد ګنړلے نو دا قانون ترے ولے هير شو المجتهد يخطئ ويصيب ۔

نو څومره جمود تقليدی دے پدے خلقو کښ ۔

٢١ – وفی المرقاة (١٦/٢) قال بعض الشراح من علمائنا ( الحنفية ) يحتمل انه مسح علی الناصية وسوی عمامته بيديه فحسب الراوی تسوية العمامة عند المسح مسحاً ۔

نو دلته مغيره بن شعبه صحابیؓ ته د خطائی او غلط فهمئ او بے احتياطئ نسبت کوی ۔

٢٢ – وفی تنظيم الاشتات (١٠٩/٢) جابر کےاجتہاد ہےاورحدیث میں خطاہواہے ۔ملخصا ۔

د ابو حنيفه دپاره جابرؓ هم خطاء کړو او حديث ئے هم وران کړو هلته لږه مطالعه اوکړه ۔

۲۳ - د کوثری حنفی کنځلی او ردی بدی اوګوره چه امام بخاری، ابن خزیمه، الدارمی، الدارقطنی، ابن ابی حاتم، ابن حبان، ابن تیمیه، ابن القیم او محمد بن عبد الوهاب او تقریبا درے سوه علماؤ - رحمهم الله - ته ئے د حنفیت د حفاظت دپاره ځومره کنځلی کړی دی ۔ تفصیل دپاره الماتریدیه د دکتور شمس الدین رحمه الله کتاب دے اوګوره (۴۹۱/۳) او کوثری دیوبندیان خپل مشرګنړی ۔ والله المستعان ۔

٢٤ - دا لا څه کوے درمختار کښ (۳۹/۱) لیکی : چه عیسی علیه السلام چه راشی نو په مذهب حنفی به فیصلے کوی ( الی ان یحکم بمذهبه عیسیٰ علیه السلام) نو د الله نبی ئے هم د ابو حنیفه صاحب مقلد کړو، دومره پرے میئین دی چه نبی علیه السلام ورته قربانه وی او دده متبع کوی ئے ۔

۲۵ - وفی الدر المختار (۱/٤٣)

فلعنة ربنا اعداد رمل علی من رد قول ابی حنیفة ۔

نو اوګوره امام شافعی، مالك، احمد، محمد ، ابو یوسف، بخاری، ترمذی او نور امامانو - رحمهم الله - ته ملعون وائی او لعنت پرے وائی ۔ دا څومره بے ادبی ده ۔

۲٦ - وفی اعلاء السنن (٤/٩٦) الجزء الثامن من باب اذا اجتمع العید والجمعة : ابن الزبیر و ابن عباس کانا صغیرین فلم یفهما مراد رسول الله ﷺ ولم یعرف ابن الزبیر عذر عمر ۔

فانظر هناك تریٰ عجیباً من [illegible]اقض وتخطئة الصحابة ۔

ظفر احمد عثمانی دیوبندی وائی : ابن الزبیر او ابن عباس واړه وو د رسول الله ﷺ په مراد پوهه نشول نو ځکه ئے غلط حدیث نقل کړو او ابن الزبیر خو د عمرؓ په عذر نه پوهیدو ـ

ته سوچ اوکړه دا څه دی ؟ کیدے شی دا به د صحابه کرامو ادب وی ؟ ـ

۲۷ – وفی الجرح والتعدیل للشیخ عبد العزیز بن عبد اللطیف (۹) وفتح المغیث (۱/۲۸۹) وادب القاضی (۱/۳۸۵) قال ابوحنیفة لا یقبل روایة الصحابیات والنساء الا اخبار عائشة وام سلمة ـ

د امام صاحب نه نقل دی چه د صحابیاتو زنانو روایات او احادیث قبول ندی صرف د عائشه او ام سلمه روایات به قبلیږی ـ دا نقل د امام صاحب نه ته اوګوره ؟ ـ

۲۸ – وفی التأنیب للکوثری کما فی التنکیل (۱/۱٦٧) – قال فی بابة الامام احمد رحمه الله : انه محدث غیر فقیه وانّی لغیر الفقیه اِبْدَاءُ رأیٍ فی فقه الفقهاء .

امام احمد هسے محدث وو لیکن فقیه ندے دده څه کار چه د فقهاؤ په فقه کښ رأی ورکوی ـ نو اوګوره دا ددوی د هغه څلورو امامانو نه د یو امام سره ادب دے ؟ ـ

۲۹ – وفی نظم الفرائد لملا حسن سنبهلی : خلفاء هذه الملة اربعة : ابن تیمیة وابن القیم والشوکانی فیقولون ثلاثة رابعهم کلبهم واذا انضم الیهم ابن حزم وداود الظاهری بان صاروا ستة ویقولون خمسة سادسهم کلبهم رجماً بالغیب وخاتم المکلبین مثله کمثل

الـكـلـب ان تـحـمـل عـليـه يلهث وان تتركه يلهث ...... نظم الفرائد (١٠٢) ۔

وقـال عبـد الـحـى الـلـكهـنـوى : وكـان الـحسن سنبهلى شديد التعصب على من لا يقلد الائمة ۔

٣٠ – وفـى شـذرات الـذهـب فى ترجمة جمال الدين الحنفى انه قـال من ينظر فى كتاب البخارى فهو زنديق وقال فى شذرات الذهب (٧/٤٠) وانبـاء الـغـمـر بـابناء العمر لابن حجر (٤/٣٤٨) وفى نسخة (١/٣٦٩) مـن نـظـر فى كتاب البخارى تزندق قاله يوسف بن موسى الملطى الحنفى ۔

**د امام بخارى كتاب كتل زنديق كيدل دى ۔ والعياذ بالله ۔**

٣١ – وفـى رسـالة ابن محمود النكت الظريفة فى ترجيح مذهب ابى حنيفة (٤٤) وكـانـت حـنفية بخارىٰ يسمون البخارى محمد بن اسماعيل القصاص ذكره صاحب المحيط .

**د بخارىٰ احنافو به امام بخارى هسې قصه ګو ګاڼه او قصه ګو به ئې ورته وايو سبحان الله ! ۔**

وانـظـر رد ابن ابى العز الحنفى فى رسالته الاتباع (٥٢) على هذه الخرافة ومدح البخارى وذم المتعصب ورد عليه ۔

**٣٢ – د كـوثـرى ردې بـدې صـحـابـه كـرامو پسې په التنكيل (١/١٧) كښې اوګوره ۔**

## (٤) - څلورمه مسئله او تحقيق دا دے :

چه مقلدين احناف ليکی چه مقلد انسان به قرآن او حديث اجماع او قياس ته رجوع نه کوی ځکه ده د خپل جهالت په وجه تقليد شروع کړے دے نو دا په غث او سمين نه پو هيږی نه بنی طرف د چپ نه جدا پيژنی نو دا به صرف تقليد د امام ابو حنيفه کوی او صرف د هغه په قول به فتوئ ورکوی ۔

او بيا مقلدين چه مناظره کوی يا د يوے مسئلے رد کوی نو ځان نه محققين جوړ کړی بلکه ائمه د جرح او تعديل بيا دوئ وی نو خپلو اصولو باندے نه چليږی کله چه ورته شوك اووائی : تقليد ولے کوئ ؟ نو وائی : مونږ په قرآن او حديث نه پو هيږو استنباط اجتهاد نشو کولے ځکه تقليد کوو او کله چه مناظره شی يا دو يوے مسئلے تحقيق شی بيا ځان پوره مشائخ عظام گنړی بلکه جامع المعقول والمنقول مناظر اسلام استاذ الحديث لقبونه ورکړے کيږی ۔ دا څومره عجيب تناقض دے !!۔

اوس اوگوره چه خپله اقرارئے د خپل جهالت کړے دے ۔

(١) – قال فی التلويح والتوضيح (١/٣٩) فی ابتداء الکتاب ؟ والادلة الاربعة انما يتوصل بها المجتهد لا المقلد فالدليل عنده قول المجتهد فالمقلد يقول هذا الحکم واقع عندی لانه ادی اليه رأی ابی حنيفة رحمه الله و کل ما أدی إليه رأيه فهو واقع عندی۔

دلائل اربعه باندے صرف مجتهد به عمل کوی مقلد به ئے نه کوی د مقلد دلیل صرف قول د مجتهد دے الخ ۔

(۲) – رشید احمد لدهیانوی صاحب لیکی په احسن الفتاوی کښں (۵۵/۳) *رجوع الی الحدیث مقلد کا وظیفہ نہیں معهذ ابرائے تسکین خاطر خام بقدر ضرورت تحریر ہے۔*

مطلب دا چه مقلد سړے به حدیث نه پیش کوی په یوه مسئله کښں بلکه صرف د امام قول به پیش کوی ۔

(۳) – وفی مسلم الثبوت مع شرحه فواتح الرحموت (۲/ ۴۰۰) قول المجتهد دلیل ( المقلد) و حجته التقلید العمل بقول الغیر من غیر حجة و المراد بالحجة حجة من الحجج الاربع و الا فقول المجتهد دلیل الخ .

وائی چه مقلد سړے به صرف د امام د قول پسے ورځی ځکه هغه ده دپاره حجت دے، کتاب، سنت، اجماع او قیاس ته به نه ځی ۔

(۴) – وفی ارشاد القاری لرشید احمد اللدهیانوی (۱/ ۴۱۲) شرح البخاری : *غرضیکہ یہ مسئلہ (طلوع الشمس) اب تک تشنہ تحقیق ہے معهذا ہمارا فتوی اور عمل قول امام رحمہ اللہ تعالی کے مطابق ہی رہیگا اسلئے کہ ہم امام رحمہ اللہ کے مقلد ہیں اور مقلد کیلئے قول امام حجت ہوتا ہے نہ کہ ادلہ اربعہ ان سے استدلال وظیفہ مجتہد ہے۔*

نو ته خپله دے عبارت کښں سوچ اوکړه چه وائی مقلد دپاره قول د امام حجت دے، قرآن او حدیث او اجماع او قیاس د هغه دلیل نه وی ځکه دا پدے څلورو دلائلو نه پو هیږی۔

مونږ وایو : چه نه پو هیږی بیا ولے قرآن او حدیث ته رامنډی

وهی په وقت د مناظره او تحقیق کښ ؟ ۔

(٥) –وفی ارشاد القاری شرح صحیح البخاری لرشید احمد المذکور (٢٨٨/١) فی رد البریلویة ) توسیع مجال کے خاطر اہل بدعت فقہ حنفی کو چھوڑ کر قرآن اور حدیث سے استدلال کرتے ہیں اور ارخاء العنان کیلئے ہمیں بھی یہ طرز قبول کرتے ہیں ورنہ مقلد کیلئے صرف قول امام ہی حجت ہوتا ہے ۔ عبارات فقہ چونکہ نا قابل تاویل ہے اسلئے اہل بدعت اس طرف آتے ہی گھبراتے ہیں اس پر لازم ہیں کہ یا تو فقہ حنفی کو فیصل تسلیم کریں ورنہ امام ابوحنیفہ کے تقلید کے دعویٰ کو چھوڑ دے اور غیر مقلد کا عام اعلان کریں ۔

دا طریقه بعینه د مقلدینو ده لکه عام بدعتیان هم دا کار کوی چه قرآن او حدیث پیش کوی د خپل باطل د ثابتولو دپاره ( د خپل کور شاهد ) ۔

(٦) وفی ضرب مؤمن اخبار جلد (٣) شماره (١٥) (٢١/تا٢٧ ذی الحجه (١٤١٩) مطابق (٩/تا ١٥) اپریل : ١٩٩٩) عوام کیلئے دلائل طلب کرنا جائز نہیں ۔

(٧) – وفی مسلم الثبوت وشرحه (١١/١) واما المقلد فمستنده قول مجتهده لا ظنه، ( ای المقلد ) ولا ظنه ( ای المجتهد الخ ) .

د مقلد دلیل او مستند صرف د مجتهد قول دے خپل گمان یا د مجتهد د گمان پسے به نه ځی ۔

(٨) – وفی مجموعة الرسائل (١٢) فی بیان طبقات الفقهاء وفی الدر المختار ورد المحتار (٥٢/١) السابعة طبقة المقلدین الذین لا یقدرون علی ما ذکر ولا یفرقون بین الغث والسمین ولا یمیزون

الشمال من اليمين بل يجمعون ما يجدون كحاطب ليل فالويل لمن قلدهم كل الويل، قال صاحب الدر المختار : واما نحن فعلينا اتباع ما رجحوه وما صححوه كما لو افتوا فى حياتهم الخ قال فى الشامية : (واما نحن اى اهل الطبقة السابعة )

نو عام مقلدين ددے زمانے په دے طبقه کښې داخل دی بلکه صاحب د درمختار هم وائی مونږ پدے کښې داخل یو ۔ نو دومره جاهلان دی چه غث او سمین او شمال او یمین نه پیژنی نو هلاك ډِے شی هغه څوك چه ددے مقلدینو پسے ورځی ۔

مونږ وایو : هلاك ډِے شی هغه مقلدین چه د شامی او درمختار او قاضی خان او عالمگیری وغیره نه فتوی ورکوی بغیر د تحقیق نه ۔

وانظر النافع الكبير لعبد الحى اللكهنوى (٥) المعروف بطبقات الفقهاء ص (٥) ۔

نو چه صاحب د درمختار د اومے طبقے دے نو اوسنی مقلدین خو هم ددے اوومے طبقے والا پسے روان دی شامی درمختار ولے د دوی مرکزی کتاب د فتویٰ ندے څه ؟ نو مونږ وایو : د اوسنو مقلدینو به څه حال وی چه دوی لا مقلدین د دغه مقلدینو دی نو چه مشران ئے یمین او شمال نه پیژنی نو دوی څوك دی ؟۔

تقلید سراسر جهالت دے او د جاهلانو پسے ورتلل دی لکه مخکښې عبارت ته خپله اوګوره او ځان پرے پوهه کړه ۔

(٩) – او علامه عبد الحی اللکهنوی په النافع الکبیر (٤، ٥)

کښې وائی : د فقهاءِ احنافو پنځه طبقات دی بیا ئے هغه ذکر کړیدی بیا فرمائی : والخامسة طبقة المقلدین القادرین علی التمییز بین الاقویٰ والقوی والضعیف وظاهر المذهب وظاهر الروایة والروایات النادرة کشمس الائمة محمد الکردری وجمال الدین الحصیری وحافظ الدین النسفی وغیرهم مثل اصحاب المتون المعتبرة من المتاخرین کصاحب المختار والمجمع وشأنهم ان لا ینقلوا فی کتبهم الاقوال المردودة والروایات الضعیفة وهذه طبقة هی ادنی طبقات المتفقهین واما الذین هم دون ذلك فانهم کانوا ناقصین عامین یلزمهم تقلید علماء عصرهم لا یحل لهم ان یفتوا الا بطریق الحکایة کذا ذکره الکفوی ایضا .

فرمائی : پنځمه طبقه د فقهاءِ احنافو هغه ده چه صرف د امام صاحب په روایاتو اجتهادیه کښې فرق د قوی او اقویٰ او ضعیف کولے شی او ظاهر الروایت د امام صاحب او غیر ظاهر الروایت د هغے پیژنی لکه محمد الکردری، حافظ الدین النسفی جمال الدین الحصیری شو او معتبرو فقهی متونو مصنفین شول دا ټولونه ادنی فقهاء احناف دی ۔

او ددے پنځمے طبقے نه ماسویٰ نور مقلدین خو ناقص دی عوام دی په هغوی خو د خپلے زمانے د علماؤ تقلید لازم دے هغوی دپاره جائز نه دی چه فتویٰ ورکړی مگر د مخکنی احنافو اقوال به رانقل کوی ۔

نو اوګوره اوسنی مقلدین په کومه طبقه کښې راغلل ؟ آیا دوی

مجتهدين شول ؟ او كه نه جاهلانو كښې ئے حساب كړل ـ

خپلو مشرانو تاسو ته جاهلان وئيلي دي لږ سوچ اوكړئ ! ـ

تاسو قرآن او حديث باندے نه پوهيږئ صرف د خپلو مشرانو اقوال بـه رانـقـل كـوئ او پـه هغے بـه فتوى وركوئ او يا بـه دغـه مذكوره اقوال غلط ګڼړى ليكلى به مونږ ته راكوئ ! ـ

نـو بـنـاء پـدے حـوالـه جاتـو اوسنى مقلدين د خپلو مشرانو په خوله باندے جاهلان دى نو دوى خو بالكل مناظرے نشى كولے چه پـه مـنـاظـره كـښې تـا ته قرآن او حديث پيش كړى ځكه دوى خو به صـرف د خپـلـو مشـرانو حوالے پيش كوى او كه دوى چرے مناظره كـښې د قـرآن يـا حـديـث يا اجماع نه حواله پيش كړى دا به د دوى د خپـلـوانـو مشـرانو مخالفت وى خو هميشه دپاره مقلدين او باطل پرست خلق د خپلو مشرانو تابعدار حلالونى نه وى ـ

(۱۰) – وفي رد المحتار (۱/۴۷) قال ابن الهمام : وقد استقر رأى الاصوليين على ان المفتى هو المجتهد فاما غير المجتهد ممن يحفظ اقـوال الـمـجتهد فليس بمفتٍ والواجب عليه اذا سئل ان يذكر اقوال الـمجتهد كالامام على وجه الحكاية فعرف ان ما يكون في زماننا من فتـوى الـمـوجـوديـن ليـس بـفتوى بل هو نقل كلام المفتي ليأخذ به الـمستـفتي وطريق نقله لذلك عن المجتهد احد امرين اما ان يكون له سـنـد فيـه او يـأخـذه مـن كتـاب معروف تداولته الايدى نحو كتب محمد بن الحسن ونحوها لانها بمنزلة الخبر المتواتر او المشهور ـ

نـو اوګـوره غيـر مـجتـهـد مـفتى نه وى او هغه به صرف د امام

صاحب اقوال ذکر کوی په طریقه د حکایت سره نو شامی او ابن الهمام وائی : زمونږ زمانه کښې مفتیان نشته بلکه صرف ناقلین د کلام د مفتی دی الخ دا خبره بعینه په فتح القدیر (۶/۲۶۰) او عقد الجید (۲۶۰) کښې هم شته ۔

او مونږ وایو د محمد بن الحسن کتابونه هم اوس ورك دی د هغې نه خو مزعوم مفتیان فتوې نه ورکوی ، مبسوط او زیادات سنم ورکړی دی احناف ئې هم نه چهاپ کوی ځکه بې فائدې کتابونه دی څوك ئې نه اخلی ۔

(۱۱) - بیا وائی : په (۳/۳۱۰) باب البغاة ) لاعبرة بقول غیر الفقهاء یعنی المجتهدین ۔

صرف د مجتهدینو قول له اعتبار دې د نورو مقلدینو اقوالو له هیڅ اعتبار نشته ۔

نو معلومه شوه چه د احنافو په اقرار سره دا نن صبا ټول مفتیان چه ځان ته وائی جاهلان دی او د دوی قول له هیڅ اعتبار نشته تر څو چه امام صاحب (کوم چه د دوی نبی دې) قول رانه وړی ۔

نو مقلد سړې به د نورو مقلدینو اقوال هم نه پیش کوی ځکه لاعبرة بقول غیر المجتهدین قانون دې د احنافو صرف قول د مجتهد به راوړی نو زه اوس دِې مقلدین په اثبات د تقلید باندې یو روایت د امام ابو حنیفهؒ نه راوړی که دوی ځان ته نران وائی ؟ ۔

او یا دِې په خپل مونځ کښې فرض او واجب او سنت او مستحب باندې د امام صاحب اقوال پیش کړی کنه ؟ نه ئې شی

پیش کولے ۔

معلومه شوه چه دوی مقلدین د مقلدینو دی تر څو چه د امام ابو حنیفه اقوال رانه وړی ( او د هغه قول هم حجت ندے د مسلمانانو په نیز) خلافا للمقلدین ۔

نو لږ سوچ وکړه دا څه شے شو ؟ ۔

او كالزجاج تخاله شيئا    وكل كاسر مكسور ۔

## (۵) - پنځمه مسئله او تحقیق

د امام ابو حنیفه او ابو یوسف نه نقل دی چه :

(۱) – لايحل لاحد ان يفتى بقولنا ما لم يعلم من اين قلنا ۔

اوګوره فواتح الرحموت ومسلم الثبوت (۲/ ٤٠٤) آخر سر د کتاب ۔

هیچا له جائز ندی چه زمونږ په قول فتویٰ ورکړی تر څو چه زمونږ دلیل ئے نه وی معلوم کړے ۔ دا عبارت په کتاب عقد الجید کښ هم شته حجة الله البالغة او مجموعة الرسائل کښ هم شته ۔

(۲) - **تناقض :**

او حال دا چه رد المحتار او شامی کښ لیکی : (٤٩/١) ونحوه فى (٣٠٢/٤) المقرر عندنا انه لا يفتى ويعمل الا بقول الامام الاعظم ولا يعدل عنه الى قولهما او قول احدهما او غيرهما الا لضرورة كمسألة الزراعة وان صرح المشائخ بان الفتوى على قولهما لانه

صاحب المذهب والامام المقدم، ومسئلة البحر عند الكلام على اوقات الصلاة وفيه من كتاب القضاء يحل الافتاء بقول الامام بل يجب وان لم يعلم من اين قال ؟ .

صرف د امام ابو حنيفة په قول به فتوى ورکړے کيږى او صرف په هغے باندے به عمل کيږى، د صاحبينو په خبره به هم عمل نه کيږى مگر چه سخت ضرورت راشى لکه د هقانى مسئله شوه اگرکه عام مشائخ (احناف) تصريح وکړى چه فتوى د صاحبينو په قول ده ځکه هغه صاحب المذهب دے او امام مقدم دے ۔ بيا وائى : د امام صاحب په قول فتوى حلاله ده بلکه واجب ده اگرکه دا پته هم نه وى چه د کوم ځائے نه ده دا مسئله وئيلے ده ؟ ۔

نو ته فکر اوکړه آيا دا يهوديت ندے څه ؟ ۔

﴿ اِتَّخَذُوۡا اَحۡبَارَهُمۡ وَرُهۡبَانَهُمۡ اَرۡبَابًا مِّنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ ﴾ آيا دوى دا امامان خپل ارباب جوړ نه کړل څه ؟ ۔

د امام صاحب په قول باندے فتوى چا واجب کړے ده ؟ دا ځان نه واجب مقررول آيا شرك ندے څه ؟ ۔

او بله دا چه د امام صاحب دغه خبره ( چه لايحل لاحد) هغه مو ولے شاته گوزار کړه ۔ نو مقلدين د شارع نه هم باغيان دى او د خپل امام نه هم باغيان شول ( والعياذ بالله ) ۔

(۳) – بيا ددے خلاف وائى : لکه رد المحتار (۱/ ٤۹) :

" وقد جعل العلماء ( الحنفية ) الفتوى على قول الامام الاعظم فى العبادات مطلقاً وهو الواقع بالاستقراء ما لم يكن عنه رواية كقول

المخالف كما فی طهارة الماء المستعمل والفتوی علی قول محمد فی جمیع مسائل ذوی الارحام والفتوی علی قول ابی یوسف فی القضاء والشهادات الخ .

نو دلته دوی تقلید د امام ابو حنیفه پریخوده او د صاحبینو مذهب اختیار کړو او تعصب ته اوګوره چه صرف دا درے امامان دوی ته ښکاری، د امت نور علماء نسیا منسیا شوی دی زما خیال دے چه هغوی به د کدو پانړے وئیلی وی په دین به نه پوهیدل !! ـ

(٤) – ددے بل مثال رد المحتار کښ لیکی : (٤٨/١) و (٣٠٢/٤) ویفتی بقول الامام علی الاطلاق ثم بقول الثانی ثم بقول الثالث ثم بقول زفر والحسن بن زیاد ـ

نو ګوره دلته ئے تقلید پریخودو او دارنګه تعصب ته اوګوره چه زفر او حسن بن زیاد پشان خلقو تقلید کوی او امام شافعی، مالك او احمد امام بخاری او داسے نور ائمه کبار رحمهم الله – څه شول ؟ آیا دا تعصب ندے ؟ آیا دا څان په زوره ګمراه کول ندی څه ؟ ـ

نو دے تعارض ته اوګوره چه کله وائی صرف د امام صاحب قول به منلے شی او د ابویوسف وغیره قول به نشی منلے او کله وائی د ابویوسف او محمد او زفر وغیره خبره به منلے شی نو د یو بل نه ندی خبر او غونداری ولی ؟ ـ

او دے لالچ ته اوګوره چه وائی : کله چه سخت ضرورت وی نو بیا به د امام صاحب قول پریخودے شی او د امام محمد قول به اخستے شی لکه د دهقانئ مسئله چه امام صاحب د دهقانی حرامه

ګنړی او امام ابویوسف او محمد ئے جائز ګنړی نو دوی وائی دلته سخت ضرورت دے نو فتوی په قول د صاحبینو ده، دلته مفاد خرابیږی پدے وجه وائی مذهب دِے خراب شی خو چه مفاد خراب نشی ۔ دا کوم انصاف دے ؟ ۔

دارنګه په مسئله د اجرت په عباداتو کښ ئے مذهب پریخوستے دے او د متأخرینو قول ئے اخستے دے د مفاد دپاره۔ فالی الله المشتکیٰ ۔

## (٦) - شپږمه مسئله او تحقیق :

د امام ابویوسف او محمد رحمهما الله تقلید کله احناف لازم ګنړی او کله ئے حرام ګنړی ۔

لکه (١) - په تفسیرات الاحمدی (٥٦٦) کښ لیکی : قد وقع الاجماع علی ان الاتباع انما یجوز للاربع فلا یجوز الاتباع لابی یوسف ومحمد وزفر وشمس الائمة .

ملاجیون وائی : پدے خبره اجماع ده ( خود ساخته) چه اتباع به صرف د څلورو امامانو کیږی ۔ او د ابویوسف او محمد او زفر او شمس الائمه اتباع جائز نده ۔

(٢) مخکښ تیر شو چه صاوی لیکی (٩/٣) سورة الکهف : ولا یجوز تقلید ماعدا المذاهب الاربعة ولو وافق قول الصحابة والحدیث الصحیح والآیة فالخارج عن المذاهب الاربعة ضال مضل وربما ادّاه ذلك للکفر لان الاخذ بظاهر الکتاب والسنة من اصول

الكفر ونحوه فی البصائر لحمد الله الداجوی (۵۲) ۔

د څلور مذهبونو نه ماسوی د بل هیڅا تقلید جائز ندے اګرکه د صحابی د قول یا د صحیح حدیث یا د آیت سره برابر وی ځکه د څلور مذهبونو نه چه څوك بهر شی هغه ګمراه دے او ګمراه کونکے دے الخ ۔

نو اوګوره د ابویوسف او محمد اتباع ګمراهی شوه او حال دا چه دوه حصے فقه حنفی د هغوی په اقوالو بناء ده تقریبا نو دا څومره ګډے وډے خبرے دی ؟ ۔

(۳) – اوس نزدے تیر شو چه رد المحتار کښ لیکی (۱/۴۹) :
والمقرر عندنا انه لا یفتی ولا یعمل الا بقول الامام الاعظم ولا یعدل عنه الی قولهما او قول احدهما او غیرهما الا للضرورة کمسألة الزراعة وان صرح المشائخ بان الفتویٰ علی قولهما الخ ۔

چه صرف د امام صاحب په قول به فتوی او عمل وی د صاحبینو په قول عمل نشته اګرکه مشائخ تصریح وکړی چه فتویٰ د صاحبینو په قول ده ځکه هغه خو صاحب المذهب دے او امام مقدم دے او د هغه نه د لیل تپوس هم نشته که د هر ځائے نه ئے خبره کړی وی د هغه خبره به منلے شی ۔

نو اوګوره ابویوسف او محمد اقوال ئے رد کړل بلکه د عام علماؤ اقوال هم رد شو ؟ ۔

(۴) – وفی الطحطاوی شرح الدر المختار (۴/۱۵۳) وهذه الطائفة الناجیة قد اجتمعت الیوم فی مذاهب اربعة وهم الحنفیون

والمالكيون والشافعيون والحنبليون رحمهم الله ومن كان خارجا من هذه الاربعة فى هذا الزمان فهو من اهل البدعة والنار ۔

**فرقه ناجيه صرف څلور مذاهب دى چه احناف، مالكيان، شافعيان او حنبليان دى او څوك چه ددے څلورو مذهبونو نه بهر وى پدے زمانه كښ (يعنى دده په زمانه كښ) نو دا مبتدع دے او جهنمى دے ۔**

**نو اوګوره عام علماؤ ته ئے مبتدعين او جهنميان اووئيل ؟ او ابويوسف او محمد هم د حنفيت نه خارج دى لكه مخكښ عباراتو نه معلومه شوه نو هغه به هم د دوى په زعم د اهل البدعت او اهل النار نه وى ؟ دا د دوى خبرے دى ؟ ۔**

## بيا احناف ليكى :

(۱) – لكه رد المحتار كښ دى : (۵۲/۱) – فى بيان طبقات الفقهاء ونحوه فى مجموعة الرسائل (۱۲) الثانية طبقة المجتهدين فى المذهب كابى يوسف ومحمد وسائر اصحاب ابى حنيفة القادرين على استخراج الاحكام من الادلة على مقتضى القواعد التى قررها استاذهم ابوحنيفة فى الاحكام وان خالفوه فى بعض احكام الفروع لكن يقلدونه فى قواعد الاصول وبه يمتازون عن المعارضين فى المذهب كالشافعى وغيره من المخالفين له فى الاحكام غير مقلدين له فى الاصول ۔

**نو اوګوره دلته ابويوسف او محمد دواړه مقلدين كړل د امام ابوحنيفه ۔ او وائى : قواعد او اصول ورلره امام صاحب ايخودى**

دی ۔ مونږ وایو : بے ادبو ولے ابویوسف او محمد څه علماء نه وو چه قواعد او اصول خپله معلوم کړی ؟ او هغه قواعد او اصول چه امام صاحب ایخودی دی هغه کوم دی ؟ یو څو مثالونه خو بیان کړئ ! هسے تشے دعوے دی چه خپلو مقلدینو له دوکے ورکوی ۔

تهول دروغ او وهمیات ئے راجمع کړی دی ( وغرهم فی دینهم ماکانوا یفترون ) مصداق دے ۔

اوس راشه بعضے مثالونه واوره ! چه د امام صاحب او د صاحبینو اصولی اختلاف هم شته لکه ابویوسف صاحب قومه او جلسه فرض گنړی او ابوحنیفهؒ او محمدؒ ئے سنت یا واجب گنړی دا اصولی اختلاف دے څکه فرضیت په حدیث سره ثابتول دی او امام صاحب ددے قائل ندے ۔

۲– دارنگه د حقیقت او مجاز په مسئله کښ د صاحبینو امام صاحب سره اختلاف شته لکه اصول الشاشی اوگوره

۳– دارنگه د صاع په مقدار کښ د ابویوسف د امام صاحب سره اختلاف شته ۔

٤– دارنگه په وترو کښ اختلاف شته ۔ صاحبین ئے سنت گنړی او امام صاحب ئے واجب گنړی ۔

۵– دارنگه تیمم امام ابویوسف صرف په تراب او رمل جائز گنړی او امام صاحب ئے په جنس الارض باندے جائز گنړی ۔

٦– د حائضے زنانه نه د فرج نه ما سوا استمتاع د امام محمد

په نیز باندے جائز ده ۔ د امام ابو حنیفه په نیز نده جائز ۔

۷– او کـه اصولی اختلافات د امام صاحب او صاحبینو گورے نو بدایة المجتهد اوگوره ۔

نو دا خبره د شامی ملا غلطه شوه چه صاحبین د امام صاحب سره په اصولو کښ اختلاف نه لری اگرکه په بعض فروعو کښ ورسره مخالف دی ۔

(۲) – بیا شامی لیکی په (۳۷۳/۳) باب الوقف دارنگه په (٤٦/۱) دارنگه په (۳۳٤/٤) کښ دی :

واما اذا حكم الحنفی بما ذهب اليه ابويوسف او محمد او نحوهما من اصحاب الامام فليس حكما بخلاف رأيه آه فقد افاد ان اقوال اصحاب الامام غير خارجة عن مذهبه فقد نقلوا عنهم انهم ما قالوا قولا الا وهو مروی عن الامام كما اوضحت ذلك فی شرح منظومتی فی رسم المفتی ۔

حنفی چه د ابویوسف او محمد یا د امام صاحب د نورو شاگردانو په قول فتوی ورکړه نو دا د امام صاحب خلاف نده ځکه ددے ټولو شاگردانو هره خبره د امام صاحب نه نقل ده د هغوی خپله یوه خبره هم نشته ۔

نو ته فکر اوکړه مخکښ وائی : د ابویوسف او محمد اتباع نشته دلته وائی : د دوی هره خبره د امام صاحب نه نقل ده ۔

امام صاحب ورته د نبی نه هم بره ښکاری، ته اوگوره او ددغه ابویوسف او محمد نه ئے ماشومان جوړ کړل چه خپله ئے یوه خبره هم

نشته ۔ نو فیصله په قارئینو ده چه دوی ددې په باره کښې څه وائی ؟ ۔

او حال دا چه شامی تفصیلا لیکی (٤٦/١) کښې : فحصل المخالفة من الصاحبین فی نحو ثلث المذهب الخ ۔

صاحبینو د امام صاحب نه اختلاف په دریمه حصه د مذهب کښې کړې دې او مخکښې ئې اووئیل چه د دوی خپله خبره نشته ټولې د امام صاحب دی ۔

او په النافع الکبیر کښې لیکی (٦،٧) : بل قال الغزالی انهما خالفا اباحنیفة فی ثلثی مذهبه ۔ نو ته سوچ اوکړه پدې ګډووډو کښې چه کله هغوی مقلدین کوی او کله ئې مستقل امامان ګرځوی او کله د امام صاحب نه په ثلثی المذهب (دوه حصو د مذهب) کښې مخالف ګنړی او کله د هغه هره خبره د دوی خبره ده عجیب فقاهت دې ؟ ۔

## (٧) - اوومه مسئله او تحقیق

---

صاحبین کله مقلدین کوی او کله ئې مجتهدین کوی لکه ته لاندینی عباراتو کښې فکر اوکړه ! ۔

(١) – رد المحتار کښې لیکی (٥٢/١) طبقات الففهاء مجموعة الرسائل (١٢) وفیه لکن یقلدونه فی القواعد والاصول الخ ۔ یعنی صاحبین د امام صاحب مقلدین دی په اصول او قواعدو کښې ۔

(٢) – نو دا خبره تقریرات الرافعی کښې رد کړې شوې ده (١٠/١ – ١١) دارنګه په النافع الکبیر د عبد الحی صاحبؒ کښې

دی (٦، ٧) اول ئے طبقات فقهاء الحنفیه راوړی دی بیا وائی :

علامه فاضل هارون بن بهاء الدین شهاب الدین المرجانی الحنفی وئیلی دی : چه دے طبقاتو کښ نقصان شته د هغه عباراتو کښ فوائد شریفه او فرائد لطیفه اوګوره هغه دا دی :

لیت شعری ما معنی قولهم ان ابایوسف ومحمداً وزفر وان خالفوا ابا حنیفة فی بعض الاحکام ) لکنهم یقلدونه فی الاصول ـ ما الذی یریدون به فان اراد منه الاحکام الاجمالیة التی یبحث عنها فی کتب الاصول فهی قواعد عقلیة وضوابط برهانیة یعرفها المرأ من حیث انه ذو عقل وصاحب فکر ونظر سواء کان مجتهداً او غیر مجتهد ولا تعلق لها بالاجتهاد قط شان الائمة الثلاثة ارفع واجل من ان لا یعرفوها کما هو اللازم من تقلیدهم غیرهم فیها فحاشاهم ثم حاشاهم عن هٰذه النقیصة، وحالهم فی الفقه وان لم یکن ارفع من مالك والشافعی فلیس بدونهما وقد اشتهر فی افواه الموافق والمخالف وجری مجری الامثال قولهم : ابوحنیفة ابویوسف بمعنی ان البالغ الی الدرجة القصویٰ فی الفقاهة ابویوسف ـ

وقال الخطیب البغدادی قال طلحة بن محمد بن جعفر : ابویوسف مشهور الامر ظاهر الفضل افقه اهل عصره لم یتقدمه احد فی زمانه وکان علی النباهة فی العلم والحکم والقدر وهو اول من وضع الکتب فی اصول الفقه علی مذهب ابی حنیفة ونشرها وبث علم ابی حنیفة فی اقطار الارض وکذلك محمد بن الحسن قد بالغ الشافعی فی مدحه والثناء علیه ـ

وقد ذكر القاضى عبد الرحمن بن خلدون المالكى فى مقدمته : ان الشافعى رحمه الله رحل الى العراق ولقى اصحاب الامام ابى حنيفة واخذ عنهم ومزج طريقه طريق اهل الحجاز بطريقة اهل العراق وكذلك احمد بن حنبل اخذ عن اصحاب ابى حنيفة مع وفور بضاعته في الحديث انتهٰى ۔

ولكل واحد منهم اصول مختصة تفردوا بها عن ابى حنيفة رحمه اللّٰه وخالفوه فيها، بل قال الغزالى انهما خالفا فى ثلثى مذهبه ونقل النووى رحمه اللّٰه فى تهذيب الاسماء عن ابى المعالى الجوينى ان كل ما اختاره المزنى انه تخريج ملحق بالمذهب لا كابى يوسف ومحمد فانهما يخالفان اصول صاحبهما ۔

واحمد بن حنبل لم يذكره الامام ابوجعفر الطبرى فى عداد الفقهاء وقال انما هو من حفاظ الحديث فكيف يكون من المجتهدين فى الشرع دون ابى يوسف ومحمد وزفر، غير انهم لحسن تعظيمهم للاستاذ وفرط اجلالهم لمحله ورعايتهم لحقه تشمروا على تنويه شأنه وتوغلوا فى انتصاره والاحتجاج باقواله وروايتها الناس ونقلها لهم وتجددوا التحقيق فروعها واصولها وتعين ابوابها وفصولها، ومن ذلك الوجه امتازوا عن المخالفين كالائمة الثلاثة والاوزاعى وسفيان وامثالهم لا لانهم لم يبلغوا رتبة الاجتهاد المطلق فى الشرع ولو انهم اولعوا بنشر آرائهم بين الخلق لكان كل ذلك مذهباً منفرداً عن مذهب ابى حنيفة رحمه اللّٰه وان اراد منه الادلة الاربعة فلا سبيل له الى ذلك لان الشريعة مستند كل الائمة ، وقد نقل

عن ابى بكر القفال وابى على وقاضى حسين من الشافعية انهم قالوا لسنا مقلدين للشافعى بل وافق رأينا رأيه وهو الظاهر من حال الامام ابى جعفر الطحاوى فى اخذه بمذهب ابى حنيفة واحتجاجه له وانتصاره لاقواله ، ثم ان قوله فى الخصاف والطحاوى والكرخى رحمهم الله انهم لا يقدرون على مخالفة ابى حنيفة لافى الاصول ولا فى الفروع ليس بشىء فان ما خالفوا من المسائل لا تعد ولا تحصى ولهم اختيارات فى الاصول والفروع واقوال مستنبطة بالقياس والمسموع واحتجاجات بالمعقول والمنقول على ما لا يخفى على من تتبع كتب الفقه والخلافيات ثم انه عد ابابكر الرازى الجصاص من المقلدين الذين لا يقدرون على الاجتهاد اصلاً وهو ظلم عظيم فى حقه وتنزيل له عن رفيع محله ـ

**نو دا عبارت تفصيلا مطالعه کړه څو مره ښے خبرے پکښ دی او د مقلدينو ملا ئے ماته کړے ده او وئيلے ئے دی چه نه ابويوسف نه امام محمد نه طحاوی ، نه کرخی، نه ابوبکر القفال، نه قاضی حسين مقلدين دی دارنګه ده دوی پشان علماء دی بلکه د دوی چه کله يوه خبره خوښه شی نو هغه اختياروی په دليل سره او دا موافقت الرأی ده تقليد ندے ـ**

وفى النافع الكبير (١١) للعلامة عبد الحیؒ وانما عد مذهب ابى يوسف ومحمد مع مذهب ابى حنيفة مذهباً واحداً مع انهما مجتهدان مستقلان لانهما مع مخالفتهما له فى الاصول والفروع لم يتجاوزا عن محجة ابراهيم وغيره من علماء الكوفة كذا قال المحدث

ولی اللّٰہ الدھلوی فی رسالة الانصاف ۔

## (۸) - ائمه مسئله او تحقیق

دا دے :

مقلدین لیکی چه عوام الناس باندے د امام صاحب تقلید لازم دے یا د ائمه اربعو کښ د یو امام نه په لازم دی ۔

او بیا وائی : چه عامی سړے حنفی نشی جوړیدے تاسو اوګوری لاندے عبارات :

(۱) - مولوی منظور مینګل لیکی «تحفة المناظر» کښ (۱٤٤) " تقلید سے مفر نہیں عامی کیلئے تقلید کرنا ویسے ہی لازم ہے لیکن اگر بڑا عالم ہے مگر اجتہاد کے صلاحیت نہیں تو اسے بھی تقلید کرنا ہوگی" ۔

قال الآمدی : العامی ومن لیس له اهلیة الاجتهاد وان کان محصلا لبعض العلوم المعتبرة فی الاجتهاد یلزمه اتباع قول المجتهد، (الاحکام فی اصول الاحکام للآمدی المسئلة الثانیة (٤/١٩٧) مؤسسة الحلبی القاهرة ۔

بیا د اتحاف ذوی البصائر (٦٣٠) نه نقل کړے : کذلك من لم یبلغ درجة الاجتهاد وان کان محصلاً لبعض العلوم المعتبزة یلزمه اتباع قول مجتهد من المجتهدین والاخذ بفتواه ۔

نو ګوره تقلید په عوامو څه چه په علماؤ هم واجبوی ۔

مونږ وایو : چه دا اجتهاد څه شے دے ؟ چه تاسو ترے عنقاء جوړ کړے دے چه صرف یو امام صاحب پرے قادر دے او نور څوك ئے

نشی کولے، دا بکواس تاسو د کوم ځائے نه زده کړے دے ۔

(۲) – تقی عثمانی دیوبندی لیکی په تقلید کا شرعی حیثیت کښں (۸۷) دارنګه درس ترمذی (۱۲۲/۱) : عام آدمی ایسانہیں ہوتا جو دلائل کے راجح ومرجوح ہونے کا فیصلہ کر سکے الخ ۔ نو داسے انسان که حدیث ورته ملاؤ شی بیا به هم د خپل امام صاحب مذهب نه پریدی او حدیث ډِے پریدی ځکه بیا که ده ته دا اجازت ورکړے شی نو ګمراه به شی ملخصا والعیاذ بالله ۔

دا څو مره ګنده خبره ده ته فکر وکړه چه تقی صاحب کړے ده مونږ وایو عوام ډِے حدیث اوګوری چه پوهه شو عمل ډِے اوکړی او که پوهه نشو نو د ژوندی عالم نه ډِے تحقیق اوکړی ، نو تقلید پکښں د کوم ځائے نه راغلو چه خامخا به مونږ دا عوام د یو عالم پورے انخلو ۔

(۳) – وفی الشامی (۱۹۱/۳) لیس للعامی ان یتحول من مذهب الی مذهب ویستوی فیه الحنفی والشافعی ثم قال فی فصل القبول من الشهادات، ولا من انتقل من مذهب ابی حنیفة الی مذهب الشافعی ای لا تقبل شهادته، قال ابن عابدین : ولیس للعامی إن یتحول من مذهب الی مذهب ویستوی فیه الحنفی والشافعی الخ ۔ نو معلومه شوه چه عامی هم حنفی او شافعی ګنړی ۔

**بیا احناف** خپله وائی : چه عوام احناف نشی کیدلے ۔

(۱) – قال فی رد المحتار للشامی (۳۳/۱) ان من التزم مذهبا معینا کابی حنیفة والشافعی فقیل یلزمه وقیل لا وهو الاصح وقد شاع

ان العامی لا مذهب له .

یو مذهب چا په ځان لازم کړو لکه حنفی شافعی نو بعض ( نامعلومه ) احناف وائی : په هغه باندے دغه مذهب رانیول لازم دی او بعض وائی : ندے لازم - شامی وائی دا دویمه خبره ډیره صحیح ده ځکه چه دا مشهوره خبره ده چه د امی سړی مذهب نشته ( نو هغه د یو مذهب پابند کیدے نشی ) -

بیا تفصیلا لیکی په (۱۹۰/۳) باب التعزیر :

وایضاً قالوا العامی لا مذهب له بل مذهبه مذهب مفتیه وعلله فی شرح التحریر بان المذهب انما یکون لمن له نوع نظر واستدلال وبصر بالمذاهب علی حسبه او لمن قرأ کتابا فی فروع ذلك المذهب وعرف فتاوی امامه واقواله واما غیره ممن قال : انا حنفی او شافعی لم یصر کذلك بمجرد القول کقوله انا فقیه او نحوی -

د عامی سړی مذهب نه وی لکه حنفی، شافعی نشی کیدے بلکه هغه خو د ژوندی انسان عالم په فتوی روان وی - مقلد خو هغه سړے جوړیږی چه د یو امام کتاب اولولی او یائے اقوال یاد کړی او امی سړی کښې خو دا اهلیت نشته نو صرف ځان ته په حنفی شافعی نسبت کولو باندے سړے شافعی او حنفی نه ګرځی-

لکه یو امی سړے ځان ته نحوی یا فقیه اووائی نو دا صرف زبانی جمع خرچ دے چه دا کار نه ورکوی ، انسان نحوی او فقیه نه جوړیږی -

نو اوګوره ټول عوام د پاکستان او افغانستان هندوستان وغیره

احناف نشول په اقرار د احنافو څکه هغوی د امام صاحب په (معدوم) کتاب نه پو هیږی بلکه دا عوام به د ژوندی علماؤ نه د الله تعالی او د رسول الله ﷺ د حکم تپوس کوی او هغوی به جواب ورکوی نو ټول محمدیان شول نو په دنیا کښ یو حنفی هم نشته۔ نو دا خبره کول (لکه چه بعض د جهل خاوندان ئے کوی) چه دا ټول عوام مقلدین دی، او احناف دی – نو دا سو چه دروغ دی، د دوی د مشرانو په اقرار باندے۔

نو بس په تقلید کښ صرف متعصب مولیان پاتے شو او د هغوی د تقلید دغه کړئ مبارك شی، او مبارك شه ! عوام ټول محمدیان شول والحمد لله۔

وقال ولی الله الدهلوی فی حجة الله البالغة (١٥٨/١) وقد علم من هذا ان مذهب العامی فتوی مفتیه وفیه ایضاً ان کان عامیا لیس له مذهب معین فمذهبه فتوی مفتیه کما صرحوا به۔

امی سړے حنفی ندے د دوی په صراحت سره۔

نو پدے خبرو او عباراتو د مقلدینو ملا ماتیږی څکه چه هغوی خو عوام الناس نه احناف جوړوی او مشران لیکی چه عوام الناس احناف نشی کیدے ؟۔

## (٩) - نهمه مسئله او تحقیق

د قرآن او حدیث او د صحابه کرامؓ د اقوالو څو مره عظمت او

عـزت دے د مـقـلـدينو سره ؟ ته لاندے اوګوره نو که ذره بر ايمان در پکښې وی نـو تا ته به پته ولګیږی چه مقلدين د قرآن او حديث او هـره خبـره چـه د دوی د مـذهـب خلاف وی نو دوی ئے هيڅ قسم عـظـمت او عزت نه کوی نو سخت حيران به شے چه دا خلق دعوىٰ د ايمان کوی او خبرے د يهود او کفارو او متبدعينو کوی ۔
لکه اوس مثالونه د پے ادبئ د قرآن او حديث او د صحابه کرامؓ د اقـوالـو دارنـګـه د نـور مـذاهبِ اسلاميه و واوره چه دے مقلدينو کړی دی او کوی ئے او ليکلی ئے دی ۔
(مشت نمونه خروار)
(١) – قـال فی نور الانوار (١٩٣) - اذا تـعـارضت الآيتان تساقطا كـقـولـه تـعـالـى فـاقـرأوا مـا تيسر من القرآن وقوله: واذا قرئ القرآن فاستمعوا له وانصتوا . ۔
وائـی : د دوه آيتـونـو چـه کـلـه تـعـارض راشـی نـو دواړه بـه غـورځولے شی نو اوګوره آيتونه غورځوی او تر قيامته پورے ددے تعارض به باقی وی هغه به نه ختميږی دا کوم عقل دے ؟ ۔
نـو کـلـه هـم دوی د امـام ابـو حـنيفهؒ قول اونه غورځولو صرف آيتونه او حديثونه غورځوی دا دوی د قرآن او حديث سره ادب دے !!۔ د الله او د رسـول په خبرو کښې ټکراؤ ګنړی او کله ئے هم خپلو او د خپلو مشرانو په خبرو کښې ټکراؤ او نه ګنړلو دا به انصاف وی ؟ ۔
(٢) – وفـی الشامی (١/ ١٤٠) وقاضی خان (٤/٣٦٥) – لا بأس بكتابة البول القرآن اذا رجی فيه الشفاء ۔

وائی : په متیاز و قرآن کریم لیکل جائز دی د شفاء دپاره ـ نا شنا فقه ده ؟ ـ دا فقه به هم کیدے شی د قرآن او حدیث تشریح وی ؟ـ

(۳) – وفی کتاب تقی عثمانی دیوبندی : تقلید کا شرعی حیثیت (۸۷) ودرس ترمذی (۱/۱۲۲) عام آدمی ایسا نہیں ہوتا جو دلائل کے راجح اور مرجوح ہونے کا فیصلہ کر سکے بلکہ ایسے شخص کو اگر کوئی حدیث ایسی نظر آ جائے جو بظاہر اس کے امام مجتہد کے مسلک کے خلاف معلوم ہوتی تب بھی اس کا فریضہ یہ ہے کہ وہ اپنی امام ومجتہد کے مسلک پر عمل کر لے اور حدیث کے بارے میں یہ خیال رکھے کہ اس کا صحیح مطلب میں نہیں سمجھ سکا( ځان په زوره جاهل کړه) یا یہ کہ امام مجتہد کے پاس اس کے معارض کوئی قوی دلیل ہوگی ( صریح نص پریده او وهم پسے لاړ شه) بیا مخکښ لیکی : کہ اگر ایسے مقلد کو یہ اختیار دے دیا جائے کہ وہ کوئی حدیث اپنی امام کے مسلک کے خلاف پاکر امام کے مسلک کو چھوڑ سکتا ہے تو اس کا نتیجہ شدید افراتفری اور سنگین گمراہی کے سوا کچھ نہیں ہوگا ـ

نو حدیث د رسول الله ﷺ د دوی په نیز د گمراهئ اسباب دی او په دے کلام کښ دده خومره تلبیس دے ـ

ځکه، مونږ خو عوام دے ته نه پریدو چه د ځان نه دِے دین جوړ کړی بلکه د حدیث او قرآن اتباع ورته ښایو ـ

دا د دوی د حدیث سره ادب شو ؟ ـ

(٤) – محمود الحسن دیوبندی په غیر مقلدین سے لاجواب سوالات المعروف به ادله کامله طبع طیب اکیډمی ملتان (٦٧) کښ لیکی : دفعہ خامس آپ (اہل حدیث) ہم سے وجوب تقلید کے دلیل کے طالب ہیں ہم آپ سے وجوب اتباع محمدی ﷺ و وجوب اتباع قرآن کے سند کے طالب

ہیں۔اگر ایک ان میں سے دوسرے کے لئے وجوب اتباع کے سند ہے تو پھر اس کے وجوب اتباع کی کیا سند؟۔رسول اللہ ﷺ کا واجب الاتباع ہونا اگر قرآن شریف سے ثابت ہوتا ہے تو قرآن شریف کا واجب الاتباع ہونا کہاں سے ثابت ہوا؟ اور قرآن شریف کا واجب الاتباع ہونا رسول اللہ ﷺ کے ارشاد سے ثابت ہوا تو رسول اللہ ﷺ کا واجب الاتباع ہونا کہاں سے ثابت ہوا؟ ۔بجز اس کے کہ آپ اپنے آپ کو یا اپنے اقران وامثال کو مہبط وحی آسمانی قرار دیں اور رسول اللہ ﷺ کی خاتمیت کو راکھ ملا دیں اور کوئی تدبیر نہیں! مگر ہر چہ باد آباد آپ ایسی ہی سند غیر معتبر لائیں اور دس (۱۰) نہیں بیس (۲۰) لے جائیں، ورنہ پھر ہماری طرف سے یہ گذارش ہے کہ آپ جس موطن سے سند وجوب اتباع نبوی وقرآنی نکال کر لائیں گے اسی موطن سے ہم سند وجوب اتباع امام نکال کر رکھائیں گے۔

نو اوګوره وائی : اے اهل حدیثو ! تاسو هر وقت مونږ احنافو نه دلیل د وجوب د اتقلید غواړئ ! نو تاسو په خپل قرآن او حدیث دلیل راوړئ که قرآن د حدیث دپاره دلیل شی نو د قرآن دلیل به نه وی او که حدیث د قرآن دپاره دلیل شی نو د حدیث دلیل به نه وی الخ ۔

مونږ وایو : دا څه د مسلمان خبره ده ؟ دا ددوی عزت دے د قرآن او حدیث ۔ قرآن او حدیث خپل دین نه ګنړی، په دے خبرے ئے الله تعالی راونیسی نو څه به کوی ؟ ۔

غریب ددے خبرے نه ندے خبر چه قرآن هم دعوی ده او هم دلیل دے د بل څائے نه دلائلو ته څه ضرورت دے چه دا په کښې شقونه جوړوی ۔ نو قرآن کریم د فطریاتو او قضایا قیاساتها معها د قبیلے نه دے پدے کښې دلیل هم وی او مدعیٰ هم وی نو قرآن کریم

بدیهی الثبوت دے، دے وجه نه قرآن کریم ته مُعجز کتاب وائی
چه ددے مقابله څوك نشی کولے۔

(۵) – مفتی احمد یارخان حنفی په کتاب جاء الحق (۹/۲)
قاعده (۱۳) کښې لیکی : حدیث کا ضعیف ہو جانا غیر مقلدین کیلئے قیامت ہے،
کیونکہ ان کے مذہب کا دارومدار ان روایتوں پر ہی ہے، روایت ضعیف ہوئے تو ان کا
مسئلہ بھی فناء ہواء، مگر حنفیوں کیلئے مضر نہیں کیونکہ حنفیوں کے دلائل یہ روایتیں نہیں، ان کے
دلیل قول امام ہے قول امام کے تائید یہ روایتیں ہیں۔ ہاں امام کے دلیل قرآن وحدیث
ہیں مگر امام صاحب کو جب حدیثیں ملی تو صحیح کہ ان کی اسنادیں یہ نہ تھی جو مسلم وبخاری کی ہے
۔ اگر پولیس ملزم کو جیل میں دیدے تو پولیس کی دلیل حاکم کا فیصلہ ہے نہ کہ تعزیرات ہند کے
دفعات، ہاں حاکم کی دلیل یہ دفعات ہیں۔ یہ بات یاد رکھو تقلید اللہ کی رحمت ہے، غیر
مقلدیت رب کا عذب۔

اوګوره دا د مقلدینو ادب دے وائی : احادیث زمونږ دلیل ندے
او بیا ئے نور وهمیات بیان کړل او دا ئے اووئیل چه د امام صاحب
قول حجت دے او احادیث د هغه تائید دے بیا وائی : د امام صاحب
زمانه کښې نور سندونه وو، دا سندونه نه وو کوم چه بخاری او
مسلم کښې دی ۔ مونږ وایو هغه سندونه څه شو ؟ چرته لاړل امے د
وهمیاتو پسے روان خلقو ! ۔

نو د چا په زړه کښې چه د احادیثو د رسول الله ﷺ دا قیمت وی
آیا هغه مسلمان کیدے شی او آیا هغه محبِ رسول کیدے شی ؟ ۔

(٦) – عزیز الله مولوی میدان باغ والا په کتاب مسئله تقلید
(۱۱ – ۱۲) کښې لیکی : فریق مخالف پہلے یہ دو مسئلے نص صریح سے ثابت کریں

پھر ہم سے (نص صریح طلب کریں) (یعنی تقلید پر) پہلا مسئلہ ہے قرآن شریف کا پیروی کا واجب ہونا

دوسرا مسئلہ ہے نبی کریم ﷺ کی پیروی کا واجب ہونا

مگر ساتھ ہی یہ بھی یاد رکھیئے کہ پہلا مسئلہ قرآن پاک سے ثابت نہ کریں ورنہ توقف الشئ علی نفسہ لازم آئے گا اور حدیث سے بھی ثابت نہ کریں کیونکہ حدیثوں کا واجب الاتباع ہونا قرآن کریم کے واجب الاتباع ہونے موقوف ہے اسطرح دوسرا مسئلہ بھی حدیثوں سے ثابت نہ کریں ورنہ توقف الشئ علی نفسہ لازم آئے گا الخ۔

نو دے جهالت ته اوګوره دا د قرآن او حدیث عظمت او ادب دے ددے خلقو په زړونو کښ چه اوس د خلقو په زړونو کښ د قرآن کریم او حدیثونو په باره کښ شك پیدا کوی دے دپاره چه د امام ابو حنیفه تقلید خلق پرے نه ږدی -

اے صاحبه ! ابو حنیفه تا د اور د جهنم نه نشی خلاصولے او ځان دِے د هغه دپاره د کفر په دروازه اودرولو -

ستا د بکواس جواب دا دے چه قرآن دعوی هم ده او دلیل هم دے او ادله عقلیه او اعجاز د قرآن پدے کتاب کښ خپله بیان شوے دے (وان کنتم فی ریب مما نزلنا علی عبدنا فاتوا بسورة من مثله) دا د قرآن د صدق پوره دلیل دے کنه بل دلیل ته څه ضرورت دے -

او که نبی ﷺ ژوندے وے او هغه تاسو ته خپل طرفته دعوت درکړے وے چه په ما باندے ایمان راوړئ دا فلانئ مسئله اومنئ تاسو به ورته دغه خبره کولے چه ستا په رسالت باندے څه دلیل دے که هغه درته وئیلے چه قرآن دلیل دے تاسو به ورته وئیلے چه په

قرآن څه دليل دے چه د هغه تابعداری واجب ده نو ستاسو دا اعتراض به د مشرکانو د اعتراض نه هم قوی وے چه هغوی دا قسم اعتراض نه وو کړے او تاسو اوکړو ـ نو پیغمبر به تاسو ته دغه شان جواب کولے چه (وان کنتم فی ریب مما نزلنا علی عبدنا) یعنی که دا قرآن دلیل نه وی او تاسو دا د الله کتاب نه منئ او دلیل ئے نه منئ نو بیا راشئ مقابله اوکړئ او ددے کتاب پشان بل کتاب راوړئ نو مشرکانو ددے مقابله اونکړے شوه او غلی پاتے شو مگر زمونږ د زمانے ناقص مولیان وائی : مونږ به د قرآن او حدیث نه بنه قوی دلیل راوړو چه هغه تقلید دے او قرآن او حدیث خو تائید ددے تقلید دے ـ فیاللعجب این ذهبت عقول هؤلاء ؟ ـ

(۷) – دارنګه عزیز الله مولا په کتاب مسئله تقلید (۱۳) کښ لیکی دارنګه ظاهر افریدی لیکی دارنګه نور مقلدین لکه اوکاړوی په مجموعة الرسائل (۲۳) او منظور مینګل په تحفة المناظر (۱۳۲) کښ لیکی : چه د قرآن او حدیث په مسائلو کښ تعارض شته دارنګه ډیرے مسئلے داسے دی چه قرآن او حدیث کښ نشته، وائی :

مسائل منصوص علیها متعارض فیها (۲) مسائل غیر منصوص علیها ـ

مسائل غیر منصوص علیھا جن کا ثبوت قرآن وسنت میں ہی نہیں مثلا جہاز کے اندر نماز، خرید وفروخت کا مسائل ہیں قرآن وحدیث میں اس کا کوئی تفصیل ذکر نہیں، ٹیلیفون پر طلاق دینا تحریری طلاق دینا اس کا کیا حکم ہے، قرآن وحدیث میں اس کا کوئی ذکر نہیں اس طرح بینکاری، بیمہ، کمپیوٹر وغیرہ ـ

مطلب دا دے چه دا مسائل قرآن او حدیث کښ نشته نو ځکه د امام صاحب تقلید واجب دے۔
نو مونږ وایو : چه ستا په ناقص علم کښ به دغه مسئلے نه وی په قرآن او حدیث کښ ځکه تاسو راندہ یئ او الحمد لله پدے هره مسئله په قرآن او حدیث کښ بیان شته نو که ما په هره مسئله باندے د قرآن او حدیث نه دلیل درنکړو نو بیا به ستاسو دا باطله خبره صحیح وی او زمونږ دعویٰ به غلطه وی ( والعیاذ بالله ) ۔
دویم دا وایم : چه د جهاز مسئله آیا د ابو حنیفه صاحب بیان کړے ده څه ؟ ۔
د امام صاحب په زمانه کښ خو زما په خیال ډیر زیات جهازونه وو او د کوفے نه به الوتل او ستاسو باغ میدان کښ به کیناستل او افریدو باړه کښ به کیناستل دارنګه بعضے به اوکاړے ته راتلل ؟۔
نو امام صاحب تاسو د جهازونو مسئلے ولیکلے او یو کتاب کښ درلره محفوظ کړے ځکه روستو جاهلان را روان دی ددے مسئلو دلیل به نشی پیدا کولے ؟ تبا لکم یا معشر المقلدین ) دا قسم خبرے ستاسو سره لائق دی چه وے کړئ ځکه جاهلان یئ ؟ د مقلد د تحقیق سره څه کار ؟ د کوهی چندخان دی چه مسئله په قرآن او سنت کښ پیدا نکړی نو بیا وائی دا پکښ نشته هلکه داسے اووایه چه ما ته نده معلومه ۔
ته اوګوره د قرآن او حدیث دومره ادب او عظمت دے د دوی په زړونو کښ، حیران دی چه څه ورسره وکړی وسع ئے نه کیږی ګنے دا

قرآن او حدیث ئے سیزل ۔

(۸) – دارنګه د صحابه کرامؓ او ائمه عظامؒ خومره بے ادبی کوی ته مسئله نمبر (۳) ددے رسالے کښ اوګوره ۔

نو ښه به درته واضحه شی چه تقلید والا خومره د خپل امام د وجے نه د عظیم شخصیتونو بے ادبی کوی ؟ ۔

(۹) – وقال الكرخي في اصوله (۲۹) وفي ضمن الاصول للبزدوي والكرخي (۳۷۳) : كل آية او حديث اذا جاء على خلاف قواعد مذهبنا فهو اما مؤول او منسوخ ملخصاً ۔

کرخی صاحب وائی : هر آیت او حدیث چه زمونږ (د احنافو) د اصول او قواعدو خلاف راشی د هغے په باره کښ به زمونږ عقیده دا وی چه دا یا خه تاویل لری یا منسوخ دی ۔

ته اوګوره دا خومره غلطه نظریه ده او د کتاب او سنت خومره بے ادبی ده او خود ساخته اصول په هغے مقدم کول دی ۔

ولفظ الكرخي : الاصل ان كل آية تخالف قول اصحابنا فانها تحمل على النسخ او على الترجيح والاولىٰ ان تحمل على التاويل من جهة التوفيق، ثم قال : الاصل ان كل خبر يجيء بخلاف قول اصحابنا فانه يحمل على النسخ او على انه معارض بمثله او ترجيح بما يحتج به اصحابنا من وجوه الترجيح الخ ۔

دا طریقه بعینه د وسنو مقلدینو ده چه د احادیثو د رسول الله ﷺ سره هم دا کار کوی، اوګوره اجتهاد او تقلید د ګوهر رحمان صاحب ۔

(۱۰) – ناشنا خبره دا ده چه صاحب د درمختار لیکی (۲۷/۱)

النظر فی کتب اصحابنا ( الحنفیة ) من غیر سماع افضل من قیام اللیل وتعلم الفقه افضل من تعلم باقی القرآن وجمیع الفقه لابد منه ۔

**وائی چه د فقه حنفی کتابونه کتل د تهجدو نه غوره دی او زمونږ فقه حنفی یادول د قرآن نه بهتر دی ۔ او ټوله فقه حنفی یادول خو ډیر ضروری دی ۔**

**نو ته اوګوره د قرآن نه قدوری او منیه غوره ګنړی او د فقه حنفی دروغ رشتیا د قرآن نه بهتر ګنړی دا خبره خو د مسلمان نده ؟ ۔**

(۱۱) – بیا شامی لیکی (۲۷/۱) عمل محمد بن الحسن مائتی الف مسألة فی الحلال والحرام لابد للناس من حفظهما ۔

**محمد بن الحسن د ځان نه دوه لاکهه مسئلے د حلال او حرامو جوړے کړی دی خلق به هغه ضرور یادوی ۔ نو اوګوره د محمد بن الحسن مسئلے ( ځان نه جوړے شوے ) په خلقو یادوی او قرآن او حدیث نه هغه بهتر ګنړی ۔ دارنګه مخکښ تیر شوی دی چه دوئ وائی د محمد تقلید به نشی کولے او دلته وائی : د امام محمد جوړے شوے مسئلے یادول ضروری دی نو دے تعارض ته اوګوره ۔**

(۱۲) – بیا درمختار لیکی (۲۷/۱) وفی الملتقط وغیره عن محمد لاینبغی للرجل ان یعرف بالشعر والنحو لان آخر امره الی المسألة وتعلیم الصبیان ولا بالحساب لان آخر امره الی مساحة الارضین ولا بالتفسیر لان آخر امره الی التذکیر والقصص بل یکون عمله فی الحلال والحرام وما لا بد منه من الاحکام ۔

**محمد صاحب وائی چه نحو، شعرونه یادول ندی پکار بیا به**

سوالونه كوى او ماشومانو ته به سبق وائى دارنګه علم حساب مه زده كوه ځكه بيا به زمكے كچ كوے دارنګه علم تفسير د قرآن هم يادول ندى پكار ځكه بيا به صرف وعظونه او قصص كوے بلكه صرف د فقه حنفى حلال او حرام يادول پكار دى ۔

نو ما ته خو دا خبره هم د مسلمان نه ښكارى ځكه چه قرآن دوى ته دومره سپك ښكارى چه هغے كښې حلال او حرام او تول تفصيلى مسائل نشته صرف د ابو حنيفه په فقه كښې هر څه شته او حال دا چه الله تعالى فرمائى : ما فرطنا فى الكتاب من شىء وقال الرسول يارب ان قومى اتخذوا هذا القرآن مهجوراً (ونزلنا عليك الكتاب تبياناً لكل شىء ۔

(۱۳) – وقد توسل ابن عابدين الشامى فى رد المحتار (۱/۳) وفى (۱/۵۳، ۵۴) وانى اسأله تعالى متوسلاً اليه بنبيه الكريم ﷺ وباهل طاعته من كل ذى مقام على معظم وبقدوتنا الامام الاعظم ان يسهل على ذلك من انعامه الخ ۔

نو اوګوره رسول الله ﷺ ئے د الله تعالى نبى كړو (نبيه) او خپل قدوه او مشرئے ابو حنيفه كړو نو چه څه زړه وائى هغه خوله وائى دده زړه كښې د رسول الله ﷺ د اقتداء اراده نشته لږ سوچ اوكړه او جلتى مه كوه ! ۔

(۱٤) – او عجيبه دا ده چه صاحب الهدايه په خپل كتاب كښې (۱/۲) په ائمه مجتهدينو صلاة او سلام وئيلے دے ليكن د رسول الله ﷺ نوم ترے پاتے شويدے ځكه چه مجتهدينو طرفته سخته جلتى ده ۔

(۱۵) – وفی الدر المختار (۱/۲۳) ولیس ثواب الفقیه اقل من ثواب المحدث ثم قال : کل انسان غیر الانبیاء لا یعلم ما اراد الله تعالی له وبه الا الفقهاء فانهم علموا ارادة الله بهم بحدیث الصادق المصدوق من یرد الله به خیراً یفقهه فی الدین الخ ۔

**نو اوګوره د فقه حنفی بیانونکی د رسول الله ﷺ د حدیث بیانونکی نه ئے اوچت کړل او بیا وائی : الله تعالی په فقهاء ( احنافو ) د خیر اراده کړے ده او دا ہے چاره پدے خبره ندے پوهه چه دلته کومه فقه مراد ده آیا دا فقه حنفی مراد ده، د فقه حنفی عبارات خو تاسو مخکښ اولیدل هغه به ددے حدیث مصداق وی؟ بلکه دغه حدیث کښ د فقه نه مراد فقه فی الدین ده چه هغه عبارت دے د قرآن او حدیث نه نه د علماؤ د خبرو نه لکه شامی پخپله وئیلی دی (۱/۳۳)**

وقال فی الدر المختار (۱/۹) انه صنف کتابه الدر المختار بعد الاذن عنه ﷺ ووقفت تجاه وجه منبع الشریعة والدرر وضجیعیه الجلیلین ابی بکر وعمر ۔

**مطلب دا چه ما درمختار چه لیکلو نو د رسول الله ﷺ نه مے اجازت واخستلو او د ابوبکر وعمر رضی الله عنهما نه نو هغوی اجازت راکړو د لیکلو ددے کتاب ۔**

**نو اوګوره درمختار د رسول الله ﷺ په اجازت لیکلے شوے دے د دوی په زعم باندے او دا اجازت خصفکی په لسمه صدئ کښ اخستے دے پس د مرګ د رسول الله ﷺ نه ۔**

**او حال دا چه شامی لیکی (۱/٤۸)**

(۱٦) – وفی الدر المختار (۱/٤۸) – لايجوز الافتاء من الكتب المختصرة كالنهر وشرح الكنز للعينى والدر المختار او لعدم الاطلاع على حال مؤلفيها كملا مسكين شارح الكنز وشرح النقاية للقهستانى الخ ونحوه فی :

(۱۷) – فی الطحطاوى شرح الدر المختار (۱/۲٦) طبع كوئته : روى الخطيب فی تاريخه عن ابی يوسف قال : قال ابو حنيفه : لما اردت طلب العلم جعلت اتميز العلوم واسئل عواقبها فقيل لی : تعلم القرآن فقلت : لعله اذا تعلمت القرآن وحفظته فما يكون آخره ؟ قالوا :تجلس فی المجلس ويقرأ عليك الصبيان والاحداث ثم لا تلبث ان يخرج منهم من هو احفظ منك او من يساويك فتذهب رياستك ؟ قلت : فان سمعت الحديث وكتبته حتى لم يكن فی الدنيا احفظ منى ؟ قالوا : اذا كبرت حدثت واجتمع عليك الاحداث والصبيان ثم لم تأمن ان تغلط فيرموك بالكذب فيصير عاراً عليك فی عقبك ـ قلت : لاحاجة لی فی هذا، ثم قلت : اتعلم النحو ؟ فقلت : اذا تعلمت النحو والعربية ما يكون آخر امرى ؟ قالوا : تقعد معلماً فاكثر رزقك ديناران الی ثلاثة ـ قلت : وهذا لا عاقبة له ـ قلت : فان نظرت فی الشعر فلم يكن اشعر منى ما يكون امرى ؟ قالوا : تمدح هذا فيهب لك او تحملك على دابة او يخلع خلعة وان حرمك هجوته فصرت تقذف المحصنات ـ فقلت : لا حاجة لی فی هذا ـ فقلت : فان نظرت فی الكلام ما يكون آخره ؟ قالوا : لا يسلم من نظر فی الكلام من مشنعات الكلام فيرمى بالزندقة ـ قلت : فان تعلمت الفقه ؟ قالوا :

تسئل وتفتی الناس وتطلب للقضاء وان کنت سائما قلت : لیس لی فی العلوم انفع من هذا فلزمت الفقه وتعلمته ۔

نو اوګوره د قرآن کریم علم دومره معمولی ګنړی چه صرف ماشومانو ته سبق وئیل انا لله وانا الیه راجعون ۔

د چا په زړه کښې د قرآن دومره عظمت وی د هغه دِیے دغه قیاسونه مبارك وی ۔

## ۱۰ - لسمه مسئله او تحقیق :

احناف لیکی چه د څلور مذهبونو تقلید واجب دے او څلور مذهبونو نه وتل جائز ندی او دا خبره ډیر جوش اوشور سره کوی او بیا خپله بیرته وائی : دے څلور مذاهبو کښې د دریے مذهبونو تقلید نشته او که څوك په هغے پسے روان شو نو خطاء شو یا به تعزیر ورکولے شی بلکه د حنفی سړی د شافعی سړی د لور سره نکاح جائز ده او ددیے عکس جائز ندیے نو اول اوګوره څلور مذهبونه حق ګنړی او بیا وائی : دا دریے حق ندی نو آیا دا به تعارض نه وی ؟ نور څه دی ؟ لږ سوچ خو پکار دیے دا مونږ څه پسے روان یو ؟ اوس دا احنافو د کتابونو د عباراتو تفصیل اوګوره په مذکوره تعارض او تناقض :

(۱) – قال فی تفسیر ات الاحمدیة لملا جیون (٥٢٦) وقد وقع الاجماع علی ان الاتباع انما یجوز للاربع فلا یجوز الاتباع لابی

یوسف ومحمد وزفر وشمس الائمة سورة آلعمران او دغه شان عبارت په تفسیر مظهری (۲/ ٦٤) سورة آلعمران او فتاویٰ حقانیه (۲/ ۳۲) کښں اوګوره ـ

وائی : پدے خبره باندیٍ اجماع ده (خود ساخته) چه تقلید به صرف د څلورو مذهبونو کولے شی تردے چه اتباع او تقلید د ابویوسف، محمد، زفر او شمس الائمه هم جائز نده (اګرکه دا فقهاء احناف دی) نو ته اوګوره صرف د څلورو امامانو اتباع ئے جائز کړه او د امت نور په لکهونو علماء ئے په کنده کښں ګوزار کړل ـ

(۲) – وفی الطحطاوی (۳/ ۹) وجاء الحق (۱/ ۲٦) د احمدیار خان : ولا یجوز تقلید ما عدا المذاهب الاربعة (وقد تقدم هذه العبارة)

وائی : د څلور مذهبونو نه سویٰ د بلْ چا تقلید جائز ندیٍ ـ

(۳) – وقال ولی الله الدهلوی ( ونقله عنه کثیر من المقلدین ) قال فی عقد الجید (۵۳) وحجة الله البالغة (۱۵۲) باب تاکید الاخذ بهذه المذاهب الاربعة والتشدید فی ترکها والخروج عنها : اعلم ان فی الاخذ بهذه المذاهب الاربعة مصلحة عظیمة وفی الاعراض عنها کلها مفسدة عظیمة کبیرة ونحن نبیّن ذلك بوجوه : احدها ان الامة اجمعت علی ان یعتمدوا علی السلف فی معرفة الشریعة فالتابعون اعتمدوا فی ذلك علی الصحابة وتبع التابعین اعتمدوا علی التابعین وهکذا کل طبقة اعتمد العلماء علی من قبلهم والعقل یدل علی حسن ذلك لان الشریعة لایعرف الابالنقل الخ ـ

شاه صاحب وائی : په څلور مذهبونو عمل کولو کښں ډیر

مصلحت دے او ددے څلورو نه په اعراض کښ فساد دے او ددے ډیرے وجے مونږ بیانوو : اوله وجه دا ده چه د امت اجماع ده چه روستنی د اولنو سلفو په اقوالو باندے اعتماد کوی لکه تابعینو اعتماد په قول د صحابه کرامو کړے او تبع تابعینو په قول د تابعینو کړے دے الخ ۔

نو وائی چه د څلور مذهبونو تقلید لازم دے او که څوک ئے نکوی نو دے کښ فساد راځی دا خبره بعینه منظور مینګل هم نقل کړیده لکه لاندے عبارت اوګوره :

(٤) – منظور مینګل په تحفة المناظر (١٤٣) کښ وائی :

*مذاہب اربعہ سے اعراض میں فتنہ اور فساد ہے:* بیا ئے دغه مخکښے عبارت ذکر کړیدے او بیا ئے وئیلی دی : *مذاہب اربعہ کی تقلید سواد اعظم کی تقلید ہے: شاہ ولی اللہ فرماتے ہیں:* ولما اندرست مذاهب الحقة الا هذه الاربعة كان اتباعها للسواد الاعظم الخ ۔ عقد الجيد (٥٦) ۔

نو د څلورو مذهبونو تقلید ضروری شو د دوی په نیز ۔

(٥) – وفی امداد الفتاوی للشیخ اشرف علی تهانوی الدیوبندی الصوفی (٥٦٤/٤) *اور ظاہر ہے کہ بجز ائمہ اربعہ کے کسی مجتہد کا سبیل یہ تفصیل جزئیات وفروع معلوم نہیں پس انحصار مذاہب اربعہ میں ثابت ہوا الخ تفصیلاً ۔*

اشرف علی صاحب دغه عبارت کښ تلبیسات دی چه دلته ئے اوس نشو بیانولے ۔

(٦) – طحطاوی شرح درمختار کښ دی (١٥٣/٤) وهذه الطائفة الناجية قد اجتمعت اليوم فی مذاهب اربعة الخ و تقدم فی

مسئله (٦) څلور مذهبه صرف فرقه ناجیه ده ـ

زه وایم چه د څلور مذهبونو عام صحیح مسائلو باندے صرف اهل حدیث عمل کوی نو دا مذکوره اقوال زمونږ په تائید کښې دی په مونږ رد ندے بلکه په احنافو کلك ردے څکه دوئ څلور نه منی صرف یو اخلی لکه ته روسته تناقض اوګوره ! :

(۷) – وقال اشرف علی فی تذکرة الرشید ج (۱۳۱/۱) : *اس پر اجماع نقل کیا گیا ہے کہ مذاہب اربعہ کو چھوڑ کر مذہب خامس مستحدث کرنا جائز نہیں الخ ـ*

(۸) – وفی فتاوی حقانیه ج (۳٦/۲) *تقلید مذاہب اربعہ احادیث سے ثبوت : اتبعوا السواد الاعظم ـ*

د څلور مذهبونو تقلید په احادیثو ثابت دے څکه فرمائی : اتبعوا السواد الاعظم نو څلور مذهبه واجب الاتباع شول د دوی په نزد باندے ـ

(۹) – وفی الاشباه والنظائر (۱۳۱) لابن نجیم وفتاوی حقانیه (۳۲/۲) : وما خالف الائمة الاربعة فهو مخالف للاجماع ـ د څلور مذهبونو خلاف کول د اجماع خلاف کول دی ـ

زه وایم : بیا خو بخاری او مسلم، سفیان، اوزاعیؒ او ابن المبارك وغیره ټول د اجماع خلاف دی ؟ ـ

(۱۰) – فتاوی حقانیه (۳۸/۲) *مذاہب اربعہ قرآن اور سنت کے موافق ہے، لہذا مذاہب اربعہ حق پر ہیں کوئی بھی باطل پر نہیں ـ*

نو چه څلور واړه د قرآن او حدیث برابر شو او یو هم باطل نشو نو تاسو دا درے حصے قرآن او حدیث باندے ولے عمل پریخودلو او

بله دا چه د حق پریخودل څرنګ دی ؟ عجیب وغریب خبرے دی ۔

(۱۱) – وفی الدر المختار ورد المحتار (۱/۳٤) لایجوز احداث قول خارج عن المذاهب الاربعة ۔ د څلور مذهبونونه بهر بل قول ایجاد کول جائز ندی بلکه صرف څلور مذهبه باندے تګ پکار دے ۔

**تناقض :**

بیا وائی (احناف) چه درے مذهبه خطا دی ۔

(۱) – در مختار د فقه حنفی معتبر کتاب کښ لیکی (۱/۳۳)

وفیها اذا سئلنا عن مذهبنا ومذهب مخالفنا قلنا وجوباً مذهبنا صواب یحتمل الخطأ ومذهب مخالفنا خطأ یحتمل الصواب قال فی الدر المختار قوله (مخالفنا ) ای من الائمة المجتهدین ۔

چه زمونږ د فقهي په کتابونو کښ لیکی چه که څوك مونږ نه تپوس اوکړی چه ستاسو مذهب او د امام شافعی او مالك او احمد رحمهم الله مذهب څرنګ دے ؟ مونږ به ورته دا جواب ورکوو او دا جواب واجب دے چه ورئے کړو: چه زمونږ مذهب حق دے خو کیدے شی چه خطا په کښ وی او ددے نور علماؤ مجتهدینو مذهب خطاء دے کیدئ شی چه حق په کښ وی ۔

نو اوګوره دا نور مذاهب خطا او غلط ګڼړی ۔

ددے وجے نه دغه مذهبونو باره کښ وائی درمختار کښ :

(۲) – من انتقل الی مذهب الشافعی یعزر ۔ درمختار (۳/۹۰)۔

د امام شافعیؒ مذهب ته که څوك لاړونو هغه له به تعزیر

ورکول کیږی ۔
نـو دا څرنګ حق شو چه سړے ورشی نو هغه ته به تعزیر ورکول کیږی ۔
(۳) – دارنګه اشرف علی تهانوی فرمائي : په امداد الفتاوی (٥٦٥/٤) کښں وجوب تقلید شخصی وبطلان تلفیق کالشمس فی کبد السماء واضح ہوگیاالخ ۔ مطلب دا دے چه وائی : ما چه کوم تفصیل وکړو د هغے نه وجوب د تقلید د یو امام صاحب صرف چه د نورو امامانو تقلید به نه کوی داسے واضح شو لکه نمر پشان ۔
نـو اوګوره صرف د یو امام تقلید لازم ګڼړی نو باقی مذاهب اتباع او تقلید ناجائز ګڼړی ۔
(٤) – بل مثال اوګوره په رد المحتار (۳۳۰/۳) کښں د زوجه المفقود باره کښں لیکی : ولا حاجة الى الافتاء بمذهب الغير لامكان الترافع الى مالكی يحكم بمذهبه ۔
نـو تـه اوګوره چه بل مذهب ته اوړیدل ورته څومره بد ښکاری تردے چه په موافق د مذهب د امام مالك فتوی ورکول صرف په یوه مسئله کښں ورته داسے ښکاری لکه کفر ته اوړیدل او حال دا چه هغه صحیح مسئله هم ده نو دا څرنګ څلور مذهبونه حق شول چه په هغه نور عمل کول ورته بد ښکاری ؟۔
(٥) – وفی امداد الفتاوی لاشرف علی التهانوی (٦٤/٤) ہندوستان میں دوسری مذاہب کے تقلید ممکن نہیں غیر حنفیہ کے ۔
نـه تـه اوګوره وائی : پـه نـور مـذهبـونو باندے عمل کول پـه

هندوستان کښ ممکن ندے پاتے لا دا چه جواز ورکړے شی ۔

(٦) – دا خبره مولوی زکریا صاحب په تقریر بخاری کښ هم کړے ده (۸۲) حدیث عائشه اول ما بدئ به رسول الله ﷺ په تشریح کښ لیکی چه *کہ ہندوستان میں بلاتقلید حنفیہ کے چارہ ہے نہیں ہے۔*

(۷) – وفی رد المحتار (۱/۵۲) واما المقلد فانما ولاه یحکم بمذهب ابی حنیفة فلا یملك المخالفة الخ فلا ینفذ قضاء ه اصلا قلت ولا سیما فی زماننا ثم قال وهذا صریح الحق الذی یعض علیه بالنواجذ ۔

مطلب دا چه قاضی د امام صاحب په مذهب به همیشه فیصله کوی خاصکر مقلد قاضی ځکه هغه خو حاکم وقت ددے دپاره مقرر کړے چه صرف مذهب حنفی به چلوی الخ نو ته اوګوره بل مذهب نه منی ددے نه زیاته تصریح ۔

(۸) – په رد المحتار کښ دی (۱/۴۸) دارنګه درمختار) ویفتی بقول الامام علی الاطلاق ثم بقول الثانی ثم بقول الثالث ثم بقول زفر والحسن بن زیاد۔

نو ته اوګوره دا څومره تعصب دے امام شافعی، امام مالك، امام احمد، امام بخاری، سیدنا سفیان الثوری وغیرهم ورته د سره ددے امت مسلمه علماء نه ښکاری صرف د امام ابو حنیفه شاګردان او هغه ورته ملیان ښکاری دا څومره تعصب دے او وائی چه څلور مذهبه حق دی او حال دا چه مخکښ ئے اوویل چه د ابویوسف، محمد او زفر په قول عمل جائز ندے؟ ۔

(۹) - وفی فتاوی حقانیه (۳۱/۲) پاکستان میں دوسری مذاہب کی تقلید جائز نہیں ۔

بیا ئې پرې نص د شاه ولی الله نه پیش کړې دې چه هغه وئیلی دی : نو ته اوګوره دا نور مذاهب به یا حق وی یا باطل که حق وی نو ولې په عمل جائز ندې او که باطل وی بیا ورته څرنګ حق وائی۔ دا څو مره د جهالت خبرې دی دا قسمه خبرې د مقلدینو سره لائق دی چه وکړی ۔

(۱۰) - وفی میزان الاعتدال للذهبی (٥١/٤) - قال محمد بن موسى البلاساغونی الحنفی المتوفی (٥٠٦) هـ القاضی لو کان لی امر لاخذت الجزیة من الشافعیة ۔

محمد بن موسى حنفی وائی : چه قاضی هم وو د دمشق که زما وسع کیدلې ما د اما شافعی مذهب والو نه جزیه اخستله ۔

نو ته اوګوره کفارئې ګڼړی او بیا وائی څلور مذهبه حق دی او دلته ترې جزیه اخلی ۔

(۱۱) - وفی فتاویٰ بزازیة علی هامش الهندیة (۱۱۲/٤) قال الامام السفکردری لاینبغی للحنفی ان یتزوج من شافعی المذهب ولکن یتزوج منهم ۔

بزازیه والا نقل کوی د بعض علماء احنافو نه چه د حنفی د لور نکاح د شافعی سره نه کیږی او بالعکس کیږی ۔

نو ته اوګوره د اهل کتاب نه هم غټ ګمراه او کافر ګڼړی او بیا وائی څلور مذهبه حق دی ۔

(۱۲) – وفی شرح الوقاية كتاب الطلاق (۱۷٤/۲) واصحابنا لما شاهدوا الضرورة فی التفريق لان دفع الحاجة الدائمة لايتيسر بالاستدانة والظاهر انها لاتجد من يقرضها وغنی الزوج فی المال امر متوهم استحسنوا ان ينصب القاضی نائبا شافعی المذهب يفرق بينهما ـ

يعني چه زنانه ته خاوند خرچه نه ورکوی نو احناف وائی چه ددے ښځے ضرورت شته جدا کولو ته خو زمونږ مذهب ندے نو والی او حاکم له پکار دی چه یو شافعی سړے راولی او هغه دِ تفریق راولی او حنفی دِ دا کار نه کوی چه د حنفیت خلاف رانه شی، ځکه د حنفیت خلاف خو ډیر لوئی جرم دے بیا آسمان راغورځیږی ـ

نو ته اوګوره حنفی قاضی تفریق هم نشی کولے په یوه مسئله کښ چه د امام شافعی وغیره د مذهب موافق وه ځکه بیا د مذهب حنفی خلاف راځی او بل مذهب ته اوړیدل دوی ته سو چه کفر ښکاری که تا سره علم وی دے مسئله کښ سوچ وکړه ـ

(۱۳) – وقال ابن الهمام الحنفی فی فتح القدير (۳٦٠/٦) فی كتاب القضاء، ومحمد طاهر الفنجفيری فی حقيقة المودودی (٦٣) المتنقل من مذهب الی مذهب آخر باجتهاد وبرهان آثم يستحق التعزير فبلا اجتهاد وبرهان اولی ـ

د یو مذهب نه بل مذهب ته تلونکی په دلیل سره ګنهګار دی د تعزیر مستحق دی نو بلا دلیل که ځوك واوړی نو بیا خو په طریقه اولیٰ ګنهګار دے ـ

(١٤) – وفي فتح القدير لابن الهمام (١/ ٣٨٠) باب الوتر ذكر ابو اليسر ان اقتداء الحنفي بشافعي المذهب غير جائز من غير ان يطعن في دينهم لما روى مكحول النسفي رحمه الله عن ابي حنيفة من رفع يديه عند الركوع والرفع منه تفسد صلاته وجعل ذلك عملاً كثيراً الخ ۔

بعض احناف وائی د شافعي مذهب والا پسے مونځ نه کيږی اګرکه مسلمانان دی ځکه ددے رفع اليدين کوی او امام ابو حنيفه وائی دا عمل کثير دے مونځ فاسدوی نو اوګوره بل مذهب والا پسے مونځ ناجائز ګڼړی او وائی چه ټول حق دی ؟ ۔

(١٥) – دا خبره په کتاب د ابن محمود کښې هم شته او روسته هم راځي ان شاء الله ۔

(١٦) – او فواتح الرحموت شرح مسلم الثبوت کښې دی (٤٠٧/٢) آخری صفحه : چه د ائمه اربعو نه سوئ د نور مذاهبو خبره منل هم شته کله چه فتوی صحيح ثابته شی :

اذا المجتهدون الآخرون ايضا بذلوا جهودهم مثل الائمة الاربعة وانكار هذا مكابرة وسوء ادب بل الحق انه انما منع من تقليد غيرهم لانه لم تبق رواية مذهبهم محفوظة حتى لو وجدت رواية صحيحة من مجتهد آخر يجوز العمل بها الخ تفصيلا ۔

نو اوګوره دا وائی : چه د ځلور مذهبونو پورے اختصاص نشته د نورو مذاهبو اتباع هم صحيح ده کچرته د هغوی نه نقل صحيح ثابت شی نو کله څه وائی او کله څه وائی ؟ ۔

## (۱۱) - یولسمه مسئله او تحقیق :

دا دے چه د امام ابو حنیفه په باره کښې کله وائی چه غټ محدث دے په لکهونو احادیث ئے یاد وو کله وائی : زرګونه کله سوونه یاد وی او کله وائی قلیل الحدیث وو۔

ته خپله د احنافو دا لاندے حوالجات اوګوره :

(۱) - قال الشیخ زکریا فی درس بخاری (۱۲/۱) په حدیث د المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده *( کہ یہ حدیث امام ابوحنیفہ نے پانچ لاکھ احادیث سے انتخاب کیا ہے۔*

نو اشاره کوی دے ته چه د امام صاحب سره پنځه لاکه احادیث مخکښې پراته وو۔

(۲) - او تقی عثمانی لیکی په درس ترمذی (۹٦/۱) کښې چه *امام اعظم نے کتاب الآثار کو چالیس ہزار احادیث میں سے انتخاب ہے۔*

*پھر لکھتا ہے (۹۸) کہ امام صاحب کے ایک شاگرد کا قول ہے کہ امام صاحب کے تصانیف میں ستر ہزار احادیث ملتے ہیں .*

تعجب دے چه هغه احادیث څه شو او د کتاب الآثار قیمت ته روسته اوګوره چه څه دی په عبارت د ولی الله صاحب کښې هغه فرمائی : حجة الله البالغة (۱۳٤/۱) فی بیان طبقات کتب الحدیث وان شئت الحق الصراح فقس کتاب الموطأ بکتاب الآثار لمحمد والامالی لابی یوسف تجد بینهما بعد المشرقین فهل سمعت احداً

من المحدثين و الفقهاء تعرض لهما واعتنى بهما ؟ ۔

نـو اوګـوره کـتـاب الاثار هيڅ قيمت نه لری د علماؤ په نيز بلك کتـاب الآثار اکثـر روايات د تـابـعينو دی صرف څلور سوه روايات مرفوع دی او هغه هم اکثر ضعيف دی ۔

(۳) – فتـاوی حـقانيه کښ ليکی (۲۹/٤) مقدمه اعلاء السنن د ظفر احمد عثمانی حنفی متعصب کښ (۱۹۲/۱) نقل دی :

قال محمد بن سماعة ان الامام ذكر فی تصانيفه نيفا وسبعين الف حديث وانتخب الاثار من اربعين الف حديث ۔

مونږ وايو دغه احاديث څه شو ؟ ۔

(٤) – عمد ة الـرعـايـه مـقـدمـه شـرح الـوقـايه کښ عبد الحی صاحب ليکی (۳۵/۱) وذكر الزرقانی وغيره فی عدد رواياته ( ای ابـی حـنـيـفة ) اقـوالاً (۱) احـدهـا ان رواياته خمسائة وثانيها سبعمائة وثـالثهـا بـضـع والف ورابعها سبعمائة والف وخامسها ست وستون وستمائة ورد على قول ابن خلدون انها سبعة عشر ۔

د امـام صـاحـب روايـاتو کښ ډير اقوال دی چه څو يه وی څوك (۵۰۰) سوه يـادوی څـوك (۷۰۰) څـوك څـه دپاسـه زر (۱۰۰۰) څوك (۱۷۰۰) اولس سوه څوك (٦٦٦) وائی ابن خلدون وائی چه صرف (۱۷) اوولـس دی لـيـکـن هـغـه قـول عبد الحی رد کړے دے نو اوګوره د امام صاحب ټول روايات چه اکثر واخلو نو (۱۷۰۰) سوه شو ۔

نو اووياً زره څلويښت زره خبره صحيح نشوه ۔

لـيـکـن تقی صاحب په درس ترمذی کښ (۹۹/۹۸/۱) يو وهم

پیش کړې دې چه د امام ابو حنیفه روایات ستر هزار دی بیا وائی
چه ستر هزار خو د هغې کتابونو کښې نه ښکاری نو بیا جواب
کوی په وهم سره چه ۔ بعض لوگ اس پر تعجب کا اظہار کرتے ہیں اور اسے مبالغہ
سمجھتے ہیں اس لئے کہ امام صاحب کہ تصانیف میں اتنی احادیث بظاہر نہیں آتیں لیکن
متقدمین کا طریقہ کار اگر ذہن میں ہو تو اس مقولہ کے صداقت واضح ہو جاتی ہے درحقیقت
محدثین کے ہاں حدیث بیان کرنے کے دو طریقے تھی بعض مرتبہ وہ حدیث کو حضور (نبی
ﷺ) کے طرف منسوب کر کے مرفوعا بیان کرتے اور بعض مرتبہ وہ احتیاط کے بنا پر وہ
حدیث نبی علیہ السلام کے بجا اپنی طرف منسوب کرتے ہیں یہ ان کے غایت احتیاط ہیں،
اس سے یہ بات واضح ہو جاتی ہے کہ متقدمین میں بہت سے احادیث مرفوع کو خود اپنا قول
قرار دے کر فقہی مسئلے کے طور پر ذکر کرتے ہیں الخ ملخصاً اگر اس لحاظ سے دیکھا جائے تو
امام ابوحنیفہ کی مرویات ستر ہزار تک پہنچ جانا کچھ بعید نہیں ۔

نو سوچ اوکړه د امام صاحب ټول اقوالو نه ئې حدیث نبوی
جوړ کړل او اوویا زره حدیث ترې جوړ کړل ۔

مونږ وایو دا ټول اوهام دی، روغ او صحیح حدیث پریدی او
وهم پرستئ پسې روان یئ ۔

دغه قانون د سلف هغه وقت دې چه کله دغه روایت موقوفا او
مرفوعا دواړه راشی نو بیا خلق وائی چه دلته راوی د مرفوع نه
موقوف جوړ کړی دی او کله چه یوه خبره د یو عالم وی او هیڅ
مرفوع حدیث کښې دغه نه وی په یو کتاب کښې نو بیا هغه
څرنګ نبوی حدیث جوړیږی بیا خو د تابعینو او اتباع تابعینو
وغیرهم ټول اقوال حدیث شول نو د مرفوع او موقوف او مقطوع

تـه بیا څـه ضرورت شـو ؟ لیـکـن دا خلق پـه امام صاحب دومره میـئین دی چه د هغه دپاره دروغ هم روا ګڼړی، یا وهم پرستی کښ پریوځی ۔ والعیاذ بالله ۔

بیا **بیرته لیکی** : چه امام صاحب سره احادیث کم وو ۔

(۱) – لـکـه عبـد الحی اللکنوی په طبقات الفقهاء کښ لیکی (۱۳) دارنګـه مـقـدمـه د جـامـع صغیر (۸) کښ دی چه دا دواړه یو کتاب دے ۔

وفـی الانصاف انقرض المجتهد المطلق المنتسب فی مذهب ابی حنیفة بعد المائة الثالثة وذلك لانه لا یکون الا محدثاً جیداً واشتغالهم بعلم الحدیث قلیل قدیماً وحدیثاً الخ ۔

د احـنـافـو اشتـغال په علم الحدیث د پوخا زمانے نه کم دے لکه وس هـم د حـدیـث سـره کـم تعلق لری نو اوګوره د احنافو د احادیث نبـویـه سـره تـعلق هره زمانه کښ کم دے او دا حقیقت دے اوس هم والله که په قرآن یا په حدیث پو هیږی صرف تحریفات کوی ۔

(۲) – وقــال الشــاه ولــی الله الـدهـلـوی فــی حجة الله البـالـغة (۱۳٤/۱) فـی بیـان طبقات کتب الحدیث : وان شئت الحق الصراح فقس کتاب الموطأ بکتاب الآثار لمحمد والامالی لابی یوسف تجد بینـهـمـا بـعـد الـمشـرقیـن فهل سمعت احداً من المحدثین والفقهاء تعرض لهما واعتنی بهما ؟ ۔

چـرتـه کتـاب د امـام مـالك او چـرتـه کتـاب الاثار د امام محمد صـاحـب او امـالـی د ابویوسف صاحب ددے مینځ کښ دومره فرق

دے لکه د مشرق او مغرب ۔
او کوم محدث دے یا کوم فقیه دے چه په کتاب الاثار حواله ورکوی یا څه اهتمام پرے کوی ۔
نو اوګوره شاه صاحب څومره ښه خبره کړے چه د ابویوسف او محمد صاحب کتاب الامالی او کتاب الاثار چندان قیمت نه لری ۔ هسے چتی په مقلدین مئین دی ۔
ښه دے چه د امام صاحب خپل کتاب نشته ورنه مقلدینو خو به ترے قرآن جوړ کړے وے بلکه د قرآن دپاسه کړے به ئے وے کما فعلها ذلك مع الجامع الصغير والمبسوط ۔
بیا شاه لیکی : الطبقة الرابعة : فالاشتغال بجمعها و الاستنباط منها نوع تعمق من المتاخرين، ويدخل فی هذه الطبقة كتاب جامع المسانيد للخوارزمی ۔
د جامع المسانید چه د امام صاحب روایات خوارزمی جمع کړی دی د هغے هم څه خاص قیمت نشته ملخصا ۔
(۳) – بیا زکریا صاحب لیکی تقریر بخاری کښ (۱۱/۱) کتاب العلم : *کہ امام ابوحنیفہ کے احادیث کم ہیں۔*
(٤) – قال عبد الحی ؒ فی النافع الكبير (٥٤) قال عبد الوهاب الشعرانی : اعتقادنا و اعتقاد كل منصف فی ابی حنيفة انه لو عاش حتی دونت احاديث الشريعة وبعد رحيل الحفاظ فی جمعها من البلاد و الثغور وظهر بها لاخذ بها وترك كل قياس كان قياسه و كان القياس قل فی مذهبه كما قل فی مذهب غيره لكن لما كان ادلة

الشريعة متفرقة فى عصره مع التابعين وتبع التابعين فى المدائن والقرىٰ كثر القياس فى مذهبه بالنسبة الى غيره من الائمة ضرورة لعدم وجود النص فى تلك المسائل التى قاس فيها بخلاف غيره من الائمة آهـ ۔

دا عبارت ښه اوګوره ډیره ښه خبره عبد الوهاب الشعرانی او عبد الحی صاحب کړے ده ۔ مطلب دا دے چه امام صاحب ته کم احادیث رسیدلی دی او دده په مذهب کښ قیاسونه ډیر دی او د نورو علماءِ کرامو په مذهب کښ احادیث ډیر دی او قیاس کم دے ۔

نو اوګوره خپله عبد الحی صاحب اقرار کوی چه د امام صاحب احادیث کم دی، قلیل الحدیث دے قیاسونه ډیر دی نو اے مقلدینو تاسو ولے قیاسونو پسے ځئ او احادیث د رسول الله ﷺ پریدئ کوم چه دے نورو مذاهبو کښ موجود دی ؟ د ځان دشمنان یئ !

لیکن بیا ظفر احمد عثمانی په قواعد علوم الحدیث کښ (٤٥٤) کښ دا مذکوره خبره په تعصب او په جهالت رد کړے ده ځکه په دوی صحیح خبره بده لګیږی ۔

## (۱۲) - دولسمه مسئله او تحقیق :

احناف لیکی چه ټول مسائل قرآن او حدیث کښ نشته او قرآن او حدیث کښ تعارض راتلے شی او فقه حنفی کامله ده هره مسئله په کښ ده ۔

او بیا لیکی چه فقه حنفی کښ ډیرے مسئلے نشته او ناقصه

ده او فقه کښ غلطې مسئلې شته خو امام صاحب ندی وئیلی ۔

(۱) – قال الميداني في رسالته تقليد کا مسئله (۱۰) مسائل اجتهاد یہ وہ مسائل ہے جس میں نص صریح موجود نہ ہواور یہ بھی اللہ کا احسان ہے کیونکہ نصوص محدود ہیں اور مسائل لامحدود نئے نئے مسائل پیدا ہوتے رہتے ہیں الخ ۔

مطلب دا دے چه قرآن او حدیث محدود دی یعنی لږ شان دلائل په کښ دی او مسئلې خو ډیرے زیاتے دی نو ټولے مسئلے قرآن او حدیث کښ نشته نو ځکه زمونږ فقه حنفی ضروری ده هغے کښ ټولے مسئلې شته ۔

(۲) – دارنګه منظور مینګل لیکی تحفة المناظر کښ (۱۲۰) تمام مسائل منصوص علیہا نہیں ۔

قال السرخسي في اصوله (۲/۱۳۸) ومعلوم ان كل حادثة لايوجد فيها نص والنصوص معدودة متناهية ولا نهاية لما يقع من الحوادث الى قيام الساعة ۔

نو ته اوګوره قرآن او حدیث نیم ګڼړی ګڼړی ۔

او د قرآن او حدیث قواعد او اصول ته نه ګوری چه هغه څومره جامعیت لری او حوادث خو غیر متناهیه دی لیکن د قرآن او حدیث قواعد ورته ندی معلوم چه ټول حوادثو حکم حل کوی لیکن مقلد د څه نه خبر دے ؟ ۔

(۳) – دارنګه ظاهر ګل افریدی په هدایت نامه غیر مقلدین کښ وائی (۲۵) چه مسائل فرعیه په دوه قسمه دی منصوص او غیر منصوص بیا منصوص په دوه قسمه دی متعارض او غیر

متعارض بيا غير متعارض په دوه قسمه دی محکم او محتمل ـ

نو په دے عبارت کښې وائی چه ډیرے مسئلے داسے شته چه قرآن او سنت کښې نشته ـ

روستـه ئے بیا د هغے مثالونه راوړی دی نو حاصل مطلب دا دے چه فقه حنفی کامله ده او قرآن او حدیث ناقص دی ـ

**تناقض** : بیا لیکی :

(۱) – رد المحتار (۱/۴۸) ان الفقه الحنفی لا یکون فیه روایة عن ابی حنیفة او تختلف الروایات عنه واذا لم یوجد عنه ولا عن اصحابه روایة اصلا وتکلم فیه المشائخ المتأخرون قولاً واحداً یوخذ به فان اختلفوا فیوخذ بقول الاکثرین وان لم یوجد منهم جواب البتة نصاً ینظر المفتی فیها نظر تأمل وتدبر واجتهاد ـ

نو فقه حنفی ناقصه شوه کامله نده او تعصب ته اوګوره چه صرف د احنافو خبره دِے مفتی منی نور مذاهبو ته رجوع کول خو صحیح ندی ؟ او قرآن او حدیث ته رجوع کول خو ورته ګناه ښکاری بلـه دا چه مخکښې تیر شو مفتی به مجتهد وی او دے زمانه کښې مفتی نشته نو څرنګ نظر تأمل وتدبر واجتهاد به وکړی او هغه خو لایعرف الغث والسمین دی نو هغه به څرنګ مجتهد شی کله جاهل کوی او کله مجتهد کوی نو دا څه دی ؟ ـ

بیا لیکی :

(۲) – قال فی الدر المختار (۱/۴۷) مسائل اصحابنا الحنفیة علی ثلاث طبقات ظاهر الروایة وهی ما فی کتب محمد الستة وهی ثابتة

عنه بالتواتر والثانية مسائل النوازل وهی منقولة عنه فی غیر تلك الكتب الثالثة الواقعات وهی مسائل استنبطها المجتهدون المتأخرون لما سئلوا عنها ولم يجدوا فيها رواية عن اصحابنا الثلاث وهؤلاء كثيرون واول من جمع منهم فی ذلك كتاب النوازل لابی الليث السمرقندی ملخصاً ۔

**نو معلومه شوه چه فقه حنفی کامله نده ځکه ډیر مسائلو کښ د ابوحنیفه، ابویوسف او محمد نه نقل نشته نو څرنګه کامله شوه او قرآن او حدیث ناقص شو، هلته خو اجتهاد کوی او دلته قرآن او سنت کښ سوچ نه کوی چه مسائل پرې حل کړی** ولكن هذه شقاوة نعوذ بالله منها **ځان ته قرآن او سنت په زوره ګمراهی ښکاره کړی دی ۔**

**(۳) – دغه عبارت په طبقات الفقهاء کښ هم شته (۱۵) لعبد الحی اللکنوی ؒ۔**

(٤) – وفی رد المحتار (۱/۳۵) ان المسائل النوازل سئل عنها المشائخ المجتهدون فی المذهب ولم يجدوا فيها نصاً (عن ابی حنيفة فافتوا فيها تخريجاً الخ ۔

**نو فقه حنفی ناقص شوه ۔**

**(٥) – دارنګه رد المحتار لیکی (۱/۳٤)** او يقال : المراد بالفقه ما يشمل مذهبنا وغيره فانه بهذا المعنى لا يقبل الزيادة اصلا فانه لايجوز احداث قول خارج عن المذاهب الاربعة ۔

**مطلب دا دې چه فقه بالکل جامع ده هره مسئله په کښ شته**

**یا منصوصا من الاحناف یا د هغوی د عباراتو نه مفهوم ده او که فقه حنفی ځان له وانخلی د نورو امامانو فقهے ورسره ملګری کړے بیا خو تولے مسئلے په کښ شته یوه خبره هم بهر نده د دغه فقهونه نو اوګوره فقه حنفی کامله ګڼړی او کله وائی چه نورے فقهی ورسره ملګری کړه د مذاهب ثلاثو او کتاب او سنت دا شان نه ګڼړی ۔**

(٦) – قال عبد الحی فی النافع الکبیر (١٦) لعلك تتفطن من هذا البحث انه لیس کل ما فی الفتاوی المعتبرة المختلطة کالخلاصة والظهیریة وفتاوی قاضی خان وغیرها من الفتاوی التی لم یمیز اصحابها بین المذهب والتخریج وغیره قول ابی حنیفة وصاحبیه بل منها ما هو منقول عنهم ومنها ما هو مستنبط الفقهاء ومنها ما هو مخرج الفقهاء فیجب علی الناظر فیها ان لا یتجاسر علی نسبة کل ما فیها الیهم بل یمیز بین ما هو قولهم وما هو مخرج من بعدهم ومن لم یتمیز بین ذلك وبین هذا اشکل الامر علیه ۔

**نو معلومه شوه چه فقه حنفی ناقصه ده او د امام صاحب اقوالو کښ خو تولے مسئلے د دین ندی حل شوی ۔**

**(۷) – بیا لیکی عبد الحی صاحب په النافع الکبیر (۱۲) کښ**
: اذا عرفت هذا فح یسهل الامر فی طعن المعاندین علی الامام ابی حنیفة وصاحبیه فانهم طعنوا فی کثیر من المسائل المدرجة فی فتاوی الحنفیة انها مخالفة للاحادیث الصحیحة وانها لیست متاصلة علی اصل شرعی ونحو ذلك وجعلوا ذلك ذریعة الی طعن الائمة الثلاثة ظنا منهم انها مسائلهم ومذاهبهم ولیس کذلك بل هی من تعریفات

المشائخ استنبطوها من الاصول المنقولة عن الائمة فوقعت مخالفة للاحاديث الصحيحة فلا طعن بها على الائمة الثلاثة بل ولا على المشائخ ايضاً فانهم لم يقرروها مع علمهم بكونها مخالفة للاحاديث اذ لم يكونوا متلاعبين فى الدين بل من كبراء المسلمين بهم وصل الينا ما وصل الينا من فروع الدين بل لم يبلغهم تلك الاحاديث ولو بلغتهم لم يقرروا على خلافها فهم فى ذلك معذورون ماجورون ۔

**ددے عبارت نه معلوميږی چه فقه حنفی کښ غلطے مسئلے شته اوکامله نده ۔**

**وفی رد المحتار (۲۴۵/۱) مصری چهاپ ) کتاب تجنيس صاحب الهدايه ليکلی دی :** لبيان ما استنبطه المتاخرون ولم ينص عليه المتقدمون ۔

**اوګوره فقه د امام صاحب ناقصه ده ۔**

## (۱۳) - ديارلسم تحقيق :

**دا دے چه مقلدين ليکی چه صحابه کرامؓ کښ مقلدين وو او هغوی هم تقليد کولو بلکه نبی عليه السلام ته که مقلد اووئيلے شی نو هم صحيح ده ( والعياذ بالله ) ۔**

**او بيا وائی چه تقليد روسته زمانه کښ شروع شويدے او تقليد جهالت دے الله تعالی ندے لازم کړے ۔**

**(۱) منظور مينګل په تحفة المناظر کښ ليکی (۱۱۰) :**

صحابہ کرامؓ بھی مقلد تھے، ابن تیمیہؒ فرماتے ہیں: فاعلم ان مقلده مصيب كتقليد الرسول ۔ وقال ولی الله الدهلوی : فاعلم ان الصحابة لايقلدون الا صاحب الشرع ۔

پھر فرماتا ہے منظور صاحب (۱۱۱) میں: ''صحابہ تو مقلد تھے لیکن اگر اس سے ایک قدم آگے بڑھکر کہا جائے کہ نبی اکرم ﷺ بھی مقلد تھے تو اس کی بھی گنجائش ہے'' الخ۔

نو اوګوره صحابه کرامؓ څه کوی چه رسول الله ئے هم مقلد کړو (والعياذ بالله) او حال دا چه نه ئے کوم دليل د قرآن نه راوړو او نه د حديث نه د صحابه کراموؓ نه او نه د خپل امام نه چه ابو حنيفه دی بلکه د ځان نه ئے يو د ړانده غرګی ويشتو صرف په ابن تيميه او ولی الله صاحب باندے حواله ورکړه او حال دا چه د هغوی په عبارت کښې د تقليد بيله معنی مراد ده اصطلاحی تقليد ندے مراد ورنه بيا به د ابن القيمؒ ددے قول سره څه کوی ؟ :

اذ اجمع العلماء ان مقلداً للناس والاعمىٰ هم اخوان
والعلم معرفة الهدىٰ بدليله ماذاك والتقليد مستويان

بيا به د امام قرطبیؒ د قول سره څه کوی چه هغه وائی خپل تفسير کښې (۲/۲۱۲) (خامسة) التقليد ليس طريقاً للعلم ولا موصلاً له لا فی الاصول ولا فی الفروع وهو قول جمهور العقلاء والعلماء خلافاً لما يحكی من جهال الحشوية الخ .

نو تقليد خو د علم لاره نده د جهالو کار دے نو آيا صحابه کرامؓ جاهلانو وو څه ؟ او آيا دا نسبت والعياذ بالله رسول الله ﷺ ته صحيح دے څه ؟ ۔ الله تعالی دِے هلاك کړی پدے بيهوده خبرو

بـانـدې د مـقـلـد د شان سره دغه شان کفري خبرې مناسب دي ځکه مقلد جاهل احمق وي خپل جهالت اوس په رسول الله ﷺ ورتپي ـ اې مسـلـمـانـانـو ! دا ظـلـم نـدې چه دا مقلدين ئې کوي ؟ تاسو په خپل رسول الله ﷺ نه خفه کيږئ ! ـ

زه وايـم : آيـا صحابه کرامؓ څه احناف وو ؟ يا شوافع وو ؟ هغوی خو صـرف د قـرآن او حـديث متبـع وو ـ د صـحابـه کرامو تقليد ثـابتـوئ چـه حنفيت ثابت شي هغه متل دې : وام دِې کوم ځائې او ډب دِ کوم ځائې کوي ـ

دارنـګـه د طحاوي قول سره به څه کوې چه : لا يقلد الا عصبی او غبی، مجموعة الرسائل (١٢) او لسان الميزان (١/ ٢٨٠)

نو آيا صحابه کرامؓ عصبيان يا غبيان وو څه ؟ والعياذ بالله ـ

بـلـه دا وايـم چه د ابن تيميهؒ ددې قول سره به څه کوي چه هغه وائي : قـال : انـه متی اعتقد انه يجب على الناس اتباع واحد بعينه من هـؤلاء الائـمة الاربعة دون الآخر فانه يجب ان يستتاب فان تاب والا قتل ـ الفتاوی المصرية (٤٦) نـو ابن تيميه خو تاسو قتلوی او ته د هغه د عبارت نه غلطه معنی اخلې ؟ ـ

(۲) – دارنـګـه تـقی عـثمانی درس ترمذی کښ وائی (١/١١٧، ١١٨) دارنګه په تقليد کا شرعی حيثيت کښ وائی (٩٠) :

*عہد صحابہ میں تقلید مطلق، اور عہد صحابہ میں تقلید شخصی کے متعدد مثالیں ـ*

بيـا ئـې د صحابه کرامو د تپوس مثالونه راوړی دی چه د يو بل نـه بـه ئـې سوال کولو يا د موافقت الرأی مثال ئې راوړې دې او هغې

ته ئے تقلید نوم ایخوستے دے ۔

نو اوګوره صحابه کرامؓ کښې هم مقلدین وو ددوی په نیز نو مونږ وایو چه د چا تقلید به ئے کولو ؟ آیا دوی احناف وو څه ؟ عجیب او که نه د رسول الله ﷺ متبع وو ؟ ۔

(۳) – دارنګه صحابه کراموؓ ته چه دوی د تقلید نسبت کړیدے نو په کتاب فتاوی حقانیه (۳۵،۳٤/۲) کښې کړے دے دارنګه اثبات التقلید د سرفراز صاحب کښې او اوکاړوی په مجموعه الرسائل کښې دارنګه نور ډیرو متاخرینو مقلدینو په ګند د تقلید کښې ځان سره صحابه کرامؓ شریك کړی دی چه هغوی ترے بری دی او الله تعالی ترے بچ ساتلی دی لیکن مقلدین سیلاب اخستی دی هر څه ته لاس اچوی چه بچ شی لیکن خلاصیدے نشی د قرآن او سنت د تورے او سیلاب نه، هلاك کیږی به یا به توبه اوباسی ؟ ۔

(۱) **بیا ددے خلاف** شاه صاحب لیکی په حجة الله البالغه کښې (۱۵۲/۱) اعلم ان الناس کانوا قبل المائة الرابعة غير مجمعين على التقليد الخالص لمذهب واحد بعينه قال ابوطالب المكى فى قوت القلوب ان الكتب والمجموعات محدثة والقول بمقالات الناس والفتيا بمذهب الواحد من الناس واتخاذ قول والحكاية له من كل شيء والتفقه على مذهبه لم يكن الناس قديماً على ذلك فى القرنين الاول والثانى الخ ۔

نو اوګوره وائی : چه صحابه کراموؓ او تابعینو او تبع تابعینوؒ تر څلورمے صدئ پورے د یو مذهب تقلید نه کیدو صرف د ژوندی

عالم نه به تپوس کیدلو او صحابه کرامؓ خو به صرف د رسول الله ﷺ اتباع کوله لکه روسته تفصیلا شاه صاحب لیکلی دی ۔

او په یو عالم پسے ورتلل او د هغه مذهب کښی فقاهت حاصلول د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو او تابعینو زمانه کښی نه وو ۔ نو مونږ وایو چه حنفی مذهب والا ولے ددغه بهترین زمانو خلاف کوی او یو بل مذهب جوړ کړے دے او بیا صحابه کرام هم مقلدین ګنړی نو یا به شاه صاحبؒ دروغ وائی او یا به منظور مینګل دروغ وائی ۔

(۲) – د منظور صاحب نه بهتره خبره د احمد یار نعیمی ده چه جاء الحق کښی لیکی (۳۶/۱) پانچواں باب تقلید پر اعتراضات اور جوابات کے بیان میں : سوال : اگر تقلید ضروری تھی صحابہ کرامؓ کسی کے مقلد کیوں نہ ہوئے ؟ جواب : صحابہ کرام کو کسی کی تقلید کی ضرورت نہ تھی وہ تو حضور علیہ السلام کے صحبت کے برکت سے تمام مسلمانوں کے امام اور پیشوا ہیں کہ ائمہ دین امام ابوحنیفہ وشافعی وغیرہ وغیرہ رضی اللہ عنہما ان کے پیروی کرتے ہیں الخ ۔ نو بریلی د دغه دیوبندی نه بهتره خبره اوکړه ۔ نو اوګوره وائی چه صحابه کرام مقلدین نه وو ۔

دارنګه روسته راځی په مسئله (۱۴) کښی چه رجوع د صحابه کرامو رسول الله ﷺ ته دا تقلید نه دے ۔

## ١٤ - څوارلسم تحقيق :

دوی کلـه وائی تقليد او اتباع يو شے دے نو صحابه کرامؓ او ټول علـمـاء مـقلدين کول مطلب دے او کله وائی نه تقليد او اتباع کښ فرق دے، ته اوګوره لاندے حوالجات :

(١) - قال المولوی منظور مينګل فی تحفه المناظر (١٠٤)
*تقلید اور اتباع ایک ہی چیز ہے تقلید کی تعریف میں لفظ اتباع موجود ہے، ہمارا دعویٰ یہ ہے کہ تقلید اور اتباع ایک چیز ہے، غیر مقلدین اس کے قائل نہیں وہ کہتے ہیں کہ تقلید الگ چیز ہے اور اتباع الگ ہے، تقلید مذموم جب کہ اتباع محمود ہے۔*

(٢) - وقال فی (١٠٦) - *تقلید عین اتباع ہے۔*

مـونږ وايـو چـه د تـقـليـد په تعريف کښ اتباع خو تاسو راوړے ورنه د تقليد تعريف خو دا دے : قبول قول الغير يا اخذ قول الغير ـ دا اتباع تـا د کـوم ځائے راويستلے ده د خپل کور نه عبارت راوړه او زمونږ حق پرے کمزورے کوئ ( مصادره علی المطلوب ده ) ـ

(١) - **بيا احناف** ليـکی لکه ملفوظات اشرف علی تهانوی کښ (١٥٩/٢) ملفوظ نمبر (٢٢٨) *ایک صاحب نے عرض کیا کہ تقلید کی حقیقت کیا ہے؟ اور تقلید کس کو کہتے ہیں؟ فرمایا تقلید کہتے ہیں امتی کا قول ماننا بلا دلیل عرض کیا کہ کیا اللہ اور رسول کے قول کو ماننا بھی تقلید کہلائے گا فرمایا کہ اللہ اور رسول کی حکم ماننا تقلید نہ کہلائے گا وہ اتباع کہلاتا ہے۔*

نـو اوګـوره اشرف عـلـی صـاحـب فرق د اتباع او تقليد اوکړو او

منظور صاحب ئے نه منی.نو فيصله په تاسو ؟ ـ

(۲) – وقال في مسلم الثبوت (۲/ ٤٠٠) مع شرحه فواتح الرحموت على هامش المستصفى : فصل : التقليد العمل بقول الغير من غير حجة كأخذ العامي من مجتهد واخذ المجتهدين من مثله، فالرجوع الى النبي عليه الصلاة والسلام او الى الاجماع ليس منه فانه رجوع الى الدليل وكذا رجوع العامي الى المفتى والقاضى الى العدول، ليس هذا الرجوع تقليداً لايجاب النص ذلك عليهما فهو عمل بحجة لا بقول الغير فقط ملخصاً ـ

نو اوګوره د رسول الله ﷺ خبره منل او عمل پرے کول دارنګه اجماع ته رجوع او مفتی ته رجوع تقليد ندے او اتباع ده نو اوس د منظور صاحب خبره منل پکار دی او که د اصول حنفی معتبر کتاب چه مسلم الثبوت دے ؟ ـ

ليکن د مقلدينو خود ساخته دين دے چه څه ئے زړه اوغواړی هغه ليکی څه تحقيق نشته ، دا خبره بعينه په التقرير والتحبير د ابن الهمام کښې (۳/ ٤٥٣) هم شته دارنګه الاحکام فی اصول الاحکام (٤/ ۲۲۱) کښې هم شته ـ او ارشاد الفحول (٤٤١) ـ

(۳) – وقال احمد يار خان نعيمی الحنفی فی جاء الحق (۱/ ۲۳)

"باب اول تقلید کے معنی اور اس کے اقسام : اس تعریف سے معلوم ہوا کہ رسول اللہ ﷺ کی اطاعت کرنے کو تقلید نہیں کہہ سکتے کیونکہ ان کا ہر قول وفعل دلیل شرعی ہے تقلید میں ہوتا ہے تقلید شرعی کو نہ دیکھنا لہٰذا ہم رسول اللہ ﷺ کے امتی کہلائیں گئیں نہ کہ مقلد اسی طرح عالم کی اطاعت جو عام مسلمان کرتے ہیں اس کو بھی تقلید نہ کہا جائے گا کیونکہ کوئی بھی ان

عالموں کی بات یاان کے کام کواپنے لئے حجت نہیں بناتا''۔

نو اوګوره فرق ئے اوکړو د اتباع او تقلید او نقل ئے د مسلم الثبوت نه کړے دے۔

(٤) - دارنګه اشرفعلی په امداد الفتاوی (٤/٦٠٦) مسائل شتی کښې لیکی : سوال : علماء اہلحدیث لفظ اتباع اور تقلید میں فرق کرتے ہیں مجھ کواس میں عرصہ سے ذوقا واتباعا للا کابر کلام ہے؟ الجواب: اتباع اور تقلید کے بارے میں جو میرا ذہن میں آتا ہے وہ عرض کرتا ہوں اول ایک مقدمہ ممہد کرتا ہوں پھر اپنا خیال لکھوں گا:

مقدمہ یہ ہے کہ لفظ تقلید فروع شرعیہ میں بوجہ اصطلاح کے لغوی معنی میں مستعمل نہیں اور اتباع میں کوئی اصطلاح منقول نہیں اس لئے وہ اپنے لغوی معنی میں مستعمل ہے اور اس کی لغوی معنی ظاہر ہے، کہ تقلید سے عام ہیں اب سوال کا جواب ظاہر ہے کہ ان دونوں کے معنی میں خصوص مطلق کی نسبت ہے یعنی اتباع عام ہے، ہر موافقت کو خواہ وہ تقلید ہو یا غیر تقلید حتی کہ اگر متبع کے پاس مستقلاً بھی دلیل ہو یعنی وحی جیسے ارشاد ہے: ثم اوحینا الیک ان اتبع ملۃ ابراہیم حنیفا یا جیسا ارشاد ہے: فبھداھم اقتدہ یا دلیل مستقل بالمعنی المذکور کا اتباع ہو، جیسا اردشاد ہے :اتبعوا ما انزل الیکم من ربکم، ماانزل خود دلیل شرعی ہے، یا صاحب دلیل مستقل بالمعنی المذکور کا اتباع ہو جیسے اردشاد ہے: لنعلم من یتبع الرسول، یا متبع دلیل کا اتباع ہو جیسے اردشاد ہے: واتبع سبیل من اناب الی، من اناب الی خود دلیل واضح ہے ۔اس کے اتباع کو اتباع کہا گیا اور ان سب اتباعوں پر تقلید مصطلح صادق نہیں آتی، حتی کہ مجتہد کیلئے تقلید کی اجازت نہیں دی جاتی اور اتباع سے منع کی کوئی وجہ نہیں اور تقلید کی اصطلاحی تفسیر میں گو کچھ اختلاف بھی ہو مگر ہر تفسیر پر وہ خاص ہے الخ۔

## (۱۵) - پنځلسم تحقیق :

مقلدین لیکی چه مجتهد دپاره تقلید جائز ندے او کله وائی جائز دے نو کله ئے مقلد کوی او کله ئے د تقلید د کړئ نه بهر اوباسی چه کومه خبره ئے خوښه شی بس کوی -

لکه (۱) رد المحتار (۳۹/۱) کښں لیکی : لان المجتهد لایقلد مجتهداً ثم قال مع ان المجتهد من آحاد هذه الامة لایجوز له التقلید -وائی مجتهد له تقلید جائز ندے -

(۲) – جاء الحق د احمد یار خان (۲۹/۱) کښں دی : *چوتھا باب مجتہد کیلئے تقلید کرنا منع ہے۔*

(۳) – *پھر لکھا ہے(۲٦/۱) تیسرا باب غیر مجتہد کیلئے تقلید ضروری ہے مجتہد کیلئے تقلید منع ہے ۔*

(٤) – اشرف علی صاحب فرمائی : امداد الفتاوی (٤/٦٠٦) *حتی کہ مجتہد کیلئے تقلید مجتہد کی اجازت نہیں* - ( چا ندے ورکړے ) -

(٥) – وفی التلویح والتوضیح (۳۱/۱) معرفة اصول الفقه : قلنا لا یجوز للمجتهد التقلید بل یجب علیه ان یعرف المسائل القیاسیة باجتهاده -یعنی مجتهد دپاره تقلید جائز نه دے بلکه هغه باندے واجب دی چه مسائل به په خپل اجتهاد سره معلوموی -

(٦) – وفی الطحطاوی شرح در مختار (۵۱/۱) الاولی : طبقة المجتهدین وهم الائمة الاربعة وهم غیر مقلدین ملخصاً -

دا قسم عبارت په نورو کتابونو کښې هم شته ـ

(۷) – مجموعة الرسائل (۱۱) او النافع الكبير (۵) کښې هم شته چه ائمه اربعه به تقليد نه کوی : من غير تقليد لاحد لا في الفروع ولا في الاصول ـ

(۸) – وفي الطحطاوي شرح الدر المختار (۱/۳۹) طبع کوئټه :
المجتهد لايقلد مجتهداً آخر ـ

نو مجتهد باره کښې وائي د بل مجتهد تقليد به نه کوی ورلره حرام او منع دے نو که تقليد ښه شے وے نو ولے ئے منع کوی او که بد دے نو ولے ئے په نورو لازمه وئ ؟ ـ

(۱) – بيا منظور مينګل صاحب ليکی تحفة المناظر کښې (۱٤٦) مجتہد کیلئے تقلید کا حکم مجتہد کیلئے تقلید کرنا جائز ہے یا نہیں؟مشہور ہے کہ:
لا يقلد مجتهد مجتهداً امام الحرمین اور دیگر علماء نے بھی اسے اختیار کیا لیکن یہ صرف ان مسائل کے متعلق ہے جن تک مجتہد کی رسائی ہوتی ہے اور جن مسائل میں مجتہد کما حقہ تحقیق نہ کر سکا تو ان میں کسی اور مجتہد کی تقلید جائز ہے، امام مالک مجتہد ہے لیکن ایک چالیس مسئلے پوچھے گئے تو صرف چار کا جواب دیا اور چھتیس کے بارے میں فرمایا: لا ادری،، لہذا ایسے مسائل میں کسی اور مجتہد کی تقلید جائز ہے،

علامہ ابن تیمیہ فرماتے ہیں: فاما القادر على الاجتهاد فهل يجوز له التقليد ؟ هذا فيه خلاف والصحيح انه يجوز حيث عجز عن الاجتهاد ـ

نو اوګوره منظور صاحب د خپلو مشرانو ټولے خبرے پريخوستلی او د امام ابن تيميه تقليد ئے اوکړو او کوشش کوی

چه تقليد د امام ابو حنيفه ثابت کړی دا څه ګډے وډے دی ؟ ۔

او دغـه مـخـکښ حوالجات نه ګوری کوم چه مونږ د احنافو او ديوبنديانو د کتابونو نه پيش کړل ۔

(۲) – وفی نور الانوار (۲۱۷) يعنی ان اباحنيفةؒ وصاحبيه كلهم متفقون بتقليد الصحابی الخ ۔

نـو اوګوره امام صاحب او صاحبين مقلدين ګڼړی د صحابی او يا به دلته د تقليد بيله معنی وی ستاسو په نزد ۔

## (۱٦) - شپاړسم تحقيق

دا دے : مـقلدين احناف ليکی چه د امام ابو حنيفه تقليد واجب دے خاصکر په پاکستان، هندوستان افغانستان کښ ځکه د هغه مذهب دلته رائج دے او ځکه چه هغه تابعی دے ډير صحابه کرامؓ ئے ليدلی دی او غټ مجتهد دے ۔

بيا وائـی : چـه د تـابـعـی تقليد نشتـه لکه د عامو علماؤ تقليد صحيح ندے دارنګه د تابعی تقليد هم صحيح ندے ۔

نو دا **عـجيب تناقض** دے د دوی په دعـوت کـښ کـه تا پدے خبره کښ راګير کړل جواب نشی کولے ۔

اوګوره لاندے حواله جات :

(۱) – قـال الـمـولـوی مـنظور فی تحفة المناظر(۱۲۳) فقہ حنفی کے خصويات امت پر فقہ حنفی کا بہت احسان ہے، فقہ حنفی ہی وہ واحد فقہ ہے جس میں

فقہ تحقیقی اور فقہ تقدیری دنوں موجود ہیں الخ ۔

پدے عبارت کښې منظور صاحب په ټول امت باندے د فقه حنفي تقليد واجبول غواړي ليکن وسع ئے نده شوے ۔

مونږ وايو : پدے فقه کښې ډيرے غلطے مسئلے دي ستر في صد باطله ده په موقعه باندے بيانولے شو ان شاء الله تعالى ۔

(۲) – وقال في امداد الفتاوى (٤/ ٦٤) ہندوستان میں دوسرے مذاہب کی تقلید ممکن نہیں غیر حنفیہ کے ۔ اور اسی طرح مولانا زکریا صاحب بھی لکھتے ہیں تقریر بخاری (۸۲) حدیث عائشہؓ اول ما بدأ بہ رسول اللہ ﷺ الخ کہ ہندوستان میں بلا تقلید حنفیہ چارہ ہے نہیں۔

(۳) – وقال في الدر المختار (۳/ ۱۹۰) من انتقل الى مذهب الشافعي يعزر ـ نو حنفي مذهب نه بل مذهب ته اوړيدل ناروا ګڼړي صرف د امام صاحب تقليد واجب ګڼړي ۔

(٤) – افضل المذاهب مذهب الحنفية كما في رسالة ابن محمود (۲) ملخصاً والاتباع لابن ابى العز (۲٤) ـ

## بيا احناف ليکي :

(۱) – لکه نور الانوار ليکي : (۲۱۹/۱) قبيل باب الاجماع: وان لم تظهر فتواه اى التابعي ولم يزاحمهم في الرأى كان مثل سائر ائمة الفتوى لايصح تقليده ـ

نو وائي چه د تابعي تقليد صحيح ندے نو واجب څرنګ شو او امام صاحب خو يا تابعي دے او يا تبع تابعي دے نو اوس به تاسو څه کوئ تقليد به ئے کوئ او که نه ؟ ـ

(۲) – دارنګه امام ابو حنیفه خپله وائی : انی لا اقلد التابعی لانهم رجال ونحن رجال ـ نور الانوار (۲۱۸)ـ

**چه زه د تابعی تقلید نه کوم ځکه هغوی هم عام سړی دی او مونږ هم سړی یو لکه څرنګ چه زمونږ تقلید نشته نو دارنګه د هغوی هم نشته ـ**

(۳) – وفی درس ترمذی (۱/۱۰۹) : ما جاء نا عن غیرهم ( الصحابة ) فهم رجال ونحن رجال ـ

(٤) – اوفی اصول السرخسی (۳۷۵) فصل فی خلاف التابعی هل یعتد به مع اجماع الصحابة ) فقد روینا عن ابی حنیفة انه کان یقول ما جاء نا عن التابعین زاحمناهم ـ

(٥) – وفی الحسامی وشرحه النامی (۱۹۲) واما التابعی المجتهد یجوز تقلیده عند بعض مشائخنا خلافا للبعض ثم قال : وعن ابی حنیفة فیه روایتان احداهما انه قال : لا اقلدهم رجال اجتهدوا ونحن رجال نجتهد وهذا هو الظاهر من مذهبه والثانیة ما نقل فی النوادر انه قال اقلدهم .

**نو اوګوره د تابعی تقلید په ظاهر الروایت کښ نشته او روایت نادره کښ شته لیکن شامی چه وائی : لایجوز للمجتهد التقلید (۱/۳۹) ـ**

**بیا تناقض شو کما تقدم ـ**

(٦) – وفی نسمات الاسحار شرح شرح المنار للشامی (۲۰۸) وان لم تظهر فتواه کان کسائر ائمة الفتوی یعنی لا یجب تقلیده ـ

(۷) – وانظر مسألة رقم (۱) وفي التلويح والتوضيح (۳۷/۲) واما التابعي فلا تقليد له في ظاهر الرواية ۔

## (۱۷) - اولسم تحقیق :

مقلدین لیکي چه امت کښې ټول علماء سوئ د مجتهدینو څلور نه مقلدین وو او تقلید به ئے کولو دا وجه ده چه طبقات الحنفیه شته طبقات الشافعیه، طبقات حنابله، طبقات مالکیه شته او طبقات اهل حدیث نشته او ائمه د حدیث لکه ترمذی ابوداود، نسائی، ابن ماجه، مسلم او بخاری ټول مقلدین وو ۔

لکه شیخ زکریا په تقریر بخاری کښې وائي (٤۱) :

امام مسلم شافعی ہے یا مالکی اور امام ابوداود پکے حنبلی ہے میری رائے میں امام نسائی اور ترمذی کے علماء کے رائے ہے کہ شافعی ہے میرے بھی یہ رائے ہے البتہ طحاوی پکے حنفی ہیں ۔ بخاری بعض نے کہا کہ حنفی ہے یا شافعی ہے یا مجتہد ہے ملخصاً ۔

نو اوګوره ائمه د حدیث ئے ټول مقلدین (جاهلان) کړل والعیاذ بالله ۔

(۲) – دارنګه منظور مینګل لیکي په تحفة المناظر کښې (۱٤٥) اکابرین امت بھی مقلد تھی جیسا امام بیہقی، شافعی ہے اور عبد اللہ بن وہب وعثمان بن کنانہ واشہب وابن عبد الحکم ان پر تقلید مالک وشافعی غالب تھی، امام ابوداود محدث عظیم ہونے کے باوجود امام احمد سے تعلق رکھتے ہیں ۔

(۳) – او تحفة المناظر (۱٤٤) کښې لیکي : عامی کیلئے تقلید کرنا ایسے ہے لازم ہے لیکن اگر بڑا عالم ہے مگر اجتہاد کی صلاحیت نہیں تو اسے بھی تقلید

کرنا ہوگی۔دیکھو اتحاف ذوی البصائر (۲۳۰) والاحکام للآمدی (۴/ ۱۹۷)

لیکن بیا هم دا مقلدین لیکی چه محدثین مذکوره د چا مقلدین ندی خپله د کتاب سنت متبع دی لکه تنظیم الاشتات شرح مشکاة (۲۰/۱) کښں دی : نقلا عن شبیر احمد العثمانی۔ مقدمه فتح الملهم (۱۰۱) میں ہے کہ بعض کامل فی علم الاثر نے کہا کہ امام بخاری وابوداود دونوں فقہ میں بھی اہل اجتہاد میں سے تھے امام مسلم وترمذی ونسائی وابن ماجہ وابن خزیمہ وابویعلیٰ وبزار ونحوہم یہ حضرات اہل حدیث کے مذہب پر تھے، ائمہ فقہ میں سے بعینہ کسی امام کے مقلد نہ تھی اور نہ وہ حضرات خود علی الاطلاق ائمہ مجتہدین میں سے تھی بلکہ ائمۃ الحدیث کالشافعي واحمد وابوعبید کی طرف مائل تھی وهم الی مذاهب اهل الحجاز امیل منهم الی مذاهب اهل العراق واما ابوداود الطیالسی فاقدم من هؤلاء کلهم من طبقة یحیی بن سعید القطان ویزید بن هارون وعبد الرحمن بن مهدی وامثال هؤلاء من طبقة شیوخ الامام احمد وهؤلاء کلهم لا یألون جهداً فی اتباع السنة غیر ان منهم من یمیل الی مذاهب الی اهل العراق کوکیع ویحیی بن سعید ومنهم من یمیل الی مذهب المدنیین کعبد الرحمن بن مهدی اور دارقطنی شافعی کے مذہب کے طرف مائل تھے الا انہ لہ اجتہاداً وکان من ائمۃ الحدیث والسنۃ ولم یکن حالہ کحال احد من کبار المحدثین ممن جاء علی اثرہ فالتزم التقلید فی عامۃ الاقوال کذا فی توجیہ النظر ظاہر یہ ہے کہ ابوداود مذہب حنابلہ کے طرف زیادہ قریب تھے فان کتب الحنابلة مشحونة بروایته عن احمد کذا فی العرف الشذی۔

نو اوګوره دلته عام محدثین اهل حدیث ګڼړی او وائی چه مقلدین نه وو بلکه متبع د سنت وو۔

دارنګه تقریرات الرافعی (۱/۹- ۱۰) کښ دی چه طحاوی شمس الائمه، امام ابویوسف او محمد یو هم مقلد نه وو بلکه دا د هغوی سره ظلم دے چه څوك ورته مقلدین وائی دارنګه طبقات الفقهاء د مولانا عبد الحی اللکنوی اوګوره ص (٦) ۔

دارنګه خصاف، کرخی، ابوبکر القفال، قاضی حسین ۔ دارنګه ابوبکر الرازی الجصاص دا ټول مقلدین نه وو اوګوره صفحه مذکوره تفصیلا ۔ وتقدم ۔

عرف شذی کښ انور شاه کشمیری لیکی (۱/۲٦) یحیی بن سعید حنفی مذهباً، کما فی تاریخ ابن خلکان وهو اول من صنف فی الجرح والتعدیل کما ذکر ذلك الذهبی فی المیزان الا ان تقلید السلف کان التقلید فی الاجتهادیات التی لم یثبت فیها المرفوع ولا الموقوف لا کتقلیدنا وهذا ظن ۔

نو اوګوره وائی سلف داسے مقلدین نه وو لکه اوسنی مقلدین بلکه هغوی به چه کله مرفوع یا موقوف حدیث مونده نکړو نو بیا به دیو عالم رأی اختیاره کړه او هغه تقلید نه وو بلکه هغه موافقت الرأی ده ولکن المقلدین لایعلمون ۔

دارنګه مقلدین امام نووی ابن حجر عسقلانیؒ امام ابن کثیر او نورو ډیرو ائمو ته لکه بیهقی وغیرهم شو مقلدین د امام شافعی وائی او شوافع ګنړی او حال دا چه امام نووی خپله فرمائی په المجموع شرح المهذب کښ (۱/٤٣) :

وللمفتی المنتسب ( الی المذهب ) اربعة احوال احدها ان لا

يكون مقلدا لامامه لا فى المذهب ولا فى دليله لاتصافه بصفة المستقل وانما ينسب اليه لسلوكه طريقه فى الاجتهاد وادعى الاستاذ ابواسحاق هذه الصفة لاصحابنا فحكى عن اصحاب مالك رحمه الله واحمد وداود واكثر الحنفية انهم صاروا الى مذاهب ائمتهم تقليداً ثم قال : والصحيح الذى ذهب اليه المحققون ما ذهب اليه اصحابنا وهو انهم صاروا الى مذهب الشافعى لا تقليداً له بل لما وجدوا طرقه فى الاجتهاد والقياس اسد الطرق ولم يكن لهم بد من الاجتهاد سلكوا طريقه فطلبوا معرفة الاحكام بطريق الشافعى وذكر ابوعلى السنجى بكسر السين المهملة نحو هذا فقال اتبعنا الشافعى دون غيره لانا وجدنا قوله ارجح الاقوال واعدلها لا انا قلدناه ( قلت ) هذا الذى ذكراه موافق لما امرهم به الشافعى ثم المزنى فى اول مختصره وغيره بقوله مع اعلامه نهيه عن تقليده وتقليد غيره ـ

نو صفا معلومه شوه چه دغه علماء كرامو ته چه څوك شوافع وائي يعني مقلدين د امام شافعي دارنګه مقلدين د امام ابو حنيفه نو غلطه خبره ده څكه هغوى چرته ځان ته مقلدين ندى وئيلى بلكه ردئے كړے په تقليد باندے نو ټول اهل حديث شو ـ

نو طبقات حنفيه، شافعيه ډير لږ پاتے شو سوئ د يو څو جاهلانو نه چه هغه مقلدين دى نور ټول د امت اهل علم محققين دى او د كتاب او سنت متبعين دى دا بيله خبره ده چه د موافقت د رأى په وجه كله كله د بعضے امامانو خبرے اخلى،

فتدبر دا ډير مفيد عبارت دے، د كوره شاهد دے ـ

دارنګه بعض خلق امام سیوطیؒ د امام شافعی مقلد ګڼړی او حال دا چه هغه " الرد علی من اخلد الی الارض وجهل ان الاجتهاد فی کل عصر فرض " کتاب لیکلے دے او په الفلك المشحون والکنز المدفون کښ وائی (۱٤۹) :

والذی یجب ان یقال کل من انتسب الی امام غیر رسول الله ﷺ یوالی علی ذلك ویعادی علیه فهو مبتدع خارج عن اهل السنة والجماعة سواء کان فی الاصول او الفروع ۔

نو دا احناف مقلدین اهل السنت والجماعه ندی بلکه مبتدعین دی ځکه د دوی دوستی او دشمنی په مذهب حنفی باندے ده وهو ظاهر لا یخفیٰ ۔

دارنګه بعض خلق ابن تیمیهؒ، ابن قیمؒ هم مقلدین ګڼړی او حال دا چه هغوی رد کړے دے چه مونږ مقلدین نه یو او تقلید ئے سبب د واجب القتل کیدو کړے دے کما تقدم وفی اعلام الموقعین (۲٤۱/۲) الوجه الرابع والاربعون بحث ( التقلید ) ولقد انکر بعض المقلدین علی شیخ الاسلام ابن تیمیة فی تدریسه بمدرسة ابن الحنبلی وهی وقف علی الحنابلة والمجتهد لیس منهم فقال : انما اتناول ما اتناوله منها علی معرفتی بمذهب احمد لا علی تقلیدی له الخ ۔

نو اوګوره ابن تیمیهؒ حنبلی نه دے دارنګه ابن القیمؒ ۔

بعض خلق وائی : د سعودی علماء هم حنابله دی او هغوی چه سنتو اعمالو باندے عمل کوی تقلیدا للامام احمد ئے کوی هغوی اهل حدیث ندی او حال دا چه هغوی تفصیلا ردونه لیکلی په

تقلید باندے لکه الفتاوی اللجنه کښې اوګوره (۵/۴۱) ۔

وبعد من كان اهلاً لاستنباط الاحكام من الكتاب والسنة ويقوى على ذلك ولو بمعونة الثروة الفقهية التى ورثناها عن السابقين من علماء الاسلام كان له ذلك ليعمل به فى نفسه وليفصل به فى الخصومات وليفتى به من يستفتيه، ومن لم يكن اهلاً لذلك فعليه ان يسأل الامناء من اهل العلم فى زمنه، او يقرأ كتب العلماء الامناء الموثوق بهم ليتعرف الحكم من كتبهم ويعمل به من غير ان يتقيد فى سؤاله او قراءته بعالم من علماء المذاهب الاربعة وانما رجع الناس للاربعة لشهرتهم وضبط كتبهم وانتشارها لهم ۔ ومن قال بوجوب التقليد على المتعلمين مطلقا فهو مخطئ جامد سىء الظن بالمتعلمين عموماً وقد ضيق واسعاً، ومن قال بحصر التقليد فى المذاهب الاربعة فهو مخطئ ايضاً قد ضيق واسعاً بغير دليل ولا فرق بالنسبة للامى بين الفقيه من الائمة الاربعة وغيرهم كالليث بن سعد والاوزاعى ونحوهما من الفقهاء ۔

دارنګه کوم علماء چه دوی مقلدین کوی د هغوی اقوال په رد د تقلید کښې شته ۔

## (۱۸) - اتلسم تحقیق :

مقلدین لیکی چه صحابه کرام رضی الله عنهم مقلدین وو لکه منظور صاحب لیکی تحفة المناظر کښې (۱۱۰) صحابہ کرامؓ

بھی مقلد تھے، علامہ ابن تیمیہ رحمہ اللہ سے نقل کرتے ہوئے فرماتا ہے: فان علم ان مقلده مصيب كتقليد الرسول او اهل الاجماع فقد قلده بحجة وقال الشاه ولى الله : فاعلم ! ان الصحابة لايقلدون الا صاحب الشرع ـ صراحۃ صحابہ کرامؓ کومقلد قرار دیا الخ۔

تقی عثمانی هم لیکی : تقلید کا شرعی حیثیت کښې (۹۰) دارنګه درس ترمذی کښې (۱/۱۱۷) چه صحابه کرامو هم تقلید کولو د یو بل ـ

## تناقض

او بیا هم دا مقلدین د تقلید تعریف دا کوی :

التقليد اتباع الانسان غيره فى ما يقول او يفعل معتقداً للحقية من غير نظر الى الدليل كأن هذا المتبع جعل قول الغير قلادة فى عنقه من غير مطالبة دليل ـ الكلام المفيد د صفدر صاحب (۳۱) تحفة المناظر د منظور صاحب (۱۰۳) ـ

نو آیا صحابه کرامو د رسول الله ﷺ دلیل ته بالکل نظر نه دے کړے بے دلیله ئے په هغه ایمان راوړے ؟ دارنګه د تقلید تعریف خو ابن الهمام داسے کوی په التحریر کښې او ملا حسن شرنبلالی (۱۵) کښې دارنګه معیار حق (۳٦) کښې : التقليد هو العمل بقول من ليس قوله احدى الحجج بلا حجة وهذا الحد احسن من الذى قبله ـ

نو اوګوره تقلید د هغه چا په قول عمل ته وائی چه د هغه قول حجت نه وی – بے دلیله هغه اخستل – نو د رسول الله ﷺ خبره منل تقلید نشو ځکه د هغه قول حجت عظیمه دے دارنګه د

اجماع خبره منل هم تقليد ندے ځکه اجماع حجت ده شرعا ـ نو ته سوچ اوکړه صحابه کرامو ته مقلدين وئيل غلط شو ـ

منظور صاحب د څه نه خبر ندے صرف ټول مقلدين کوی دا لا څه کوی هغه خو رسول الله ﷺ ته هم مقلد وئيلے دے والعياذ بالله ـ

دارنګه ددے نه زيات صريح عبارت په احکام الاحکام د آمدی (۲۲۱/٤) المستصفى د غزالیؒ (۲/٤۰۰) ارشاد الفحول د شوکانیؒ (٤٤١، ٤٤٢) کښں دی چه د هغے نه معلوميږی چه صحابه کرامو ته مقلدين نه وئيل کيږی دارنګه اتباع د اجماع تقليد نه دے ـ

اما التقليد فعبارة عن العمل بقول الغير من غير حجة ملزمة وهو ماخوذ من تقليده بالقلادة وجعلها فی عنقه وعلى هذا فالرجوع الى قول النبی ﷺ والى ما اجمع عليه اهل العصر من المجتهدين ورجوع العامی الى قول المفتی و كذلك عمل القاضی بقول العدول لايكون تقليداً لعدم عروه عن الحجة الملزمة اما قبول قول الرسول فما دل على وجوب تصديقه من المعجزة ووجوب قبول قول الاجماع هو قول الرسول ﷺ ووجوب قبول قول المفتی والشاهدين الاجماع على ذلك ـ

نو سوچ اوکړه صحابه کرامو او څوك چه د رسول الله ﷺ اتباع کوی په هره زمانه کښں هغه مقلدين ندی ـ

نو صحابه کرام څرنګه مقلدين شو ؟ (عجيبه خبره منظور صاحب ليکلے ده ؟) ـ

**بل تناقض :**

تقی عثمانی صاحب وائی : چه اهل مدینه والا صحابه کرامو د زید بن ثابت رضی الله عنه تقلید کړے دے (تقلید کا شرعی حیثیت : ۹۰) دارنګه منظور صاحب خپله لیکی په تحفه المناظر کښ (۱۳۱) چه اهل مدینه والو صحابه کرامو د زید بن ثابت تقلید کړے دے دارنګه ابو موسیٰ اشعری وائی د ابن مسعود تقلید شخصی اوکړئ ! ۔

او مخکښے منظور صاحب د شاه ولی الله الدهلوی قول رانقل کړو چه فاعلم ان الصحابة لا یقلدون الا صاحب الشرع ۔

نو شاه صاحب فرمائی : چه صحابه کرام صرف فقط د نبی علیه السلام اتباع کوی او تقلید د بل چا نه کوی لکه دا د حصر نه معلومیږی ۔ او تاسو لیکئ چه د بل چا هم کوی ؟ لکه ابن مسعودؓ شو ؟ عجیب ۔

بله غلط فهمی دا ده چه د شاه صاحبؒ او د ابن تیمیہؒ صاحب اصطلاح هم تاسو نده پیژندلے د دغه علماؤ او داسے د نورو اصطلاح دا ده چه په اتباع باندے د تقلید اطلاق کوی مجازا او تقلید اصطلاحی مراد نه وی ولکن این الفهم للمقلدین ؟ ۔

دا لا څه کومے اشرف علی صاحب په ملفوظات کښ لیکی (۱۵۹/۳) ایک صاحب نے عرض کیا کہ تقلید کے حقیقت کیا ہے اور تقلید کس کو کہتے ہیں، فرمایا: تقلید کہتے ہیں امتی کا قول ماننا بلا دلیل، عرض کیا کہ کیا اللہ اور رسول کے قول ماننا بھی تقلید کہلائے گا؟ فرمایا: کہ اللہ اور رسول کا حکم ماننا تقلید نہ کہلائیگا وہ اتباع کہلاتا ہے۔

نو د رسول الله ﷺ اتباع ته تقلید نه وئیل کیږی او منظور صاحب ئے ورته وائی او اشرف علی تهانوی صاحبؒ ئے ورته نه وائی -

## (۱۹) - نولسم تحقیق :

مقلدین لیکی چه د صحابه کرامو تقلید نشته یعنی اوس چا له ندی جائز چه د صحابه کرامو تقلید اوکړی لکه منظور صاحب لیکی تحفه المناظر کښ (۱٤۲) : ولیس له التمذهب بمذهب احد من ائمة الصحابة وغیرهم من الاولین وان کانوا اعلم واعلی درجة ممن بعدهم لانهم لم یتفرغوا لتدوین العلم وضبط اصوله وفروعه فلیس لاحد منهم مذهب مهذب محرر مقرر وانما قام بذلك من جاء بعدهم کمالك وابی حنیفة وغیرهما الخ

اکابرین صحابہؓ وغیرہ اگر چہ بعد والوں سے علم وعمل میں بہت آگے ہیں لیکن پھر بھی کسی کے لئے جائز نہیں کہ صحابہ کرامؓ کے مذہب کو اپنائے کیونکہ صحابہ کرام کو اتنا موقع نہیں ملا کہ وہ اپنی مذہب کو مدون کرتے اور اس کے اصول وفروع کو محفوظ کرتے اسی وجہ سے صحابہ میں سے کسی بھی صحابی کا مذہب مدون منقح نہیں ہاں بعد میں آنے والے ائمہ امام مالک، ابوحنیفہ وغیرہ نے اس کام کا بیڑ اٹھایا اور با قاعدہ مذاہب مدون کر کے ان کے اصول وفروع کو محفوظ کیا اور مسائل کے وقوع سے پہلے ان کا حل تلاش کیا -

دارنګه غلیظ عبارات په تحفة المناظر کښ نور اوګوره (۱٤۱) -

زه وایم : اولا په دے عبارت کښ څو مره دجل او فریب او ظلم دے

۱- یو خو صحابه کرام ټول شاته ګوزار کړل وائی د یو صحابی

مذهب نشته، مونږ وايو د هغوی مذهب قرآن او حديث وو بل مذهب ته څه ضرورت وو چه هغوی جوړولو ؟ دا خو تاسو دا مذهب حنفی جوړ کړے چه اکثر د بدعات او خرافاتو نه ډك دے دا خو څه د اسلام تعبير ندے ۔

۲- بيا وائی : صحابه فارغ نه وو- دا هم دروغ دی ځکه د هغوی خلافت وو درسونه وو د تعليم حلقات وو ليکل وو، وعظ نصيحت وو هغوی خو څه د دنيا په کارونو کښ مشغول نه وو چه وزګار نه وو بلکه نوے مذهب ئے نه جوړولو ځکه دا بدعت دے ، په کتاب او سنت ئے اکتفاء کوله، ستاسو پشان نه وو چه بدعت ئے ايجاد کولو ۔

۳- دريم دا چه امام ابو حنيفه کوم ځائے اصول او فروع مدون کړی دی سو چه دروغ دی د هغه د سره کتاب نشته په اصولو کښ هغه کتاب چه هغه کښ اصول ليکلی دی هغه راوړئ ! هسے وهمياتو پسے مقلدين روان دی، نيغه لاره ئے پريخوستے ده ۔

(٤) - **تناقض** : دا دے چه دلته وائی د صحابه کرامو د مذهب پسے ورتلل نشته ځکه هغوی څه مذهب نه لری نه کوم اقوال شته نه ئے کوم فتوے شته چه د هغے اتباع او تقليد وشی ۔

او بيا وائی مونږ (اهلحديث) ته چه تاسو د خلفاء راشدينو اتباع نه کوئ د صحابه کرامو اتباع نه کوئ ! او دا هم وائی چه اقوال د صحابه کرامو حجت دے فنی رد المحتار (۱/ ۵۵۰) باب الجمعة والحاصل ان قول الصحابی حجة يجب تقليده عندنا ۔

وفی بذل المجهود لخلیل احمد سهارنفوری (۱/۱۵) وتنظیم الاشتات (۱/۱٤۳) والصحابی اولیٰ ان یتبع من غیره ـ

وفی اصول السرخسی (۲/۱۰۵) عن ابی سعید البردعی انه کان یقول قول واحد من الصحابة مقدم علی القیاس یترك القیاس بقوله وعلی هذا ادرکنا مشائخنا ـ

**نو اوګوره اقوال د صحابه کرامو د قیاس نه مخکښ کوی دلته اووائی چه عمل په ضروری دے او مخکښ وائی د هیڅ صحابی مذهب نشته (عجیب) ـ**

**دارنګه امام ابو حنیفه نه نقل دی :**

اذا قلت قولا وکتاب الله یخالفه، قال : اترکوا قولی بکتاب الله فقیل : اذا کان خبر الرسول ﷺ یخالفه، قال : اترکوا قولی بخبر رسول الله ﷺ، فقیل : اذا کان قول الصحابة یخالفه ؟ قال : اترکوا قولی بقول الصحابة ـ کذا فی عقد الجید لولی الله الدهلوی (۹٤) طبع کراتشی قرآن محل مولوی مسافرخانه ـ

**نو د امام ابو حنیفه اقوال به پریخوستلے شی د صحابه کرامو په اقوالو باندے لکه دا خبره هغه خپله کړے ده نو څرنګ د صحابه کرامو مذهب نشته ـ**

**بلکه مرفوع حدیث کښ راځی :** علیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین المهدیین عضوا علیها بالنواجذ، رواه احمد وابوداود والترمذی کما فی المشکاة (۱/۳۰) ـ

**نو د خلفاء راشدینو که اتباع جائز نه وی نو رسول الله ﷺ**

امت ته ولې دا حکم کولو ؟ ۔

بل عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی : من كان مستنا فليستن بمن قد مات فان الحی لاتؤمن عليه الفتنة، اولئك اصحاب محمد ﷺ كانوا افضل هذه الامة ابرّها قلوباً واعمقها علماً واقلها تكلفاً اختارهم الله لصحبة نبيه ولاقامة دينه فاعرفوا لهم فضلهم واتبعوهم على اثرهم وتمسكوا بما استطعتم من اخلاقهم وسيرهم فانهم كانوا على الهدى المستقيم، رواه رزين وهو فی المشكاة (۱/۳۲) ۔

دارنګه په کتب السنه کښې دا روایت شته لکه" السنه" د لالکائی او " الابانه " د ابن بطه شوه ۔

نو ابن مسعودؓ وائی : د صحابه کرامو اتباع اوکړئ د هغوی علم جور دے او اتباع د هغوی د آثارو او اخلاقو اوکړئ نو که د صحابه کرامؓ هیڅ مذهب، قول، فتوی او سیرت نه وے نو ولے ئے دا حکم کولو ؟۔

بل دا وایم چه د مقلدینو د هغه مذکوره خبره باطل ده چه د صحابه کرامؓ مذهب نشته ولے تاسو د حدیث کتابونه ندی کتلی ځومره ډیر اقوال د صحابه کرامو شته په ابن ابی شیبه، مصنف عبد الرزاق، الطحاوی، السنن الکبری للبیهقی، تاریخ دمشق لابن عساکر، آثار الصحابه معرفة الصحابه، اسد الغابه، او الاصابه کښې ئے اوګورئ ! ۔

لیکن په مقلدینو سترګے پټی دی صرف یو امام ابو حنیفهؒ ورته ښکاری او ښه ډِے چه د هغه داسے کوم تصنیف نشته که وے

دوي به ترے قرآن جوړ کړے وے کما فعلوا ذلك مع رد المحتار۔
دارنګه منظور صاحب ليکی خپله تحفه (۱۱٤) کښ *تفسير الصحابه حجة صحابیؓ کے تفسير حجت ہے۔*
او وائی د صحابه کرامو مذهب مدون ندے نو دا تفسير د کوم شو؟۔

## (۲۰) - شلم تحقيق :

او مقلدين صاحبان اکثر د اثبات د تقليد دپاره د امام ابن تيميهؒ اقوال (مجمله) رانقل کوی لکه منظور صاحب ليکی په خپله تحفه کښ (۱۰۶،۱۰۷) *علامہ ابن تيميہؒ فرماتے ہيں :*

والذی عليه جماهير الائمة ان الاجتهاد جائز فی الجملة والتقليد جائز فی الجملة لا يوجبون الاجتهاد علی کل احد ويحرمون التقليد ولا يوجبون التقليد علی کل احد ويحرمون الاجتهاد وان الاجتهاد جائز للقادر علی الاجتهاد والتقليد جائز للعاجز عن الاجتهاد ۔

دارنګه کله د امام ابن القيمؒ بعض مجمل اقوالو نه غلطه فائده اخلی۔
مونږ وايو دا عبارت اولا ستاسو په رد کښ دے څکه تاسو تقليد واجب ګنړئ او ابن تيميهؒ صاحب ئے نه ګنړی او تاسو اجتهاد حرام ګنړئ پدے دور کښ بعد ابی حنيفه او ابن تيميه ئے جائز ګنړی۔
ثانيا : که د ابن تيميه صاحب ددے مجمل عبارت نه تاسو د تقليد جواز ثابت وئ نو بيا به د امام ابن تيميه رحمه الله دا فتوی هم منئ کوم چه هغه په مختصر الفتاوی المصريه (٤۲) کښ

ورکړے ده : واذا كان الرجل متبعاً لبعض الائمة فرأى بعض المسائل ان مذهب غيره اقوىٰ فاتبعه كان قد احسن ولم يقدح ذلك فى عدالته بلا نزاع بل هذا اولىٰ بالحق واحب الى الله ورسوله ممن يتعصب لواحد معين غير النبى ﷺ كمن يرىٰ ان قول هذا المعين هو الصواب الذى ينبغى اتباعه دون قول الامام الذى خالفه فمن فعل هذا كان جاهلاً ضالاً، بل قد يكون كافراً فانه متى اعتقد انه يجب على الناس اتباع واحد بعينه من هؤلاء الائمة دون الامام الآخر فانه يجب ان يستتاب فان تاب والا قتل ۔

وقال ايضاً : واما ان يقول قائل : انه يجب على الامة تقليد فلان او فلان فهذا لا يقوله مسلم ۔

**نو اوګوره شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ خو تقلید شخصی ته جهالت ضلالت بلکه کفر وائی او وائی دا کار د مسلمان ندے چه تقلید د یو امام کوی نو څرنګ د هغه د مجملو عباراتو نه تقلید ثابتوی دا دوکه مه ورکوئ کمزورو طالبانو او عوامو ته الله تعالی نه اویریږئ ۔**

**د ابن تیمیه صاحبؒ پشان خبره ابن ابی العز الحنفی رحمه الله هم کړے ده په الاتباع کښ (۷۹، ۸۰) هغه فرمائی :**

فمن تعصب لواحد معين غير النبى ﷺ كمالك وابى حنيفة والشافعى واحمد ورأى ان قول هذا هو الصواب الذى ينبغى اتباعه دون قول الائمة الباقين فهو جاهل ضال وان اعتقد انه يجب على الناس اتباعه دون غيره من هؤلاء الائمة فانه يخشى عليه فان الامة قد

اجتمعت على انه لا يجب طاعة احد في كل شيء الا رسول الله ﷺ بل غاية ما يقال : انه يسوغ او ينبغي او يجب على العامي ان يقلد واحداً من الائمة من غير تعيين زيد او عمرو واما ان يقول قائل انه يجب على الامة تقليد فلان دون غيره فهذا هو المحذور فهو تعصب لواحد من الائمة دون الباقين فهو بمنزلة من تعصب لواحد من الصحابة دون الباقين كالرافضي الذي تعصب لعلي رضي الله عنه دون الخلفاء الثلاثة فهذا طريق اهل الهوىٰ ۔

**نو ته څرنګ ددې علماؤ په اقوال مجمله اثبات د تقليد کوې ؟ او حال دا چه هغوی د تقليد بيخ ويستلې دی ۔**

**بلکه دا چه ابن القيم صاحبؒ فرمائی چه ابن تيميه سلفی وو او حنبلی نه وو لکه اعلام الموقعين (۲/ ۲٤۱) کښې دی نو هغه به څرنګ تقليد ته دعوت ورکړی ۔**

قال شيخ الاسلام ابن القيم رحمه الله ( اعلام الموقعين (٤/ ٢٦١ – ٢٦٣) هل يلزم العامي ان يتمذهب ببعض المذاهب المعروفة ام لا ؟ ـ فيه مذهبان

احدهما لايلزمه وهو الصواب المقطوع به اذ لا واجب الا ما اوجبه الله ورسوله ﷺ ولم يوجب الله ولا رسوله على احد من الناس ان يتمذهب بمذهب رجل من الامة فيقلده دينه دون غيره ـ

وقد انطوت القرون المفضلة مبراة مبرأ اهلها من هذه النسبة بل لا يصح للعامي مذهب ولو تمذهب به فالعامي لا مذهب له لان المذهب انما يكون لمن له نوع نظر واستدلال ويكون بصيراً

بالمذاهب على حسبه او لمن قرأ كتاباً فى فروع ذلك المذهب وعرف فتاوى امامه واقواله واما من لم يتأهل لذلك البتة بل قال انا شافعى او حنبلى او غير ذلك لم يصر كذلك بمجرد القول كما لو قال أنا فقيه أو نحوى أو كاتب لم يصر كذلك بمجرد قوله :

يوضحه ان القائل انه شافعى ا ومالكى او حنفى بزعم انه متبع لذلك الامام سالك طريقه وهذا انما يصح اذا سلك سبيله فى العلم والمعرفة والاستدلال فاما مع جهله وبعده جداً عن سيرة الامام وعلمه وطريقه فكيف يصح له الانتساب اليه الا بالدعوىٰ المجردة والقول الفارغ من كل معنى ـ

والعامى لايتصبور ان يصح له مذهب ولو تصور ذالك لم يلزمه ولا لغيره ولا يلزم احداً قط ان يتمذهب بمذهب رجل من الامة بحيث يأخذ اقواله كلها ويدع اقوال غيره ـ

وهذه بدعة قبيحة حدثت فى الامة لم يقل بها احد من ائمة الاسلام وهم على رتبة واجلّ قدراً واعلم باللّٰه ورسوله من ان يلزم الناس بذلك ـ

وابعد منه قول من قال : يلزمه ان يتمذهب بمذهب عالم من العلماء وابعد منه قول من قال : يلزمه ان يتمذهب باحد المذاهب الاربعة فياللّٰه العجب !!! ماتت مذاهب اصحاب رسول اللّٰه ﷺ ومذاهب التابعين وتابعيهم وسائر ائمة الاسلام وبطلت جملة الا مذاهب اربعة أنفس فقط من بين سائر الائمة والفقهاء ـ

وهل قال ذلك احد اودعىٰ اليه اودلت عليه لفظة واحدة فى

كلامه عليه ؟ والذى اوجبه الله تعالى ورسوله على الصحابة والتابعين وتابعيهم هو الذى اوجبه على من بعدهم الى يوم القيامة لا يختلف الواجب ولا يتبدل وان اختلفت كيفيته او قدرته باختلاف القدرة والعجز والزمان والمكان والحال فذلك ايضاً تابع لما اوجبه الله ورسوله ۔

ومن صحح للعامى مذهباً قال : هو قد اعتقد ان هذا المذهب الذى انتسب اليه هو الحق فعليه الوفاء بموجب اعتقاده وهذا الذى قاله هؤلاء لو صح للزم منه تحريم استفتاء اهل غير المذهب الذى انتسب اليه وتحريم تمذهبه بمذهب نظير امامه او ارجح منه او غير ذلك من اللوازم التى منه يدل فسادها على فساد ملزوماتها بل يلزم منه انه اذا رأى نص رسول الله ﷺ او قول خلفائه الاربعة مع غير امامه ان يترك النص واقوال الصحابة ويقدم عليها قول من انتسب اليه فعلى هذا فله ان يستفتى من شاء من اتباع الائمة الاربعة وغيرهم ولا يجب عليه ولا على المفتى ان يتقيد باحد من الائمة الاربعة باجماع الامة ۔

**دا ډير مهم عبارت دے او ډير ښکلی دلائل په کښې دی ۔**

**كه څوك عقل لری او تعصب نه كوی داسې نور عبارات هم شته د علماء كرامؒ ليكن مونږ دلته رد الاحناف على الاحناف بيان وو او تناقضات د هغوی او د مناظر دپاره توره تياره وو چه په مخالفينو د سنت ئے استعماله كړی ۔**

## ۲۱ - یو ویشتم تحقیق :

مقلدین لیکی چه اجتهاد په څلورمه صدئ کښې بند شوے دے لکه رد المحتار کښې دی (۳۹۶/۱) علی ان القیاس بعد الاربعمائة منقطع فلیس لاحد بعدها ان یقیس مسئلة علی مسئلة ۔

دارنګه منظور صاحب لیکی په خپله تحفه (۱٤۲) کښې :

*براہ راست قرآن اور حدیث سے اخذ کرکے کسی کو نیا مذہب اختیار کرنے کی اجازت نہیں کیونکہ علوم وفنون پر پختہ دسترس نہ رکھنے والا ایک دو حدیثوں کو دیکھ کر کوئی رائے قائم کرلے گا۔ پھر لکھتا ہے :*

*اگر کوئی اپنی علم کے زور پر دعوی کرلے کہ یہ باتیں عوام کے لئے ہیں او میں مجتهد ہوں مجتهد کے لئے تقلید مطلق جائز نہیں، میں اپنا مذہب بناتا ہوں تو اس کا جواب علامہ ابن خلدون نے کافی پہلے دیا ہے۔*

ومدعی الاجتهاد لهذا العهد مردود علی عقبه ومهجور تقلیده وقد صار اهل الاسلام علی تقلید هؤلاء الائمة الاربعة *اگر تقلید شرک وبدعت ہے تو اہل اسلام سب کے سب مشرک وبدعتی ؟؟۔*

پدے عبارت کښې ډیر دجل دے (۱) –وائی : براه راست د قرآن او حدیث نه د اخذ اجازت نشته ۔ مونږ وایو : دا چا منع کړے ده ؟ که ستا اجازت نه وی نو ته څوك ئے ؟ ۔

(۲) – ولے قرآن حدیث صرف په امام ابو حنیفه وقف دی یا په دے څلور امامانو د نور امت دپاره ندی ؟ ۔

(۳) – بلـه دا چـه زمـونږ خو نوے مذهب ندے هم دغه قرآن او حـديـث دى او اكثـر اقـوال زمـونږ د ائمه اربعو د مذهب موافق دى نـوے مـذهـب كوم دے صرف تاسو بعض قرآن او حديث منئ كوم چه ابو حنيفه صاحبؒ راوړے دے او مونږ ټول منو دا فرق دے ؟ ۔

(٤) – ابـن خـلـدون خبـره خـو ښـه د قرآن ټكى ندى چه ته پرے دومـره خـوشـحـالـه شـوے د ابـن خـلـدون خبره مردوده ده شعرانىؒ فـرمائى : په اليواقيت والجواهر كښ او شاه ولى الله ترے نقل كړے عقد الجيد كښ (١٤٤) ۔

اول ئے د ائمه اقوال راوړى دى په اتباع د سنت كښ بيا فرمائى :

ثم نقل – اى الشعرانى – عن جماعة عظيمة من علماء المذاهب انهم كـانـوا يعملون ويفتون بالمذاهب من غير التزام مذهب معين من زمن اصـحاب المذاهب الى زمانه على وجه يقتضى كلامه ان ذلك امر لم يـزل الـعـلـمـاء عليه قديماً وحديثاً حتى صار بمنزلة المتفق عليه فصار سبيل المسلمين الذى لا يصح خلافه ۔

نـو اوګـوره هر دور كښ تر د شعرانى صاحب د دور پورے علماؤ به د يو مذهب تقليد نه كولو او دا متفق عليه بين المسلمين خبره ده چه خلاف ئے جائز ندے ۔

لږ مـذكـوره عبـارت د شاه صاحبؒ كښ سوچ اوكړه كه تعصب نـه كـوے ! بله دا چه ابن خلدون څوك دے چه د هغه خبره به مونږ باندے لازمه وى بله دا چه ته خو د ابو حنيفهؒ مقلد ئے او خبرے ټولے د بـل چا نـه نـقـل كـوے دا خـو بـيـا د بـل چا كمال شو نو تقليد د

ابو حنيفةؒ څنګه کوے ـ د ابو حنيفهؒ نه چه – ستاسو پيغمبر دے – هم څه را وړه کنه ؟ ـ

(۵) – بيا مقلدين ليکی لکه رد المحتار (۳۷۸/۲) (۳۵/۳) کښ ليکی : ابن الهمام بلغ رتبة الاجتهاد ـ

نو ابن الهمام نه ئے مجتهد جوړ کړو او وائی چه اجتهاد د څلورمه صدئ نه بعد بند شوے دے ؟ ـ

او ابن الهمام خو د اوومے صدئ سړے دے نو وائی مجتهد نشته پس د څلور امامانو نه او بيا وائی ابن الهمام مجتهد دے او اجتهاد درجے ته رسيدلے دے ـ

دا لا څه کوے علامه عبد الحی اللکهنوی ليکی په النافع الکبير (۱۲) کښ : والحاصل ان من ادّعی بانه قد انقطعت مرتبة الاجتهاد المطلق المستقل بالائمة الاربعة انقطاعاً لا يمکن عوده فقد غلط و خبط فان الاجتهاد رحمة من اللّٰه سبحانه ورحمة اللّٰه لا تقتصر علی زمان دون زمان ولا علی بشر دون بشر ومن ادّعٰی انقطاعها فی نفس الامر مع امکان وجودها فی کل زمان فان اراد انه لم يوجد بعد الاربعة مجتهد اتفق الجمهور علی اجتهاده وسلموا استقلاله کاتفاقهم علی اجتهادهم فهو مسلم والا فقد وجد بعدهم ايضاً ارباب الاجتهاد المستقل کابی ثور البغدادی وداود الظاهری ومحمد بن اسماعيل البخاری وغيرهم علی ما لا يخفیٰ علی من طالع کتب الطبقات ـ

نو اوګوره علامه عبد الحیؒ صاحب د اجتهاد دروازه بنده نه ګنړی، روسته هم غټ غټ مجتهدين منی او دا واقع هم ده بلکه

امام سیوطیؒ یوه علمی رساله لیکلی ده په نوم د : الرد علی من اخلد الی الارض وجهل ان الاجتهاد فی کل عصر فرض ۔
دا ثابته کړے ده چه مجتهدین علماء هره زمانه کښې دی او د اجتهاد دروازه اوس هم کولاوه ده او الحمد لله زمونږ اهل حدیث علماؤ کښې مجتهدین شته دا په مقلدینو کښې نشته ۔
ځکه هغوی ځان په زوره جاهل کړے دے او دا حقیقت دے که څوك ئے منی او که نه ؟ ۔

## ۲۲ - دویشتم تحقیق :

مقلدین لیکی چه فقه حنفی په ټولو فقهو کښې غوره ده ځکه یو خو په ثنائی حدیثو او احادی حدیثو بناء ده او بل دا چه فقه واقعی او تقدیری دواړه په کښې ده ۔
مذهب د اهل حدیث روسته زمانه کښې پیدا شوے دے انګریز پیدا کړے دے او بیا بیرته هم دغه مقلدین فقه حنفی رد کوی او مذهب د اهل حدیث ته ښه ګوری او صفت ئے کوی ۔ لکه ته لاندے حواله جات اوګوره :

(۱) – قال الشیخ زکریا فی درس بخاری (۱/٤٤)
تو اب مجھے کہنا یہ ہے کہ جب ثلاثیات اتنی مفخم ہیں کہ انکے لئے مستقل کتابیں لکھی گئی اوران کو اعلیٰ نوع میں شمار کیا گیا ہے تو فقہ حنفی تو اس سے بھی مہتم بالشان ہے کیونکہ وہ تو ثنائی ہے یعنی اس میں ایک واسطہ تابعی کا ہے دوسرا صحابی کا۔

پھر زکریا صاحب فرماتے ہیں: (۲/۳۷) جب امام بخاری کی روایات ثلاثیات ہوسکتی ہیں تو حضرت امام صاحب کا روایات ثنائیات ہونا یقیناً ہے اگر میں یوں کہوں کہ وحدان ہیں تو مبالغہ نہیں ہوگا اس اعتبار سے یقیناً فقہ حنفی بہت مضبوط ہے ۔

دا ټول خرافات او وهميات دی ۔

کومه دی هغه وحدانی او ثنائيات يو دِے ثوك اوښائی انعام به ورکړو که وی مونږ به هم پرے ډیر خوشحاله وے خو نشته ۔

(۲) – وقال محمد ادريس الكاندهلوى فی رسالته اجتهاد اور تقليد (۱۱٤) وهو فی تنقيد سديد (۳٦۹) بديع الدين الراشدیؒ :

نیز امام بخاری کی اعلیٰ ترین روایات ان کے بائیس ثلاثیات ہیں اور فقہ حنفی ثنائی یا وحدانی ہے اب فرق کا اندازہ کرلو ملخصاً۔

دیکھو رسالہ اجتہاد وتقلید (۹۳) اور تنقید سدید (۲۷۸)۔

وائی چه فقه حنفی په احاديثو ثنائی يا وحدانی باندے بناء ده نو د بخاری د اعلیٰ ترين رواياتو نه غوره شوه نو د عام بخاری نه خو غوره ده نو د نورو کتب حديث خو درکنار (اوګوره محبت الرسول ته او ديوبنديانو ته او د حديثو عزت ته او بخاری باندے دوی خلاصه کيدانی او د خرافاتو نه ډکه هدايه غوره کوی والعياذ بالله ـ اے مسلمانانو ! تاسو له د خپل نبی عليه السلام په حديث غيرت نه درزی ؟ بلکه مونږ ته متشدد وائی دا تشدد دِے الله تعالی زمونږ نصيب کړی ۔

(۳) – بلکه منظور صاحب ليکی خپله تحفه کښ (۱۲۳)

"فقہ حنفی کی خصوصیت : امت پر فقہ حنفی کا بہت بڑا احسان ہے فقہ حنفی ہی وہ واحد

فقہ جس میں فقہ تحقیقی اور فقہ تقدیری دونوں موجود ہیں۔ فقہ تحقیقی صرف ان مسائل کا حل جن کا وقوع بھی ہوا ہو، فقہ تقدیری فرضی صورتیں بنا کر ان کا جواب دینا، اگر یوں ہوا تو اس کا یہ حکم ہے، آج کل سینکڑوں پیش آمدہ مسائل فقہ تقدیری کی روشنی میں حل کئے جاتے ہیں۔ امام رازی رحمہ اللہ تعالی نے تفسیر کبیر لکھی عقلی احتمالات بنا کر ان کا جوابات دیئے اور وہ احتمالات آج پیش آرہے ہیں"۔

**مونږ وایو چه دغه تقدیری فقه چه فرضی مسائل دی صحیح نده بلکه دغه تحقیقی هم اوویا فیصده د کتاب او سنت خلاف ده۔**

**د فقه حنفی په تول امت احسان نشته بلکه د کتاب او سنت احسان دے او د محدثینو احسان دے چه دین ئے راجمع کړے دے فجزاهم الله خیرا۔ لیکن مقلدین د څه نه خبر دی۔**

**بیا منظور صاحب لیکی په تحفه (۷۴) کښ:** احادیث الامام ثنائیات سے کم نہیں، منها الثلاثیات للبخاری وغیره والثنائیات فی الموطأ للامام مالك والوحدان فی حدیث الامام اقول ولو سلم بانه لیست له وحدان فلا یحرم من الثنائیات۔

**زه وایم څه شو دغه وحدان او ثنائیات۔**

**اوس راشه عبد الحی اللکنوی رحمه الله لیکی په امام الکلام کښ (۲۱۶)** ومن نظر بنظر الانصاف وغاص فی بحار الفقه والاصول مجتنباً عن الاعتساف یعلم علماً یقیناً ان اکثر مسائل الفرعية والاصلية التی اختلف العلماء فیها فمذهب المحدثین فیها اقویٰ من مذاهب غیرهم وانی کلما اسیر فی شعب الاختلاف اجد قول المحدثین فیه قریباً من الانصاف فلله درهم وعلیه شکرهم کیف

لا وهم ورثة النبی ﷺ حقاً ونواب شرعه صدقاً حشرنا الله فی زمرتهم واماتنا علی حبّهم وسیرتهم ۔

**نو اوګوره د محدثینو مذهب په عامو مسائلو کښې غوره دے د مذهب حنفی نه باقرار العلامه عبد الحیّ ۔ نو ته سوچ اوکړه څرنګ فقه حنفی غوره شوه ۔**

**دارنګه فرمائی په طبقات الفقهاء کښې المشهور بالنافع الکبیر** (۱۶) وفی الانصاف انقرض المجتهد المطلق المنتسب فی مذهب ابی حنیفة بعد المائة الثالثة ذلك لانه لا یکون الا محدثاً جیداً واشتغالهم – ای الحنفیة – بعلم الحدیث قلیل قدیماً وحدیثاً ، وانما کان فیه المجتهدون فی المذهب الخ ۔

**نو اوګوره احنافو د حدیثو سره تعلق کم لری ځکه فقه کښې خطایانے ډیرے دی او د سنت نبوی نه جدا ده ۔**

وفی عقد الجید (٦٣) وفی (٢٩) للشاه ولی الله وکذا فی اصول الفقه الاسلامی (١١٣٥/٢) وکذا فی حجة الله البالغة (١٥٣/١) ۔

وما احسن ما قاله شیخ الاسلام عز بن عبد السلام فی هذا الشان فی القواعد الکبریٰ ومن العجب العجیب ان الفقهاء المقلدین یقف احدهم علی ضعف مأخذ امامه بحیث لا یجد لضعفه مدفعاً فهو مع ذلك یقلد فیه ویترك من شهد له الکتاب والسنة والاقیسة الصحیحة لمذهبهم جموداً علی تقلید امامه بل یتمایل لدفع ظواهر الکتاب والسنة ویتأولها بالتاویلات البعیدة الباطلة نضالاً عن مقلده وقال لم یزل الناس یسألون من اتفق من العلماء من غیر تقیید بمذهب ولا

انکار علی احد من السائلین الی ان ظهرت هذه المذاهب ومتعصبوها من المقلدین فان احدهم یتبع امامه مع بعد مذهبه عن الادلة مقلداً له فیما قال کأنه نبی ارسل الیه وهذا نأی عن الحق وبعد عن الصواب لایرضیٰ به احد من اولی الالباب ۔

**دا طریقه بعینهٖ د مقلدینو ده او فقه حنفی دغه شان ده او بیا هم دوی پرے خوشحاله دی ځکه اولو الالباب ندی ؟ ۔**

**وفی النافع الکبیر لعبد الحیؒ (۱۴) : اکثر المذاهب مفسراً ومحدثاً واسناداً مذهب الشافعی ۔**

**مطلب دا چه شوافع علماؤ کښی محدثین مفسرین او اسناد والا علماء په کښی ډیر وو او هغوی به تقلید نه کولو ۔ نو د مذهب حنفی نه مذهب شافعی غوره شو ۔ فتدبر ! ۔**

**بیا په احسن الفتاوی کښی لیکی (۱/۳۱٦) د مودودی په رد کښی :** *"مودودی صاحب فرماتا ہے: میں نہ مسلک اہل حدیث کو اس کی تمام تفصیلات کے ساتھ صحیح سمجھتا ہوں اور نہ حنفیت یا شافعیت ہی کا پابند ہوں اب قابل دریافت یہ امر ہے کہ پھر آپ کیا ہیں تقریباً دوسری تیسری صدی ہجری میں اہل حق میں فروعی اور جزئی مسائل کی حل کرنے میں اختلاف انظار کے پیش نظر پانچ مکاتب فکر قائم ہوگئے یعنی مذاہب اربعہ اور اہل حدیث اس زمانے سے لیکر آج تک انہی پانچ طریقوں میں حق کو منحصر سمجھا جاتا رہا"۔*

**نو اوګوره اهل حدیث د دویمے او دریمے صدئ نه شروع دی په نزد د رشید احمد لدهیانوی صاحب او بیا دوی وائی د انګریز پیدا وار دے ۔**

**اګرکه صحیح خبره دا ده چه اهل حدیث اولا صحابه کرام دی**

بیا تابعین الی یومنا هذا والی یوم القیامه به وی ان شاء الله لاتزال طائفة من امتی علی الحق حتی یأتی امر الله الحدیث وهم اهل الحدیث کما فی تاریخ اهل حدیث (۱۴۵) تفصیلاً ۔

## (۲۳) - دریشتم تحقیق :

مقلدین لیکی چه د څلورو مذهبونو نه ماسوئ بل قول د عالم ته اوړیدل اګرکه صحیح هم وی ندی جائز بلکه فتنه او فساد په کښې دے لکه منظور صاحب لیکی په خپله تحفه کښې (۱٤۳) :

*مذاہب اربعہ سے اعراض فتنہ وفساد ہے۔*

*پھر لکھتا ہے (۱۴۴) مذاہب اربعہ کے تقلید سواد اعظم کی تقلید ہے۔*

مونږ وایو تاسو خو اولا درے مذهبونه پریښی دی یادوی څلور او تقلید صرف د یو کوی کلام کښې ستاسو ډیر نقصان دے لږ سوچ وکړئ ! ۔

او دویم دا چه ستاسو مقلدینو لیکلی دی لکه فواتح الرحموت شرح مسلم الثبوت (۲/٤۰۷) کښې دی چه د ائمه اربعو نه ماسوئ د نورو علماؤ خبره منل هم شته او صحیح کار دے کله چه د هغوی فتوی صحیح ثابته شی ځوك چه تقلید د ائمه اربعو پورے خاص کوی غلط وائی او په مسلم الثبوت والا باندے رد کوی ۔

نو اوس د چا اومنو آیا ستا او که د هغه ؟ ۔

هغه داسے وائی : قال العراقی : انعقد الاجماع علی ان من اسلم فله ان یقلد من شاء من العلماء من غیر حجر واجمع الصحابة علی ان

من استفتى ابابكر وعمر اميرى المؤمنين فله ان يستفتى اباهريرة ومعاذ بن جبل وغيرهما ويعمل بقولهم من غير نكير فمن ادعیٰ رفع هذين الاجماعين فعليه البيان .

ثم قال : ثم فى قوله خلل آخر اذا المجتهدون الآخرون ايضاً بذلوا جهدهم مثل بذل الائمة الاربعة وانكار هذا مكابرة وسوء ادب.الخ .

**او مخکښې تير شو د شاه صاحب عبارت د عقد الجيد (٦٣) :**

لم يزل الناس يسألون عمن اتفق من العلماء من غير تقييد بمذهب ولا انكار من احد من السائلين الى ان ظهرت هذه المذاهب ومتعصبوها من المقلدين الخ ـ **دارنګه په (٤٨) ـ**

**نو دا خو اجماعي خبره ده د امت چه د هر عالم صحيح خبره به اخستلے شي دا تخصيص د څلور مذهبونو کول او بيا صرف يو اخستل تعصب دے او بدعت دے او د اجماع د امت خلاف دي بلکه د قرآن او حديث خلاف عمل دے ـ**

**روسته راځي خلاصه کيداني کښې وائي : کاهل الحديث ـ نو د هغه زمانه کښې هم اهل حديث وو ـ دارنګه تذکره الرشيد (۱۳۱/۱) کښې د اشرف على صاحب قول دے چه اهل حديث اهل ظواهر هره زمانه کښې وو او ټول اهل هوىٰ خو ندي وتقدم فى (۱) مسئله ـ**

## (۲٤) - څلیرشتم تحقیق :

مقلدین اکثر لیکی چه د یو مذهب تقلید واجب دے که چرته د یو تقلید ونشی بیا تلفیق لازمیږی او تلفیق باطل دے لکه منظور صاحب اشاره کړے ده په (۱۳۹) تحفة المناظر کښ : *مذاہب اربعہ پھر ایک امام کی تخصیص۔*

لیکن شامی لیکی په رد المحتار کښ (۵۱/۱) التلفیق الذی لایجوز هو ان یلفق فی حادثة واحدة مثلا تقلید الشافعی فی مسح بعض الرأس وتقلد مالك فی طهارة الکلاب فی صلاة واحدة اما لو صلی یوماً علی مذهب واراد ان یصلی یوماً آخر علی مذهب غیره فلا یمنع منه، فتحصل مما ذکرناه انه لیس علی الانسان التزام مذهب معین انه یجوز له العمل بما یخالف ما عمله علی مذهبه الخ ۔

نو کله په یو مذهب عمل کول او کله په بل مذهب عمل کول ستاسو شامی جائز کړل هغه هم وهابی شو څه ؟ ۔

او مونږ وایو د شامی خبره هم غلطه ده ځکه مونږ د دلیل اتباع کوو هر چرته چه وی همیشه دپاره د یو عالم تقلید هم نه کوو او نه ئے منو په دغه مسئله مذکوره کښ د امام شافعی مذهب غلط دے بلکه ټول سر مسح کول فرض دی په ډیرو دلائل چه دلته اوس نه بیانیږی نو ددے فقهاؤ متاخرینو خبرے چه ګورے ټول تعارضات، تناقضات او خرافات دی ۔

## (۲۵) - پنځیشتم تحقیق :
## ( د تحقیق نه د مقلد دپاره مفر نشته )

احناف پخپله لیکی چه مقلدین به هم تحقیق کوی ځکه د فقهې حنفی کتابونو کښې او غلطې مسئلې دواړه شته دارنګه څه په کښې د امام ابو حنیفه اقوال دی او څه په کښې د بل چا دی نو د هغې تمییز پکار دے چه ددے ټولې فقهې نسبت امام صاحب ته اونشی نو ضرور به مقلد تحقیق کوی په خپله فقه کښې -

نو مونږ وایو چه د ملیانو کتابونو او اقوالو کښې تحقیق کوئ نو کتاب او سنت کښې ولې نه کوئ چه دا د چشمې سر دے او دغه کتابونه (د قلوط) د روسته سر د نهر پشان دی چه هغې کښې هر قسم شیان غورځول شوی وی -

اوګوره عبارات د فقهاء احناف ! -

قال عبد الحی اللکهنوی فی النافع الکبیر (١٦) : فائدة : لعلك تتفطن من هذا البحث انه لیس کل ما فی الفتاوی المعتبرة المختلطة کالخلاصة والظهیریة وفتاوی قاضی خان وغیرها من الفتاوی التی لم یمیز اصحابها بین المذهب والتخریج وغیره قول ابی حنیفة وصاحبیه بل منها ما هو منقول عنهم ومنها ما هو مستنبط الفقهاء ومنها ما هو مخرج الفقهاء فیجب علی الناظر فیها ان لا یتجاسر علی نسبة کل ما فیها الیهم بل یمیّز بین ما هو قولهم وما هو مخرج من بعدهم ومن لم یمیز بین ذلك وبین هذا اشکل الامر علیه .

**نو اوګوره مقلد به هم تحقیق کوی او فقه حنفی کښې تول مسائل فقه حنفی نده بلکه تخریجات او پردی اقوال هم پکښې شته ۔**

**بیا فرمائی عبد الحیؒ په (۱۷) کښې :** ثم قال علی القاریؒ وقد اغرب الکیدانی حیث جعل الاشارة بالسبابة کاهل الحدیث مثل اشارة جماعة یجمعهم العلم بحدیث رسول الله ﷺ وهذا منه خطأ عظیم وجرم جسیم منشأه الجهل عن قواعد الاصول ومراتب الفروع من النقول ولو لا حسن الظن به وتأویل کلامه بسببه لکان کفره صحیحاً وارتداده صریحاً فهل یحل لمؤمن ان یحرم ما ثبت عن رسول الله ﷺ ما کاد ان یکون متواتراً فی نقله ویمنع جواز ما علیه عامة العلماء کابراً عن کابر انتهیٰ ثم ذکر انه لیس کل ما فی الفتاوی من المسائل المخالفة للاحادیث النبویة قول ابی حنیفة وصاحبیه بل هی من تفریعات المشائخ ولم یبلغهم الاحادیث ملخصاً ۔

**نو اوګوره ډیر مسائل په فقه حنفی که د حدیث خلاف دی نو تحقیق ضروری دے ۔**

وقال المولوی منظور مینگل فی تحفة المناظر (۱٦۷) :

*"فقہ حنفی کے تعریف اصل بات یہ ہے کہ فقہ حنفی ان تمام مسائل کا نام نہیں جو فقہ حنفی کی کتابوں میں مذکور ہیں بلکہ فقہ حنفی :***الاقوال التی یفتی بها ویعمل بها** *کا نام ہے جن اقوال پر فتویٰ ہے اوران پر ائمہ نے عمل کیا ہے فقہ حنفی میں موجود ہر قول کا جواب دینا ہمارے ذمے لازم نہیں اگر آپ صرف مفتی بہ ومعمول بہ قول کے بارے میں ثابت کریں کہ قرآن وسنت کے خلاف ہیں تو پھر ہم بحث کریں گے ضعیف او مرجوح اقوال کو تو ہم خود قابل اعتناء نہیں سمجھتے"۔*

نو مونږ وايو چه مفتی بہ او غير مفتی بہ معلومول هم تحقيق غواړی او بيا هم كه مفتی بہ معلوم شی بيا هم شكی مسئله ده ځكه تقليد باندے بناء ده ۔ فتفكر ! ۔

دا وجه ده عقد الجيد كښ شاه صاحب فرمائی :

او په اصول الفقه الاسلامی كښ (۱۱۳۵/۲) وهبہ صاحبؒ د ابو شامهؒ نه نقل كوی : ينبغی لمن اشتغل بالفقه ان لا يقتصر علی مذهب امام معين بل يرفع نفسه عن هذا المقام وينظر فی مذهب كل امام ويعتقد فی كل مسئلة صحة ما كان اقرب الیٰ دلالة الكتاب والسنة المحكمة وذلك سهل عليه اذا كان قد اتقن معظم العلوم المتقدمة ( ای علم الاجتهاد ) وليجتنب التعصب وطرائق الخلاف المتأخرة فانها مضيعة للزمان ولصفوه مكدرة ۔

نو شاه صاحب فرمائی چه مقلد له تحقيق پكار دے ۔

## (۲٦) - شپږيشتم تحقيق :

مقلدين احناف ليكی چه د اجتهاد دروازه بنده ده اوس هيڅ مجتهد نشته په دنيا كښ او عام علماء چه تير شوی ټول مقلدين وو لكه دا خبره ډيرو مقلدينو ليكلے ده وقد تقدم امثلة ذلك ۔

پدے خبره د شاه ولی الله صاحب رد اوكوره په عقد الجيد كښ (۹) : فما يظن فيمن كان موافقاً لشيخه فی اكثر المسائل لكنه يعرف لكل حكم دليلاً ويطمئن قلبه بذلك الدليل وهو علی بصيرة من امره

انه ليس بمجتهد ظن فاسد .

وكذلك ما يظن من ان المجتهد لايوجد فى هذه الازمنة اعتماداً على الظن الاول بناء فاسد على فاسد .

مطلب دا دے چه يو محقق عالم كله چه موافقت د يو امام كوى په اكثرو مسائلو كښ ليكن د هر حكم او مسئلے دليل اوپيژنى او ښه په بصيرت روان وى نو دا مجتهد دے او كه څوك ورته مجتهد نه وائى نو دا فاسد گمان والا دے دارنگه څوك چه وائى پدے زمانو كښ مجتهد نشته نو د هغوى گمان خو فاسد دے او په فاسد بناء دے ـ

اوس دے زمانه كښ مجتهدين شته اجتهاد څه عنقاء خو نده لكه روسته تحقيق نه معلوميږى ته ئے اوگوره ! ـ

## (۲۷) -اويشتم تحقيق :

اجتهاد اوس هم كيدے شى تقليد ته ضرورت نشته ځكه د اجتهاد شرطونه دا دى لكه شاه صاحب عقد الجيد كښ ليكى (۹، ۱۰)

وشرطه انه لا بد له ان يعرف من الكتاب والسنة ما يتعلق بالاحكام وموانع الاجماع وشرائط القياس وكيفية النظر وعلم اللغة والناسخ والمنسوخ وحال الرواة ولا حاجة الى الكلام ( اى علم الكلام والفقه الخ .

شروط د اجتهاد دا دى : (۱) د قرآن د احكامو علم ـ

(۲) – د احادیث الاحکام علم
(۳) د اجماع علم ـ
(٤) – د قیاس علم او طریقه ـ
(٥) د عربی لغت چه صرف قرآن او حدیث پرے حل کولے شی ـ
(٦) – د ناسخ او منسوخ علم ـ
(۷) د راویانو حال یعنی علم اسماء الرجال
(۸) – د اجتهاد دپاره علم کلام او فقه ته حاجت نشته کما قال الشاه صاحب ـ

دا قسم شرطونه مولانا گوهر رحمٰن صاحبؒ په رساله اجتهاد اور تقلید کښ هم راوړی دی پدے ترتیب (۲۹) :
(۱) قرآنِ مجید کا علم
(۲) سنت رسول کا علم ـ
(۳) اجماعی مسائل کا علم ـ
(۴) برائت اصلیہ (مباحات) کا علم ـ
(۵) اصول اجتہاد کا علم (علم اصول فقہ) ـ
(۶) عربی زبان کا علم ـ
(۷) ناسخ منسوخ کا علم ـ
(۸) اصول حدیث کا علم ـ

بیا دا علمونه ضرور نده چه دده ذهن کښ دِے ټول پراته وی بلکه چه دده سره مجموع د کتابونو وی چه دا علمونه په کښ مذکور وی او دا تړے استفاده په آسانی سره کولے شی او مسئله

بالدليل معلومولے شی او يو حقيقت ته رسيدے شی بس دغه مجتهد دے والحمد لله او دا کار گران ندے ۔

ليکن اجتهاد دعویٰ ډے هر سړی نه کوی ۔

نو ثابته شوه چه اجتهاد اوس هم ممکن دے علماء کرام دپاره او الحمد لله واقع هم دے نو تقليد ته حاجت نشته ۔

بلـه دا چه مقلد مولاهم د امام ابو حنيفهؒ قول پسے گرځی کتابونو کښ او تحقيق کوی نو که دا تحقيق په مذکوره علمونو کښ اوکړی دا به هم مجتهد شی او ليکن ددے اجتهاد په ځان په زوره گران کړے دے ۔

زه وايم : دا علوم مذکوره د امام ابو حنيفه زمانه کښ دومره فراخه نه وو لکه زمونږ زمانه کښ نو څه وجه ده چه هغه اجتهاد کولے شو او زمونږ يو متبحر عالم ددے زمانے ډے اجتهاد نشی کولے ؟؟ واليه اشار الشوکانی فی ارشاد الفحول ۔

وفی النافع الکبير (۱۱) ورد المحتار (٤/ ۳۰٤) شروط الاجتهاد فقه النفس سلامة الذهن صحة التصرف والاستنباط والتيقظ ومعرفة الادلة وآلاتها المذکورة فی الاصول والضبط لامهات المسائل ۔

نو دا خو گران کار ندے ولے نعمت بنده وئ ! ۔

## (۲۸) - اته ويشتم تحقيق :

محققين احناف ليکی چه د امام صاحبؒ د تقليد په باره کښې افراط نه دے پکار ليکن د هغوی نصيحت اوسنی مقلدين نه منی او ځان په زوره گمراه کوی ـ واوره د هغوی تحقيق :

قال ابن ابی العز الحنفی فی رسالته الاتباع (۳۰) وقد انحرف فی شان ابی حنيفة رحمه الله طائفتان فطائفة قد غلت فی تقليده فلم تترك له قولاً وانزلوه منزلة الرسول ﷺ وان اُورد عليهم نص مخالف قوله تأولوه علی غير تاويله ليدفعوه عنهم ولم يكن اصحابه معه كذلك بل رجعوا فی كثير مما كانوا قلدوه فيه لما ظهر لهم فيه الدليل علی خلاف قوله ـ

وطائفة تنقصته وادعت انه اخذ بالرأی وترك النص هو واصحابه وسموهم اصحاب الرأی وهم ما بين مستقل فی ذلك من الطرفين ومستكثر فتراهم مابين قادح تارة بحق وتارة بباطل والله يغفر لنا ولهم ـ

نو اوگوره مقلدين اوسنی اکثر د دغه اولے طائفے نه دی ـ

او امام ابوحنيفه د رسول الله ﷺ په شان گنړی او احاديث نبويه کښې تاويلات کوی ـ

دارنگه علامه عبد الحی اللكهنوی ليکی په النافع الكبير کښې (۳٦) : اقول : تفرق الناس من قديم الزمان الی هذا الاوان فی هذا الباب الی الفرقتين فطائفة قد تعصبوا فی الحنفية تعصباً شديداً والتزموا بما فی الفتاوی التزاماً سديداً وان وجدوا حديثا صحيحاً

واثراً صريحاً على خلافه وزعموا انه لو كان هذا الحديث صحيحاً لاخذ به صاحب المذهب ولم يحكم بخلافه وهذا جهل منهم بما روته الثقات عن ابى حنيفة من تقديم الاحاديث والاثار على اقواله الشريفة فترك ما خالف الحديث الصحيح رأى سديد وهو عين تقليد الامام لا ترك التقليد وطائفة ان الامام قاس على خلاف الاخبار وهجر ما ورد به الشرع والاثار فظنوا فى حقه ظنوناً سيئة واعتقدوا عقائد قبيحة ومطالعة الميزان لهم نافع ولاوهامهم دافع فليتخذ العاقل مسلك البين ويهجر طريق الطائفتين ۔

زه وايم چه مونږ دغه درميانه خلق يو او مقلدين زمونږ د زمانے اولنئ ډله ده چه د امام صاحب يوه خبره خلاف الحديث نه ګنړي بلكه د حديث تاويل ورته آسان دے او د امام صاحبؒ خبره پريخودل يا خطاء ګنړل ورته ګران دي ۔

نو اے مقلدينو كه زمونږ نصيحت نه منئ ، د خپلو مشرانو نصيحت اومنئ او كتاب او سنت ته راواپس شئ چه الله تعالى درنه رضا شى او د علم په خوند به پوهه شئ وما ذلك على الله بعزيز نسأل الله السلامه ۔

## (۲۹) - نهيشتم تحقيق :

مقلدين ځان ته احناف وائى او بيا په ډيرو مسئلو كښې د ابويوسف او محمد خبرے منى نو خپله ئے تقليد پريخودلو كه

څوك ووائي چه د ابويوسف او محمد تقليد د امام صاحب تقليد دے کنه ؟ نو ددے جواب مخکښ تير شو په رقم (٧/٦) کښ چه هغوی خو مستقل امامان دی ۔

اوګوره پدے خبره د احنافو عبارات :

قال الشامی فی رد المحتار (١/٣٩) : وقد جعل العلماء ( الحنفية ) الفتوی علی قول الامام الاعظم فی العبادات مطلقاً وهو الواقع بالاستقراء ما لم يكن عنه رواية كقول المخالف كما فی طهارة الماء المستعمل و الفتوی علی قول محمد فی جميع مسائل ذوی الارحام والفتوی علی قول ابی يوسف فی القضاء و الشهادات الخ ۔

نو اوګوره ابو حنيفهؒ ئے پريخودلو كوم چه د دوی د نبی پشان دے ځکه چه د هغه نه پوره مسائل د دوی نقل ندی ځکه محتاج شو ابويوسف او محمد ته ۔

نو بيا څرنګ احناف شو او عجب دا ده چه صرف د کوفے عالمانو پسے ورځی هغه نور غټ غټ ائمه پريدی لکه امام مالك ، امام شافعی، امام احمد، امام اسحق، امام سفيان الثوری، امام شعبی، امام اوزاعی، امام حميدی، امام داود الظاهری او امام ابن الحزم رحمهم الله – دارنګه نور غټ غټ علماء ۔

لکه ته د دوی تعصب ته اوګوره :

قال فی الدر المختار (١/٤٨) : ويفتی بقول الامام علی الاطلاق ثم بقول الثانی ثم بقول الثالث ثم بقول زفر و الحسن بن زياد ۔

نو دا څومره تعصب دے ستاسو د حسن بن زياد او زفر او

محمد او ابویوسف نه خو امام مالك او شافعی او احمد او بخاری ښه پوهیږی په اسلام باندے نو هغه ولے شا ته گوزار شو ۔ بلکه امام مالكؒ د امام ابو حنیفهؒ نه هم ښه عالم وو ۔
کما فی المرعاة (۱/۱۲) نقلاً عن ابن خلکان .
نو ولے تعصب کوی او خاص کسان په امت کښې منتخب کوی او عام علماؤ نه فائده نه اخلی سره د اوچت والی د هغوی نه په دین اسلام کښې ۔ پدے دِیو مسلمان عاقل سوچ اوکړی چه دا ولے ؟؟ ۔

## (۳۰) - دیرشتم تحقیق :

صحیح حدیث چه راشی او د مذهب خلاف وی نو شاه صاحب فرمائی : حدیث به اخلو ورنه ظالمان به شو او تقی عثمانی صاحب وائی : نه مذهب به اخلو او حدیث به پریدو ۔
لکه شاه صاحب حجة الله البالغة کښې (۱/۱۵٦) لیکی :
فان بلغنا حدیث من الرسول المعصوم الذی فرض الله علینا طاعته بسند صالح یدل علی خلاف مذهبه ( ای المجتهد) وترکنا حدیثه واتبعنا ذلك التخمین فمن اظلم منا وما عذرنا یوم یقوم الناس لرب العالمین ۔
مونږ وایو مقلدین هم دا کار کوی ښه صحیح حدیث پریدی د امام صاحب د خاطره لکه د دوی کتابونه او درسونه ددے ښکاره دلیل دے یو مثال واوره تقی صاحب لیکی په درس ترمذی کښې

(۱۲۲/۱) اورتقلید کا شرعی حیثیت (۸۷): عام آدمی ایسا نہیں ہوتا جو دلائل کے راجح ومرجوح ہونے کا فیصلہ کر سکے بلکہ اسے شخص کو اگر کوئی حدیث ایسی نظر آ جائے جو بظاہر اس کے امام مجتہد کے مسلک کے خلاف معلوم ہوتی تب بھی اسکا فریضہ یہ ہے کہ وہ اپنے امام ومجتہد کے مسلک پر عمل کرلے اور حدیث کے بارے میں یہ خیال رکھے کہ اسکا صحیح مطلب میں نہیں سمجھ سکا یا یہ کہ امام مجتہد کے پاس اسکے معارض کوئی قوی دلیل ہوگی۔

آگے چل کر مزید لکھتے ہیں : کہ اگر ایسے مقلد کو یہ اختیار دیا جائے کہ وہ کوئی حدیث اپنے امام کے مسلک کے خلاف پاکر امام کے مسلک کو چھوڑ سکتا ہے تو اسکا نتیجہ شدید افراتفری او سنگین گمراہی کے سوا کچھ نہیں ہوگا۔

نو آیا د حدیث اتباع ګمراهی ده څه ؟ او فقه حنفی منیه، قدوری پسے ورتلل ګمراهی نده، ضعیف حدیث ستاسو د فقهی نه غوره دے ( غوښه چه وسوزی نو هم د دالونه غوره وی ) ۔

## (۳۱) -یویشتم تحقیق :

مقلدین جامدین لیکی چه څوك خلور مذهبونونه بهر شول نو هغه به لادین شی او آخر به ګمراهان شی لکه دا خبره کوثری په خپل ( ناکاره ) مقالات کښ لیکلے ده (۱۲۹) اللامذهبية قنطرة اللادينية ۔

دارنګه ظفر احمد عثمانی لیکی په قواعد فی علوم الحدیث کښ چه دا کتاب مشتمل دے په عداوت السنن باندے (٤٦٢) چه اللامذهبية قنطرة اللادينية ۔ دارنګه سید قمر مولا په خپله فتوی

کښې نقل کوی د محمد حسین بټالوی نه چه غیر مقلدین اخیر گمراهان شی (١٤)۔

نو مونږ وایو چه مونږ والحمد لله پے مذهبه نه یو راشئ زمونږ مذهب دا دے (ذلك الکتاب لاریب فیه هدی للمتقین) دارنگه رسول الله ﷺ فرمائی : لقد جئتکم بها بیضاء نقیة رواه احمد۔

دارنگه فرمائی : لقد ترکتکم علی الحجة البیضاء لیلها کنهارها رواه ابن ماجه وغیره المشکاة (١/٣٠) ابن ماجه (١/٥)۔

دارنگه ابن مسعودؓ فرمائی : من کان مستنا فلیستن بمن قد مات اولئك اصحاب محمد ﷺ الحدیث رواه رزین کما فی المشکاة (١/٣٢)۔

دارنگه زمونږ مذهب دے : من لم یرحم صغیرنا ویوقر کبیرنا ویُبَجِّلُ عَلِیمَنَا او عَالِمَنَا فلیس منا رواه احمد وغیره بالفاظ مختلفة۔

نو قرآن او هر صحیح حدیث او د صحابه کرامو اتباع او د علماؤ عزت زمونږ مذهب دے دارنگه زمونږ مذهب د محدثینو مذهب دے دارنگه زمونږ عام اقوال او فتاوی د څلورو مذهبونو نه بهر ندی الا نادرا او په هغے کښې هم مونږ سره د سلفو معتمد علماء ملگری دی تفسیر بالرأی ندے۔ زمونږ خپل جدید قول نشته نو آیا دا څه مذهب ندے؟ بلکه والله چه دا کامل او صحیح مذهب دے او څوك چه ددے نه واوړیدو هغه یا مبتدع دے یا به کافر وی۔

او ستاسو مذهب په عقائدو کښې ماتریدیان یئ او په فروعو کښې حنفیان یئ او په تصوف کښې نقشبندیان، چشتیان،

سهروردیان، قادریان يئ او په ډيرو مسئلو کښ ديوبنديان ـ بيا څه حياتيان او مماتيان او بيا په مختلفو تنظيمونو تقسيم شوی يئ چه يو بل ته کافر هم وائی ـ اوګوره عقائد علماء ديوبند (۲۱۳) المهند علی المفند (۲) او ستاسو مذهب ټول په شك کښ دے او څلور مذهبونو کښ صرف يو منئ او نور خطا ګنړئ ! ـ

لکه ستاسو د فقه حنفی معتبر کتاب درمختار او رد المحتار کښ ليکی (۳۳/۱) : وفيها واذا سئلنا عن مذهبنا ومذهب مخالفنا قلنا وجوباً : مذهبنا صواب يحتمل الخطأ ومذهب مخالفنا ( ای الشافعی ومالك واحمد )خطأ يحتمل الصواب ـ

نو ته اوګوره يو خو ستاسو مذهب خپل احتمال د خطاء لری نو شك شو او بيا دا نور مذاهب ثلاثه ټول خطاء شول احتمال د حق په کښ شو ـ

نو دا څو مره ګډوډ مذهب دے او زمونږ مذهب والحمد لله بلا شك دے ( لاريب فيه ) ولے دا قرآن او حديث تاسو ته مذهب نه ښکاری څه ؟ چه مونږ لامذهب ګنړئ ! لګ د عقل نه کار واخلئ

دارنګه مونږ وايو دا عام خلق چه اوس د انګريز ملګری شو او يهود نصارا شو ذا څه احناف نه وو؟ ـ

## (۳۲) -دوه ويشتم تحقيق

مقلدين ليکی چه د څلور مذهبونو نه اوړيدلو کښ فتنه اه

فساد دے او بیا د شاه صاحب عبارات راوړی د عقد الجید نه لکه منظور صاحب دا کار کړے دے په تحفة المناظر کښ (۱٤۳) د شاه صاحب عبارت نیمګړے راوړی : اعلم ان فی الاخذ بهذه المذاهب الاربعة مصلحة عظیمة وفی الاعراض عنها مفسدة کبیرة .

نو منظور صاحب ترے کلها لفظ حذف کړے دے تحریف ئے کړے دے۔

نو زه وایم چه منظور صاحب او مقلدین اوّلاً په دغه عبارت ندی پوهه شوی ځکه هغے کښ داسے الفاظ دی :

اعلم ان فی الاخذ بهذه المذاهب الاربعة مصلحة عظیمة وفی الاعراض عنها کلها مفسدة کبیرة الخ ۔

نو یو بالکلیه څلور مذهبونه پریخودل دی چه یوه مسئله هم د هغوی نه انسان نه راخلی او یو جدا مذهب جوړ کړی نو زه وایم دا کار خو اهل حدیث والسنت چرته ندے کړے بلکه مخکښ تیر شو زمونږ عام مسائل څلور مذهبونو کښ شته او که ته اووائے چه تلفیق مه کوئ کله د یو قول پسے ځئ او کله د بل ؟ نو جواب دا دے چه دا د دلیل په بناء کوو او د دلیل په بناء باندے تلفیق واجب دے بلکه ستاسو شامی خو تلفیق بلا دلیل هم جائز کړے دے کما فی رد المحتار (۱/۵۱) وتقدم فی تحقیق رقم (۲٤) ۔

دارنګه دا هم وایم چه د شاه صاحبؒ عبارت خو څه د قرآن تکی ندی هغه یوه رأی ده او بیا روسته شاه صاحب لیکلی دی چه د ابن حزم تحقیق صحیح دے د هغه چا په باره کښ چه هغه څه نا څه اجتهاد کولے شی او یا امی وی ۔

**نو د هغه تهول عبارات دا دی : انظر حجة الله البالغة (١/١٥٤)**

فما ذهب اليه ابن حزم حيث قال : التقليد حرام ولا يحل لاحد ان يأخذ قول احد غير رسول الله ﷺ بلا برهان لقوله تعالى : اتبعوا ما انزل اليكم من ربكم ولا تتبعوا من دونه اولياء ) وقوله تعالى : ( واذا قيل لهم اتبعوا ما انزل الله قالوا بل نتبع ما الفينا عليه آباء نا ) وقال مادحاً لمن لم يقلد ( فبشر عباد الذين يستمعون القول فيتبعون احسنه، اولئك الذين هداهم الله واولئك هم اولو الالباب ) وقال تعالى : ( فان تنازعتم فى شيء فردوه الى الله والرسول ان كنتم تؤمنون بالله واليوم الآخر ) فلم يبح الله تعالى الرد عند التنازع الى احد دون القرآن والسنة وحرم بذلك الرد عند التنازع الى قول قائل لانه غير القرآن والسنة

وقد صح اجماع الصحابة كلهم اولهم عن آخرهم واجماع التابعين اولهم عن آخرهم واجماع تابعى التابعين اولهم عن آخرهم على الامتناع والمنع من ان يقصد منهم احد الى قول انسان منهم او ممن قبلهم فيأخذه كله فليعلم من اخذ بجميع اقوال ابى حنيفةؒ او جميع اقوال مالك او جميع اقوال الشافعى او جميع اقوال احمد رضى الله عنهم ولم يترك قول من اتبع منهم او من غيرهم الى قول غيره ولم يعتمد على ما جاء فى القرآن والسنة صارف ذلك الى قول انسان بعينه انه قد خالف اجماع الامة كلها اولها عن آخرها بيقين لا اشكال فيه وانه لا يجد لنفسه سلفاً ولا انسانا فى جميع الاعصار المحمودة الثلاثة فقد اتبع غير سبيل المؤمنين نعوذ بالله من هذه المنزلة ـ

وايضاً فان هؤلاء الفقهاء كلهم قد نهوا عن تقليد غيرهم فقد خالفهم من قلدهم وايضاً فما الذى جعل رجلاً من هؤلاء او من غيرهم اولىٰ ان يقلد من عمر بن الخطاب او على بن ابى طالب او ابن مسعود او ابن عمر او ابن عباس او عائشة ام المؤمنين رضى الله تعالى عنهم فلو ساغ التقليد لكان كل واحد من هؤلاء احق بان يتبع من غيره انتهىٰ ـ
وهكذا فى عِقد الجيد (۵۸)

نو شاه صاحبؒ فرمائى : چه د ابنِ حزمؒ دا خبره صحيح ده خو د هغه چا دپاره (فيمن له ضرب من الاجتهاد ولو مسئلة واحدة) چه هغه لږ شان اجتهاد کولے شى اګرکه په يوه مسئله کښں وى او بيا تقليد کوى نو هغه دپاره حرام دے ـ

دارنګه بيا فرمائى : او د هغه امى دپاره هم تقليد حرام دے چه د يو امام مذهب ئے کلک رانيولے وى او وائى : که صحيح حديث راشى بيا هم زه په هغې عمل نه کوم زه به صرف د خپل امام تقليد کوم نو د ابن حزمؒ د قول محمل دا دوه صورتونه دى ـ

نو زه وايم چه اوس عام مقلدين په همدغه دوه صورتونو کښں داخل دى : مليان ښه پوهيږى او تحقيق کولے شى او بيا هم تقليد کوى او عوام الناس کښں چه کوم ضديان دى هغوى صرف خپل امام صاحب پسے روان دى او صحيح حديث که يو عالِم ورته بيان کړى وائى : دا زمونږ مذهب ندے ـ

او دا کار تبليغيان ډير کوى يو سړے دِے تجربه اوکړى ـ

نو ثابته شوه چه څلورو مذهبونو کښں د يو تقليد کول په هره

مسئله کښې او نور پریخودل حرام دی لکه شاه صاحب دا خبره د
ابن حزم نه رانقل کړه او ورسره ئے اومنله ـ
لږ سوچ اوکړه او د عقل نه کار واخله ـ

## (۳۳) - تحقيق :

اکثر مقلدین د اثبات د تقلید دپاره چه تاسو د مانځه فرض واجب او سنت او مستحب او مباح مونږ ته قرآن او حدیث کښې اوښایئ مثلا الله اکبر فرض دے که واجب او که سنت دارنګه سبحانك اللهم دارنګه تعوذ، تسمیه، فاتحه، ورسره د امام او مقتدی فرق چه یو به ئے په جهر وائی او بل به ئے په پټه ـ او دے باره کښې د اهل حدیثو نه د قرآن آیت او صحیح حدیث چه بالکل صریح وی غواړی او که څوك ورته دغه آیت یا حدیث ورنکړی وائی چه اوګوره کنه هر څه قرآن او حدیث کښې نشته راشئ زمونږ امام صاحب ته چه دا ټولے خبرے هغه بیان کړی دی نو د هغه تقلید اوکړئ ـ

دا خبره عام جامدین مقلدینو لیکلے ده لکه امام الضلال صفدر اوکاړوی په خپل مجموعة الرسائل کښې دا نوع خبره کړے ده چه دغه ئے حاصل دے دارنګه کوهستانی په الطامة الکبریٰ کښې کړیده (۸۲) دارنګه نور مقلدین هم دا خبرے په پرچو کښې لیکی او اهل حق پرے ملزم کوی ـ

**الجواب :**

دلته یو څو **ضروري خبرے** واوره !

(۱) **اوله خبره** : دا چه د فرض، واجب او سنت معلومول، الله تعالی او د هغه رسول ﷺ په چا ندی لازم کړی نو ددے معلومولو ته هیڅ حاجت نشته که ته په مونږ خامخا معلومے نو ته دلیل راوړه چه الله په قرآن کښں او رسول الله ﷺ په حدیث کښں وئیلی دی چه فرائض او واجبات د مانځه معلوم کړئ نو که تا دلیل راوړو نو مونږ به بیا تا ته دا فرائض او واجبات ټول په کښں در وښایو ان شاء الله ۔

او دغه دلیل ته هیڅکله نشے راوړلے اګرکه د نوح علیه السلام په مقدار عمر دِ شی ۔

(۲) – **دویم** دا چه د واجب اصطلاح په دین کښں نشته دا خو د امام صاحب خپله ځان له اصطلاح ده او غلطه اصطلاح ده چه (الواجب ما ثبت بدلیل فیه شبهة) ستاسو ټولو واجباتو کښں شبهات دی دین مو ټول شك او شبهه ده عجیب ؟ ۔

نو هرکله چه واجب اصطلاح ستاسو مونږ نه منو نو څه دپاره مونږ باندے واجبات معلومول لازم وئ، تاسو پو هه شه او ستاسو خرافات ۔

(۳) – **دریم** دا فرائض او واجبات سنت مانځه کښں معلومول صحابه کرامو ندی کړی او سلف صالحین به بد ګنړل لکه موطأ کښں روایت دے او مشکات کښں هم دی (۱۱۳/۱) د ابن عمرؓ نه تپوس اوشو :

هل الوتر واجب ) آیا وتر فرض دی ؟ ( فقال : اوتر رسول الله ﷺ

والمسلمون ) يعني په واجب او فرض څه کوې خو د نبي عليه السلام او د مسلمانانو طريقه ده کوه ئې ! ۔

دارنګه سير اعلام النبلاء د ذهبي کښې دی (۱۱٤/۸) عن عبد الله بن الرماح قال : دخلت على مالك ، فقلت : يا ابا عبد الله ما في الصلاة من فريضة ؟ وما فيها من سنة ؟ او قال نافلة ؟ فقال مالك : كلام الزنادقة اخرجوه ۔

نو اوګوره امام مالك دې فرائض او سنت او مستحب معلومولو ته زندقت وئيلے دے او ددے ډير بهتره وجه ده چه اوس ډلته نشو بيانولے اختصاراً به داسے اووايو چه په دغه احكامو سره كفار د دين اسلام د خرابولو كوشش كولے شی لكه مقلدين چه پرے خلق د كتاب او سنت د اتباع نه تقليد ته راړوی ۔

دارنګه الانصاف کښې شاه صاحبؒ ليکی : ص (۳)

اعلم ! ان رسول الله ﷺ لم يكن الفقه في زمانه الشريف مدوناً ولم يكن البحث في الاحكام يومئذ مثل البحث من هؤلاء الفقهاء حيث يبنون باقصى جهدهم الاركان والشروط وآداب كل شیء الخ ثم قال : اما رسول الله ﷺ فكان يتوضأ فيرى الصحابة وضوءه فيأخذون به من غير ان يبين ان هذا ركن وذلك ادب ولم يبين ان فروض الوضوء ستة او اربعة الخ ۔

دارنګه توضيح الاحکام کښې هم شته ص (۱)

اوګوره الدين الخالص (۱۲۱/٤) ۔

نو چه يو شے صحابه كرامو نه وی معلوم كړے تاسو د كوم

ځایه معلوموئ ؟ نو آیا تاسو په دین د هغوی نه ښه پوهیږئ یا زیات متقیان یئ ؟ ۔

(٤) – څلورم : ستاسو د قول مطابق چه امام صاحب دا خبرے بیان کړی دی نو مونږ دوه مهم تپوسونه کوو او ستاسو آل تقلید دِے ټول راجمع شی او د هغے جواب دِ وکړی :

اول دا چه د امام صاحب نه په صحیح سند سره د هغه د خولے یا د کتاب نه دا ټول احکام پیش کړئ ! چه : قال ابو حنیفة : التکبیر فرض و سبحانك اللهم سنة و التعوذ کذا و کذا ۔

خو ګوره د هغه خپل کتاب به وی یا به مو ترے کیسټ ډك کړے وی د هغه آواز به وی یا به ترے په صحیح سند نقل وی او دا د انصاف خبره ده ۔ نو که چرته دغه شان سند او نقل مو د امام صاحب نه راوړو ( ولن تجدوا الیه سبیلا ) نو بیا دویم سوال به مونږ دا وی : چه امام صاحب خو څه نبی ندے هغه یو عالم دے مجتهد دے د هغه فتوی او خبره حجت نده په امت باندے هغه دا د کوم ځائے نه وئیلی دی نو په هغے به تاسو قرآن او حدیث پیش کوئ ځکه د مجتهد د خبرے دپاره هم دلیل پکار دے ۔ نو بیا به تاسو دا احکام فرض، واجب، سنت او مستحب د کوم آیت او حدیث نه راوباسئ ؟ لږ سوچ خو وکړئ او ضد مه کوئ ! ۔

(٥) – پنځم : دا وایو چه ستاسو د سوالونو نه خو معلومیږی چه قرآن او حدیث ناقص دی او د امام صاحب فقه کامله ده قرآن او حدیث کښ دا خبرے نشته او فقه کښ شته او ثوك چه قرآن او

حدیث ناقص ګنړی نو هغه به هلاك شی والعیاذ بالله ـ مخکښ تیر شو چه فقه ناقصه ده لکه تحقیق نمبر (۱۲) کښ اوګوره ـ

(٦) – شپږم : دا وایو چه امام صاحب دا فرض، واجب او سنت د کوم ځائے معلوم کړل آیا هغه ته نوے وحی وشوه بیا خو تاسو منکر د ختم نبوت شوئ او که هغه قیاس سره دا خبرے کړی وی نو دا خو عبادات دی او عبادت کښ قیاس نه جاری کیږی ( ومبنی العبادات علی التوقیف ) من عمل عملاً لیس علیه امرنا فهو رد رواه البخاری ومسلم .

قیاس په عباداتو کښ نه جاری کیږی ددے تفصیل په ضیاء النور کښ اوګوره، الدین الخالص (۱۱٤/۳) کښ اوګوره الاعتصام د شاطبیؒ کښ اوګوره ـ

ځکه قیاس عند الضرورت کیږی او عباداتو کښ الله تعالی د بندګانو خپله ضرورت پوره کړے دے شاید پدے خبره به مقلدین پوهه شی ؟ ـ

نو ستاسو دا اوکاړوی دوه سوالونه ټول باطل شو ـ والحمد لله ـ

دارنګه د کوهستانی صاحب الطامة الکبریٰ دارنګه د نور متعصبین مقلدینو اعتراضات لکه سمیع الله د پخه غلام والا اعتراضات ختم شو او زمونږ ددے تحقیق جواب دِے وکړی په علم سره او یا دِے حق ته تسلیم شی ـ

## (۳۳) - تحقيق :

احناف وائی : څلور مذهبه حق دی او بیا وائی چه د حنفی د شافعی پسے اقتداء جائز نده دارنګه د اهل حدیث پسے هم مونځ جائز نه ګڼړی ـ

لکه شیخ محمد بن حیات سندی په خپله رساله غاية التحقيق ونهاية التدقيق کښ وائی ص(۳) الفصل الاول فی بيان الاقتداء فی الصلاة بالمخالف فی المذهب قد اختلف علماؤنا قديما وحديثاً فی جوازه علی اربعة اقوال والراجح انه لا يجوز لان رفع اليدين فی الصلاة مفسد للصلاة وهم يرفعون ايديهم وهو عمل كثير وقال شمس الائمة الحلوانی لايصح للحنفی الاقتداء بشافعی المذهب الخ ـ

ونقل فی فتح القدير (۱/ ۳۸۰) عن بعض الحنفية ان رفع اليدين فی الصلاة مفسد للصلاة ـ

وفی فتاوی ديوبند (۳/ ۱۹٤) حنفی کے نماز شافعی کے پیچھے اس وقت جائز نہیں کہ وہ رعایت مذہب نہیں کرتا ملخصاً ـ

دارنګه رد المحتار (۱/ ٥۲٦) کښ کراهت ته اشاره کړے ده ـ

## (۳٤) - تحقيق :

دا دے چه مقلدين ليکی اوکاړوی په مجموعه الرسائل کښ

وائــــی : ص(٢١) : تقلید کا شرعی معنیٰ حکیم الامت (الہند) حضرت مولانا اشرفعلی تھانوی کی تعریف کرتے ہوئے لکھتے ہیں: تقلید کہتے ہیں کسی کا قول محض اس حسن ظن پر مان لینا کہ یہ دلیل کے موافق بتلادے گا اور اس سے دلیل کی تحقیق نہ کرنا۔ الاقتصاد(٥)۔

تقلید کی اس تعریف کے مطابق راوی کی روایت کو قبول کرنا تقلید فی الروایت ہے اور مجتہد کی درایت قبول کرنا تقلید فی الدرایت ہے کسی محدث کی رائے سے کسی حدیث کو صحیح یا ضعیف ماننا بھی تقلید ہے اور کسی محدث کی رائے سے کسی راوی کو ثقہ یا مجہول یا ضعیف ماننا بھی تقلید ہے، کسی امتی کے بنائے ہوئے اصول حدیث یا اصول تفسیر یا اصول فقہ کو ماننا بھی تقلید ہے۔

**الجواب** : پدے عبارت کښې ډیر دجل پروت دے لیکن مونږ به د احنافو حواله جات راجمع کړو چه د دغه مذکوره دجل سره به پوره تضاد لری ۔

لکه اشرف علیؒ په ملفوظات کښې فرمائی : (١٥٩/٣) ایک صاحب نے عرض کیا کہ تقلید کے حقیقت کیا ہے؟ اور تقلید کس کو کہتے ہیں؟ فرمایا: تقلید کہتے ہیں امتی کا قول ماننا بلا دلیل عرض کیا کہ کیا اللہ اور رسول کے قول کو ماننا بھی تقلید کہلائے گا؟ فرمایا کہ اللہ اور رسول کی حکم کو ماننا تقلید نہ کہلائیگا وہ اتباع کہلاتا ہے۔

بیا ابن الهمام صاحب په التحریر کښې فرمائی : هو العمل بقول من لیس قوله احدیٰ الحجج بلا حجة .

وفی احکام الاحکام للآمدی (٢٢١/٤) والمستصفیٰ للغزالی (٤٠٠/٢) :

فالرجوع الی قول الرسول ورجوع العامی الی قول المفتی وکذلك عمل القاضی بقول العدول لایکون تقلیداً الخ وتقدم فی

تحقیق رقم (۱۸) تفصیلاً .

او د رواتو روایت منل تقلید ندے ځکه هغه خو په حدثنا او اخبرنا سره نقل کوی چه هغه من باب الشهادة دی او تقلید خو د چا رأی منل دی، د رأی منل لازم ندی او شهادت منل فرض دی بنص القرآن والسنه واجماع المسلمین ولکن المقلدین لایعلمون ۔

ددے خبرے لږ تفصیل مونږ په کتاب (تقلید کا حقیقت : ۳۸) کښ کړے دے وانظر القول المفید فی ادلة الاجتهاد والتقلید للشوکانیؒ ۔

بل دا چه د محدث جرح مبهم له اعتبار نشته ځکه هغه بمنزلة الرأی وی او رأی د محدث معتبر نده یعنی واجب الاتباع نده په خلاف د هغه د شهادت او ګواهئ نه نو اوکاروی دا خبره چه د محدث رأی په باره د راوی کښ چه ثقه یا ضعیف دے هم تقلید دے – غلطه ده ځکه دا خو د هغه رأی نده، بلکه مشاهده ده او اصول او قواعد د خدیث ماخوذ من القرآن والسنه والعقل الصریح دی مونږ چه هغه اخلو نو د دلیل په وجه او بل موافقت الرأی وی تقلید نه وی – که بالفرض یوه قاعده مونږ ته بے دلیله ښکاره شوه نو هغه رد کوو لکه ددے تفصیل مونږ په خپله رساله تقلید کا حقیقت کښے ذکر کړیدے ۔

## (۳۵) - تحقيق :

مقلدين ليکی چه مونږ تقليد صرف اجتهادی مسائلو کښ کوو منصوصی مسائل کښ نه کوو لکه اوکاړوی ليکی مجموعه الرسائل کښ ص (۲۲) *کن مسائل میں تقلید کی جاتی ہے؟ صرف مسائل اجتہادیہ میں تقلید کی جاتی ہے الخ۔*

مونږ وايو سو چه دروغ وايئ تاسو خو د نصوص د کتاب او سنت نه څومره جوابونه کوئ کله چه ستاسو د فقهی د عبارت خلاف راشی ؟ ۔

دارنګه د يو قسم تقليد نه خو مو انکار اوکړو که نص راشی او د امام صاحب قول ترے مخالف وی بيا به مونږ امام صاحب د قول تقليد نه کوو او جائز ندے ۔

پدے خو دستخط اوکړئ او که ددے تقليد نه خلاص شوئ يقينا نو کامياب به شئ ليکن دعویٰ او عمل کښ مو ډير فرق دے ۔

۳- بيا زه وايم چه مونږ به په سوونه مثالونه ورکړو چه په منصوصی مسائلو کښ تاسو تقليد اختيار کړے دے او نص مو پريخوستے دے ۔

مشت نمونه خروار لکه په طلوع الشمس فی صلاة الفجر مسئله کښ، سجدة الشکر مسئله کښ، عقيقه کښ، خروج بصنع المصلی کښ، قرأت په فارسی کښ، امامت د زنانو کښ،

صلاة الاستسقاء کښ، صلاة کسوف کښ، زکات کښ خمسة اوسق کښ، صيام شوال کښ ،صوم جمعه کښ، مسئله د مصرات کښ، په جنازه کښ د سړی او زنانه فرق کښ، د خطبے په وخت رکعتين کښ، په مسئله د اشعار کښ، په معدن او رکاز کښ خمس ګڼړی او فرق نه کوی، په وريښم باندے کيناستل او تکيه وهل حلال ګڼړی او حديث د بخاری مسلم کښ دی وان نجلس عليه يعنی دا منع دی، وغيره وغيره چه دلته ئے تفصيل نشو کولے ـ (د هغے دپاره وجوع اوکړئ زمونږ کتاب " احناف او خلفاء راشدين" او د تقليد حقيقت ته چه په هغے کښ د دوه سوو نه زيات مثالونه ددے موجود دی )

نو ولے د دغه نصوصو خلاف کوئ او جوابونه ترے کوئ راشئ دا خپله دعویٰ رشتينے کړئ کنه ؟ چه د نصوص مقابله کښ تقليد نشته ـ

بعض مقلدين لا په کښ دا ليکی چه نصوص متعارضه کښ مونږ تقليد کوو لکه د ظاهر ګل افريدی په هدايت نامه کښ ليکی (۲۵) او نور هم ليکلی دی ـ

نو اوګوره نصوص کتبښ ئے اول تعارض راپيدا کړو د فقه حنفی د وجه نه مونږ وايو اول خو تعارض نصوصو کښ نشته ـ

او که بالفرض وی نو امام صاحب کوم ځائے کښ تطبيق کړے دے چه تاسو د هغے پسے ورځئ هغه ځائے وښايئ ان انتم الا تخرصون ـ

## (۳٦) - تحقیق :

دا دے چه مقلدینو امت محمد ﷺ دوه قسمه کړی دی، یو مجتهدین او دویم مقلدین دریم قسم په کښ نه منی لکه اوکاړوی لیکی غیر مقلد کی معنی بھی سمجھ لیں کہ جو نہ خود اجتہاد کر سکتا ہو اور نہ کسی کی تقلید کر سکتا یعنی نہ مجتہد ہو نہ مقلد جیسی نماز با جماعت میں ایک امام ہوتا ہے باقی مقتدی لیکن جو شخص نہ امام ہو نہ مقتدی کبھی امام کو گالیاں دے کبھی مقتدیوں سے لڑے یہ غیر مقلدین ہے یا جیسی ملک میں ایک حاکم ہوتا ہے اور باقی رعایا لیکن جو نہ حاکم ہو اور نہ رعایا بنے وہ ملک کا باغی ہے، یہ مقام غیر مقلد کا ہے۔

دارنګه منظور صاحب په تحفة المناظر کښ لیکی (۱۲۵) نسمع او نعقل )

الجواب : (۱) – په امت کښ صرف دوه قسمه خلق ندی بلکه مجتهدین په کښ شته محققین په کښ شته عوام الناس چه د ژوندو علماؤ نه تپوس کولو والا دی او مقلدین ندی دا په کښ شته او ستاسو په شان ګمراهان مقلدین هم په کښ شته نو ستاسو تقسیم غلط شو ۔

(۲) – دویم زمونږ امام الحمد لله ډیر لوئی دے چه هغه محمد رسول الله ﷺ دے او ټول امت د هغه مقتدیان دی او مونږ د هغه مقتدیان یو او تاسو مقلدین په نماز باجماعت کښ اصلی امام پریخوستے او په صف کښ یو مجهول شخص پسے اقتداء مو

کړے ده مونځ مو فاسد شو په یو مانځه کښ دوه امامان نه جوړیږی د مانځه غم اوکړئ ! ( ایمان برباد شو ) ۔

(۳) – دریم دا وایم چه امام صاحب ستاسو حاکم دے او تاسو د هغه رعایا یئ څه ؟ څومره غلط مثال دے بلکه حاکم خو محمد رسول الله ﷺ دے قرآن فرمائی : فلا وربك لا يؤمنون حتى يحكموك فيما شجر بينهم ۔

نو اوګوره حاکم ئے چا ته اووئیلو آیا ستاسو د امام صاحب په باره کښ چرته دا شته څه ؟ فتدبر یا امام الضلال !۔

نو لاړے د محمد رسول الله ﷺ نه باغیان شوے ۔

## (۳۷) – تحقیق :

مقلدین لیکی چه د څلور امامانو ذکر اګرکه قرآن حدیث کښ نشته لیکن د یو تقلید شخصی واجب دے مثال دا دے لکه تلاوت د قرآن واجب دے او د قراء سبعه یا قراء عشره نوم نشته او خلق د یو قاری چه حفص عن عاصم په قراءت عمل کوی ۔

دارنګه د حدیث اتباع واجب ده لیکن بخاری، مسلم او ترمذی نومونه خو قرآن او حدیث کښ نشته لکه دا دجل اوکاړوی لیکلے دے په (۲۵) (٦٦) کښ وائی :

سوال: کیا قرآن وحدیث میں یہ حکم دیا گیا کہ چاروں اماموں میں سے کسی ایک کا تقلید کرو؟ الجواب: قرآن پاک میں قرآن کی تلاوت کا حکم موجود ہے مگران

دس قاریوں کا نام مذکور نہیں جن کی قراءتوں پر آج ساری دنیا تلاوت قرآن کر رہی ہے اور نہ یہ حکم ہے کہ ان دس قاریوں میں سے کسی ایک قاری کی قراءت پر قرآن پڑھنا ضروری ہے مگر ہمارے ملک پاک و ہند میں سب مسلمان قاری عاصم کوفی کی قراءت اور قاری حفص کوفی کی روایت پر قرآن پڑھتے ہیں، آپ قرآن وحدیث کی روشنی میں واضح فرمائیں کہ ساری زندگی ایک قراءت پر قرآن پڑھنا کفر ہے یا شرک یا حرام یا جائز؟۔

اسی طرح کتاب وسنت سے سنت کا واجب العمل ہونا ثابت ہے مگر نام لے کر بخاری، مسلم، نسائی، ابوداود، ترمذی، ابن ماجہ کو صحاح ستہ نہیں کہا گیا، نہ بخاری مسلم کو صحیحین کہا گیا نہ بخاری کو اصح الکتب بعد کتاب اللہ کہا گیا جس طرح ان دس قاریوں کا قاری ہونا اجماع امت سے ثابت ہے اسی طرح اصحاب صحاح ستہ کا محدث ہونا اجماع امت سے ثابت ہے اسی طرح ان چاروں اماموں کا مجتہد ہونا اجماع امت سے ثابت ہے اور مجتہد کی تقلید کا حکم کتاب وسنت سے ثابت ہے ۔

**الجواب** :مونږ وایو قراءت د قرآن باندے خو نص صریح راغلے دے ( انزل القرآن علی سبعة احرف رواه الشیخان ) او په مذاهب اربعه باره کښ یو نص هم نشته که وی نو وښایه ؟۔

دارنګه د قرائت په لوستلو کښ د قاری نوم یادولو ته حاجت نشته او نه دا قراء تونه د هغوی رأیه ده او خلور مذهبونو کښ خو تاسو د یو نوم اخلئ چه حنفی مذهب او بل د هغوی د رأی تقلید کوئ او قرائت خو نقل دے رأی نده ۔

دارنګه په ټولو قراء تونو عمل جائز دے او تاسو خو په ټولو مذهبونو عمل جائز نه ګڼړئ بلکه دا وایئ : من انتقل الی مذهب

الشافعي يعزر درمختار (۳/ ۱۹۰) د امام شافعی، مالك احمد بخاری د مذهب نه داسے تختئ لکه د مار لړم نه چه تختئ او مخکښ داسے مثالونه تیر شو هغه اوګوره ۔

دارنګه قراء تونه خو تنوع فی العبادت دے تول روا دی او مذاهبو کښ خو حلال او حرام په یوه مسئله کښ دی چه عمل په دواړو ممکن ندے نو څرنګ هغه مثال کښ د تقلید راوړئ دا تلبیس ندے نو څه دی ؟ ۔

دارنګه د بخاری، مسلم، ابو داود، ترمذی د رأی تقلید نشته بلکه د هغوی د حدثنا تابعداری ده ولکن المقلدین لایفقهون ۔

او ائمه اربعه مجتهد هونا اجماع هم نده بلکه ډیر علماء امام صاحب مجتهد هم نه منی لکه تاریخ بغداد کښ لیکی (۱۳/جلد مفصلا او کتاب السنه د عبد الله بن الامام احمد (۱/ ۱۸۰) کښ اوګوره بالسند روایات ۔

دارنګه الضعفاء الکبیر للعقیلی (٤/ ۲٦۸) ۔

ابن ابی شیبه (۱٤/ ۱۲۰) کتاب الرد علی ابی حنیفه ۔

دارنګه تبییض الصحیفه فی اصح ما قیل فی ابی حنیفه للعلامة المقبلی الوداعی الیمنی رحمه الله مفصلا ۔

دارنګه ابو نعیم فی الحلیه (۳/ ۱۱) و (۳/ ۱۹۷) رد جعفر الصادق علیه ۔

دارنګه التنکیل للمعلمی الیمانی مفصلا (۱/ ۱۷) ۔

دارنګه الضعفاء للبخاری (۱۱۱) اوګوره بتحقیق زبیر علی

زئ صاحب لیکن دغه کتابونو کښې ته اوګوره امام صاحب پسے سلفو څومره خبرے کړی دی تا ته به پته ولږیږی چه مذکوره دعویٰ د اجماع غلطه ده ۔

## (۳۸) - تحقیق :

مقلدین لیکی :

د اثبات د تقلید دپاره مونږ سره حدیث د معاذ بن جبل رضی الله عنه دے چه هغه وئیلی دی ( اجتهد برأیی ) نو رسول الله ﷺ د هغه تصویب اوکړو ( الحمد لله الذی وفق رسول رسول الله ﷺ لما یرضی به رسول الله ﷺ )۔

نو اثبات د تقلید په دے طریقه ترے کیږی چه که معاذ اجتهاد کړے وے نو عوام الناس به د هغه اجتهاد اتباع کولے نو فثبت المدعی لکه دا خبره منظور صاحب په تحفة المناظر کښې لیکلے ده (۱۳۲) ۔

**الجواب** : اولا : دا حدیث سندا ضعیف دے ۔ رواه الترمذی (۲٤۷/۱) وابوداود (۱٤۹/۲) وابوداود الطیالسی (۲۸۵/۱) وجامع بیان العلم وفضله (۵۵/۲) وهو فی الضعیفه (۲۷۳/۲) رقم (۸۸۱) للالبانی مفصلا ۔

۱- یو په کښې ابوعون راوی مجهول دے ۔

۲- دویم عن اصحاب معاذ مجهول دی ۔

۳- دریم ارسال دے ۔
٤- څلورم الحارث بن عمرو مجهول دے ۔
(۲) - **دویم جواب** : دا دے چه تاسو خو مقلدین یئ مقلد خو استدلال د حدیث نه نشی کولے لکه ستاسو کتابونو کښې لیکلی دی *رجوع الی الحدیث مقلد کا وظیفہ نہیں* احسن الفتاوی (۵۲/۳) ارشاد القاری کښې لیکی (٤۱۲/۱) (۲۸۸/۱) *ادلہ اربعہ سے استدلال مقلد کا کام نہیں یہ وظیفہ مجتہد ہے، ملخصاً* ۔

وفی مسلم الثبوت مع شرحه فواتح الرحموت (۲/ ٤۰۰) وقول المجتهد دلیل المقلد و حجته الخ ۔

دارنګه تلویح وتوضیح کښې دی (۳۹/۱) فالادلة الاربعة انما یتوصل بها المجتهد لا المقلد فاما المقلد فالدلیل عنده قول المجتهد الخ و تقدم فی رقم (٤) تحقیق .

نو د چرګ د مالګے سره څه کار دے ۔

۳- **دریم جواب** دا دے چه دا حدیث خو په بقاء د اجتهاد دلیل دے چه هر عالم متبحر اوس هم اجتهاد کولے شی او تاسو خو داجتهاد دروازه بنده کړے ده په څلورمه صدئ کښې لکه رد المحتار (۳۹٦/۱) کښې لیکلی دی : چه ستاسو معتبر کتاب دے او تاسو تقلید څکه لازم ګڼړئ چه مجتهد درېکښې نشته او یائے اجتهاد منئ نه ۔

٤- **جواب** دا دے چه تاسو اوښایئ چه کوم ځائے کښې معاذ بن جبل‌ؓ اجتهاد کړے دے او نص ورته ندے ملاؤ شوے او یمن والاؤ د

هغه تقلید کړے دے یو مثال ددے راوړیٔ بالکل ئے نشئ راوړے ولو عمرتم عمر نوح علیه السلام ان شاء الله ۔

۵- **پنځم** دا وایو که فرض کړو چه یو عالم په یو صحرا کښ وی او بل څوك نه وی او کتابونه هم ورسره نه وی او تیلفون هم نه وی چه د چا نه تپوس اوکړی او دغه عالم فتوی ورکړه او عوام الناس د هغه د دغه فتوی تقلید اوکړو ځکه بل شے شته نه او نه اسباب شته ۔ لکه څرنګ چه پدے مقلدبنو الله تعالی دا توره شپه راوستے ده نو بیا په دغه حالت راهنه کښ د دغه ژوندی عالم تقلید صرف د دغه کلی والو دپاره پدغه مسئله کښ جواز لری لیکن دا قسم کلی او عوام به مقلدین اوس په دنیا کښ پیدا کړی څه ؟ ۔

٦- **شپږم** الزاماً وایو : چه منظور صاحب سره د تصحیح ددے حدیث دپاره خپل څه نشته نو د شیخ الاسلام ابن القیم تقلید ئے کړے دے او د هغه نه ئے تصحیح رانقل کړے ده پکار خو دا ده چه دا حنفی شیخ ډاکټر جامع المعقول والمنقول دے چه د امام صاحب نه ئے ددے حدیث تصحیح رانقل کړے وے او یا ئے خپل تحقیق کړے وی ولکن انی ذلك ؟ ۔

## (۳۹) - تحقیق :

---

مقلدین لیکی چه د تقلید د اثبات دپاره حدیث د ابو موسیٰ اشعریؓ هم دے چه هغه فرمائیلی دی : لا تسألونی ما دام هذا الحبر

فیکم، رواه البخاری جب تک یہ موجود ہیں انہی کی اتباع کرو اور پیش آمدہ مسائل کا حل انہی سے پوچھو، شخص واحد ہیں، تقلید شخصی بھی یہ چیز ہے۔
تحفۃ المناظر (۱۳۱)۔

**الجواب** : پدے حدیث کښې رد دے ستاسو په تقلید باندے او ستاسو دپاره دلیل ندے لږ سوچ ما سره شریك اوکړئ ! .

۱- اول : دا خو د ژوندی عالم نه د مسائلو تپوس دے او هغه مأموربه دے په قرآن سره : فاسئلوا اهل الذکر ) .

او تاسو خو تقلید د مړی (چه امام ابوحنیفهؒ دے ) هغه ثابتوئ !

۲- دویم دا چه عبد الله بن مسعود رضی الله عنه ته ولے ابوموسی اشعری دا درجه ورکړه چه دده نه تپوس کوئ ځکه چه هغه ته زیات کتاب او سنت معلوم وو چه په هره مسئله ئے دلیل پیش کولو نو سائل د دلیل تابع شو د ابن مسعودؓ د رأی تابع او مقلد نشو .

۳- دریم دا چه پدے روایت کښې خو د ابن مسعود اتباع ذکر ده د امام ابوحنیفه خو نده .

٤- څلورم ( مادام هذا الحبر فیکم ) تر ژوند ددے عالم پورے معلومه شوه چه د مړی نه تپوس نه کیږی او ستاسو امام صاحب زما په خیال لا اوس هم ژوندے دے، بریلیان شوئ او که څه درباندے اوشو ؟ .

٥- پنځم دا چه د حدیث ټول الفاظ داسے دی : عن هذیل بن شرحبیل قال : سئل ابوموسی عن ابنة وبنت ابن واخت فقال : للبنت النصف وللاخت النصف وأت ابن مسعود فسیتابعنی فسئل ابن

مسعود واخبر بقول ابی موسی فقال : لقد ضللت اذا وما انا من المهتدین اقضی فیها بما قضی النبی ﷺ للبنت النصف ولابنة الابن السدس تکملة للثلثین وما بقی فللاخت فاتینا اباموسی فاخبرناه بقول ابن مسعود فقال : لا تسألونی مادام هذا الحبر فیکم ۔

**نو اوګوره ابن مسعود رضی الله عنه فرمائی : (لقد ضللت اذاً وما انا من المهتدین ) که زه د ابو موسیٰ اشعری تقلید اوکړم نو زه به ګمراه شم او د هدایت والو نه به نه یم داسے ئے اونه وئیل چه هغه ګمراه دے چه غلطه فتوی ئے ورکړے ده بلکه وائی که زه د هغه تقلید اوکړم نو زه به ګمراه شم دا دلیل دے پدے چه مجتهد ګمراه نه وی په خطائی سره او مقلِد علی کل حال ګمراه دے ۔**

**او تاسو خو د فقه حنفی –چه امام صاحب ترے خبر هم ندے – د هرے خبرے او مسئلے مقلدین یئ چه الله تعالی خبر دے چه دا کومو ملیانو جوړه کړیده ۔**

**څکه دے احنافو کښې خو معتزله خوارج قدریه، شیعه، ماتریدیه تیری شوی دی او هر سړی د خپل مزاج مطابق مسئلے بیان کړی دی او د ټولو نسبت ئے امام صاحب غریب ته کړے دے ۔**

قال العلامة عبد الحی اللکنوی فی الرفع والتکمیل فی الجرح والتعدیل وضمن رسائله (۵/۵۷) ۔

وتوضیحه ان الحنفیة عبارة عن فرقة تقلد الامام اباحنیفة فی المسائل الفرعیة وتسلك مسلکه فی الاعمال الشرعیة سواء وافقته فی اصول العقائد ام خالفته فان وافقته یقال لها الحنفیة الکاملة وان لم

توافقه يقال لها الحنفية مع قيد يوضح مسلكه فى العقائد الكلامية فكم من حنفى حنفى فى الفروع معتزلى عقيدة كالزمخشرى جار الله مؤلف الكشاف وغيره كمُولف القنية والحاوى والمجتبىٰ شرح القدورى نجم الدين الزاهدىّ وقد بسطتنا ترجمتهما فى الفوائد البهية فى تراجم الحنفية كعبد الجبار وابى هاشم والجبائى وغيرهم وكم من حنفى فرعاً مرجئى او رافضى اصلاً وبالجملة : فالحنفية لها فروع باعتبار اختلاف العقيدة فمنهم الشيعة ومنهم المعتزلة ومنهم المرجئة ۔

**نو معلومه شوه چه فقه حنفى څه مستند فقه نده او تاسو پسے ورځئ او تقليد ئے كوئ نو بقول عبد الله بن مسعودؓ آيا تاسو به گمراه نه ئے څه؟ ۔**

**دا وجوهات ياد كړئ ولو زدتم زدنا وان عدتم عدنا۔**

## ٤٠ - څلويښتم تحقيق

**دا دے - كله وائى په زمانه د مهدى كښ به تقليد نه وى او كله وائى چه عيسى عليه السلام به حنفى وى امداد المشتاق كښ اشرف على تهانوى ليكى (۸۵) فرمايا:** *امداد اللہ مکی - زمان ظہور مہدی بہت سخت وخوفناک ہے اکثر لوگ مخالف ہوں گے وہ خود امام مستقل ہوں گے تقلید حنفی وشافعی کی اس وقت نہ رہے گی اکثر علماء اس وجہ سے مخالفت کریں گے اللہ تعالی اس وقت ایمان سلامت رکھے برحمتہ وبحرمۃ نبیہ المصطفیٰ ﷺ ۔*

**نو اوګوره مهدى زمانه كښ به حنفى موليان خلاف كوى ۔**

او درمختار کښې ليکي (۳۹/۱) چه د فقه حنفي معتبر کتاب دے : الى ان يحكم بمذهبه عيسى عليه السلام وهذا يدل على امر عظيم اختص به الله من بين سائر العلماء ـ

عيسى عليه السلام به هم د امام ابو حنيفه په مذهب فيصلے كوى او عمل به كوى يعنى حنفي به وى او خلق به حنفيت ته راغواړى اوګوره انبياء عليهم السلام هم احناف كړل ـ

يو څو مهم سوالونه چه د هر عقلمند نه كولے شى د هغے جواب دِے راكړى او انصاف دِے اوكړى ؟

## (٤١) -يو غلو ښتم تحقيق :

د مقلدينو په كتابونو او درسونو كښې د امام ابو حنيفهؒ په باره كښې انتهائى غلو او تعصب شوے دے لكه د يهودو پشان او نصاراؤ پشان هغوى به هم د خپلو مشرانو باره كښې دا قسم غلو كوله ـ الله تعالى څكه فرمائى : (لا تغلوا فى دينكم )ـ

دارنګه : اِتَّخَذُوٓا اَحۡبَارَهُمۡ وَرُهۡبَانَهُمۡ اَرۡبَاباً مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ )

ته لږ فكر اوكړه دِے لاندے عباراتو كښې ـ

### ( ابوحنيفه او د هغه مقلدين ټول بخلے شويدى )

(۱) – ففى الدر المختار (۱/۳۵) وفى حجته الآخرة استأذن

حجبة الكعبة بالدخول ليلاً فقام بين العمودين على رجله اليمنىٰ ووضع اليسرىٰ على ظهرها حتى ختم نصف القرآن ثم ركع وسجد ثم قام على رجله اليسرىٰ ووضع اليمنىٰ على ظهرها حتى ختم القرآن فلما سلم بكىٰ وناجىٰ ربه وقال الٰهى ما عَبَدَكَ هذا العبد الضعيف حق عبادتك لكن عرفك حق معرفتك فهب نقصان خدمته لكمال معرفته فهتف هاتف من جانب البيت يا اباحنيفة قد عرفتنا حق المعرفة وخدمتنا فاحسنت الخدمة وقد غفرنا لك ولمن اتبعك ممن كان على مذهبك الى يوم القيامة۔

نو ته اوګوره دا آواز چا ورته اوکړو ددې عبارت نه خو معلومیږی چه ګنې الله تعالى ورته آواز اوکړو - بیا خو کلیم الله شو دا څه دی ؟ او آیا الله تعالى په حنفیت امر کړې او ترې راضی دې ؟ ۔عجیب او غریبې خبرې دی ؟ ۔

## امام محمد ته د سهو نسبت جائز ندے او نه د هغه مقلدینو ته

---

(۲) – درمختار کښې لیکی ورسره رد المحتار (۲/۳۷۸) : فلأن المسئلة صرح بها الامام محمد فى الجامع الكبير فكيف ينسب السهو اليه والى مقلديه ۔

نو ته اوګوره معصوم عن السهو ئې شماری او امام محمد خپله مقلد دې لکه د رد المحتار (۱/۴۹) صفحه اوګوره ۔

## امام ابوحنيفه د ملائكو پشان دے :

لـكـه مـقدمه د الهدايه (۵/۳) كښې دي : وروى انـه حج خمس وخـمسيـن حـجة وانـه صـلى صلوة الفـجر بوضوء العشاء اربعين سنة وكـان غـالباً يقرأ جميع القرآن فى الليل فى ركعة واحدة وكان يسمع بـكـاؤه فـى الليل حتى يرحمه جيرانه وقال الشعرانى فى الطبقات قال عبـد الله بـن الـمبـارك بلغنا عن ابى حنيفة انه صلى صلوات الخمس اربـعيـن سـنة بـوضـوء واحـد وكان نومه جالساً ينام لحظة بين الظهر والـعـصـر وفى الشتاء ينام لحظة من اول الليل وقال الحسن بن عمارة لـمـا تـولـى فـى غسـل ابـى حنيفة رحمك الله وغفر لك لم تفطر منذ ثلاثين سنة ولـم تتوسد يمينك فى الليل منذ اربعين سنة ـ

اوګوره اوده کوی ئے هم نه چه شپه ټوله عبادت شوه او ورځ روژه نو بيا د ښځے حقوق څه شو او حماد حنيفه د چا نه پيدا شو ؟ عجيب !! ـ

## د امام ابوحنيفه رحـمـه الله خطاء نشـتـه او محيط بجميع احاديث النبى ﷺ دے ـ

فـفـى قواعد علوم الحديث لظفر احمد عثمانى (۳۰۵) وانه كان احـد اذكيـاء بـنـى آدم وقـال نقض زعم بعضهم ان ابا حنيفة لو عاش حتى دون الحديث لترك كل قياس قاسه .

(٤٥٤) وكـل مـا ظهر من الحديث فى زمنهم ( الخلفاء ) لم يفقه منه شىء لكونه محيطا على علم الحجاز والمدينة والعراقين يدل على

ذلك كثرة شيوخه و كونه اعلم الناس فى زمانه بشهادة الائمة الخ ۔

**امام صاحب اوويا کاله عمر وو او په ځائے د وفات کښې اوويا زره ختم قرآن کړی وو ۔**

**کما فی الطحطاوی (۳۵/۱)** وروی الخطيب عن حماد بن يوسف عن اسد بن عمرو يقول صلى ابوحنيفة فى ما حفظ عليه صلاة الفجر بوضوء العشاء اربعين سنة و كان عامة الليل يقرأ جميع القرآن فى ركعة واحدة حفظ انه ختم القرآن فى الموضع الذى توفى فيه سبعين الف مرة ۔

**نو ته اوګوره چه پنځه پنځوس حجونه په اويا کالو کښې او اويا زره ختمه صرف په يو ځائے کول او هره شپه په يو رکعات کښې قرآن ختمول او څلويښت کاله د ماسخوتن په اودس د سحر مونځ کول او ديرش کاله پرلپسے روژه نيول او بيا د فقهي استنباط کول او د سحر نه تر مازيګره درس کول، ماښام نه تر ماسخوتن پورے نوافل کول او بيا تر سحر پورے نو دا زوجه سره کله ملاؤ شو، بزاز د کپړو کاروبار څه شو ؟ او د مطالعه او استنباط وقت څه شو ؟ او خوراك څکاك وقت اوده کيدل بول براز بيماری، فتور قلبی، ستړی والی وغيره وغيره (عجيب) دا خو د ملائکو نه زيات عبادت والا وو ؟ ۔**

## امام صاحب جنتی دے بلکه صاحبين هم جنتيان دی

**درمختار کښې دی (۳۵/۱)** قال اسماعيل بن ابى رجاء رأيت محمداً فى المنام فقلت له ما فعل الله بك ؟ قال : غفر لى ثم قال : لو

اردت ان اعذبك ما جعلت هذا العلم فيك، فقلت له فاين ابويوسف ؟ قال : فوقنا بدرجتين ـ قلت : فابوحنيفة ؟ قال : هيهات ذاك فى اعلىٰ عليين كيف وقد صلى بوضوء العشاء الفجر اربعين سنة وحج خمس وخمسين حجة ورأى ربه فى المنام مائة .

**امام صاحب د ابوبکر صديق رضى الله عنه پشان دے**

درمختار کښې دى (۱/۳۹) كيف لا وهو كالصديق رضى اللّٰه عنه ـ

**امام صاحب د نبى عليه السلام غټه معجزه ده بعد القرآن:**

والحاصل ان اباحنيفة من اعظم معجزات المصطفى بعد القرآن ـ درمختار کښې (۱/۳۸) ـ

زه وايم ابوبکر وعمر وعثمان او على او ائمه تابعين رضى الله عنهم څه شو ؟ ـ

## عيسى عليه السلام به هم حنفى وى

درمختار کښې دى (۱/۳۹) الى ان يحكم بمذهبه عيسى عليه السلام ـ ومثله فى فتاوى برهنه (۲۰۰) ـ

**امام صاحب د سلمان فارسىؓ نه ښه عالم وو**

رد المحتار (۱/۳۸) کښې دى : اما سلمان الفارسى فهو وان كان افضل من ابى حنيفة من حيث الصحبة فلم يكن فى العلم والاجتهاد ونشر الدين وتدوين احكامه كابى حنيفة ـ

مونږ وايو سلمان فارسى رضى الله عنه ښه دے چه د دغه

خرافاتو نه الله تعالی ساتلے دے ۔

## د امام صاحب قول چه چا رد کړو په هغه لعنت دے

درمختار کښې لیکی (۴۳/۱) فلعنة ربنا اعداد رمل علی من رد قول ابی حنیفة ۔

نو ټول ائمه ترابویوسف، محمد پورے ملعون کړل دا څه ادب دے ؟ ۔

## د امام صاحب تذکره په معراج کښې هم شوے ده

فتاوی برهنه (۱۸۵) کښې دی : مرویست که پیغمبر علیه السلام درشب معراج مناجات کرد: الٰهی ! درامت سابقه لقمان حکیم بود که حکمت بیان میکرد درامت من که باشد؟ خطاب دررسید که درامت تو نعمان بن ثابت باشد وکنیت اُو ابوحنیفه ومولد اوکوفه ۔

یعنی د معراج په شپه کښې رسول الله ﷺ الله تعالیٰ ته سوال اوکړو چه ربه ! په مخکنی امت کښې لقمان حکیم حکمتونه بیانول زما په امت کښې به څوك وی ؟ نو ورته اووئیل شو چه ستا په امت کښې به نعمان بن ثابت وی د هغه اسم کنیه به ابو حنیفه وی او د پیدائش ځائے به ئے کوفه وی ۔

## د رسول الله ﷺ د طرفه د امام ابوحنیفه ته سلام او یو عجیب امانت

---

فتاوی برهنه کښې دی (۱۸۵) : چون رسول الله ﷺ باز آمد انس رضی

الله عنه طلبید وفرمود بعد از من مردی باشد نام او نعمان بن ثابت وکنیت او ابوحنیفه ومولد او کوفه علم را بیان کند، تو او را دریابی وسلام من باو برسانی وامانت من بوی دہی، روایتی لقمه بگزید بانس داد وبروایتی خرما نگزید وبروایتی اب دہن مبارک خود را در دہن کرد...... فرمود تو در خانه کعبه نشته باشی واحادیث بیان کنی کودکی پیش تو از ہو فرود آید نام وکنیت او پرسی وسلام وامانت من بوی دہی۔

مطلب دا چه رسول الله ﷺ انس رضی الله عنه را اوغوښتلو او ورته ئے اووئیل: زما نه پس به یو کس راځی او د هغه نوم به نعمان بن ثابت او کنیه به ئے ابوحنیفه وی په کوفه کښ به پیدا وی، علم به بیانوی ته هغه ته زما سلام او زما امانت اورسوه۔

نو په یو روایت کښ نوړئ، یو روایت کښ کجوره اوچپله او یو روایت کښ ئے د خولے مبارکے لاړے د انس رضی الله عنه په خوله کښ توکړے ...... ورته ئے اووئیل: چه ته به د بیت الله خوا کښ ناست ئے یو هلك به درته راشی ته د هغه نوم او کنیت تپوس اوکړه او زما امانت او سلام ورته اورسوه۔

نو انس بن مالك رضی الله عنه کجوره لس پنځلس کاله خوله کښ ساتلے وه، روټئ به ئے نه خوړله اودس به ئے هم نه کولو دا څومره دروغ دی چه مقلدینو ته ئے ویل آسان دی۔

## امام ابوحنیفه ته د مرګ نه پس عجیب بشارات

فتاوی برهنه (۱۹۸) کښ دی: چه کله امام صاحب مړ شو نو د غسل ورکولو نه پس د هغه په تندی دا آیت (غیبی) لیکلے شوے وو (یا ایتها النفس المطمئنة ارجعی الی ربك راضیة مرضیة

فادخلی فی عبادی وادخلی جنتی ) ـ

په ښی لاس دا وو ( ادخلوا الجنة بما كنتم تعملون )ـ

په چپ لاس دا وو ( انا لا نضيع اجر من احسن عملاً ) ـ

په خیته ئے هم یو آیت وو الخ

دا ټول د یهودو نه زیات غلو فی الصالحین ده او شرك هم د داسے خبرو نه پیدا کیږی والعیاذ بالله اوس اخیر کښ په حنفیت ندامت واوره :

## په حنفیت ندامت :

په وحدتِ امت رساله کښ لیکی چه مولانا مفتی محمد شفیع رساله ده او طبع شوے ده په کراچی دار الاشاعت کښ (۱۵) هغه فرمائی :

ایک اہم نکتہ اور ایک اہم واقعہ:

ایک اہم واقعہ آپ کے گوش گذار کروں جو اہم بھی ہے اور عبرت خیز بھی قادیان میں ہر سال ہمارا جلسہ ہوا کرتا تھا اور سیدی حضرت مولانا سید محمد انور شاہ صاحب رحمہ اللہ بھی اسمیں شرکت فرما کرتے تھے۔ ایک سال اسی جلسہ پر تشریف لائے میں بھی آپ کے ساتھ تھا ایک صبح نماز فجر کے وقت اندھیرے میں حاضر ہوا تو دیکھا کہ حضرت سر پکڑے ہوئے بہت مغموم بیٹھے ہیں۔ میں نے پوچھا حضرت کیسا مزاج ہے ؟ کہا: ہاں ٹھیک ہی ہے میاں مزاج کیا پوچھتے ہو۔ عمر ضائع کردی ۔ میں نے عرض کیا: حضرت آپکی ساری عمر علم کی خدمت میں دین کی اشاعت میں گذری ہے ہزاروں آپ کے شاگرد علماء ہیں مشاہیر ہیں جو آپ سے مستفید ہوئے اور خدمت دین میں لگے ہوئے ہیں آپ کی عمر اگر ضائع ہوئی تو پھر کسی کی عمر کام میں لگی؟ ۔ فرمایا : میں

تمھیں صحیح کہتا ہوں عمر ضائع کردی۔ میں نے عرض کیا: حضرت بات کیا ہے؟۔فرمایا: ہماری عمر کا ہماری تقریروں کا ہماری ساری کدوکاوش کا خلاصہ یہ رہا ہے کہ دوسرے مسلکوں پر حنفیت کی ترجیح قائم کردیں امام ابوحنیفہ کے مسائل کے دلائل تلاش کریں یہ رہا ہے محور ہماری کوششوں کا تقریروں کا اور علمی زندگی کا اب غور کرتا ہو تو دیکھتا ہوں کہ کس چیز میں عمر برباد کی۔ ابوحنیفہ ہماری ترجیح کی محتاج ہیں کہ ہم ان پر کوئی احسان کریں، ان کو اللہ تعالی نے جو مقام دیا ہے وہ مقام لوگوں سے خود اپنا لوہا منگوائیگا وہ تو ہمارے محتاج نہیں اور امام شافعی مالک اور احمد بن حنبل اور دوسرے مسالک کے فقہاء جن کے مقابلے میں ہم یہ ترجیح قائم کرتے آئے ہیں کیا حاصل ہے؟ اس کا اسکے سطر کچھ نہیں کہ ہم زیادہ سے زیادہ اپنے مسلک کو صواب اور دوسرے کے مسلک کو خطاء محتمل الصواب کہیں اس سے آگے کوئی نتیجہ نہیں ان تمام بحثوں تدقیقات اور تحقیقات کا جن میں ہم مصروف ہیں۔

پھر فرمایا: تو جس چیز کی نہ دنیا میں کہیں نکھرنا ہے نہ برزخ میں نہ حشر میں اس کے پیچھے پڑکر ہم نے اپنی عمر ضائع کردی اپنی قوت صرف کردی اور جو صحیح اسلام کے دعوت تھی مجمع علیہ اور سبھی کے مابین جو مسائل متفقہ تھے اور دین کی جو ضروریات سبھی کے نزدیک اہم تھیں جن کے دعوت انبیاء کرام لے کر آئے تھے، اور منکرات عام ہورہا ہے، گمراہی پھیلی رہی ہے، الحاد آرہا ہے، شرک بہت پرستی چل رہی ہے، خلال، حرام کے امتیاز اٹھ رہا ہے لیکن ہم لگے ہوئے ہیں ان فرعی وفروعی بحثوں میں۔ حضرت شاہ صاحب نے فرمایا یوں غمگین بیٹھا ہوں اور محسوس کررہا ہوں کہ عمر ضائع کردی۔ملخصاً۔

نو اوګوره په حنفیت او د هغې په ترجیح خپل عمر ضائع کړو او روستــه پرې افسوس کـوی او رشتیـا دا د افسوس خبره ده او عمر

ضائع کول دی او مونږ اهلحدیث الحمد لله زمونږ هر بحث او مسئله د کتاب او سنت نه راویستل دی او د الله تعالی د رضا دپاره خلقو ته پیش کول دی د رب العالمین نه پوره امید لرو چه زمونږ عمر به پدے پکار برباد نه وی ۔

او الله تعالی به مونږ ته اجر جزیل راکړی وما ذلك علی الله بعزیز ونرجو ذلك من ربنا الرحیم ۔

وصلی الله وسلم علی نبینا محمد وآله وصحبه اجمعین ۔

حرره ابو محمد امین الله البشاوری عام : ۱٤۲۸ هـ محرم الحرام (۱۵) مسجد حمزه بشاور گنج مدرسه تعلیم القرآن ۔

اخیر کښ وایم هره مسئله چه ما په خطاء سره د قرآن او حدیث خلاف لیکلی وی دلته یا بل کتاب کښ زه د هغے نه رجوع کوم فی الحیات وبعد الممات چه د الله تعالی دربار کښ زه پرے مسئول نشم او ما ته دے په هغے تنبیه راکړے شی زه ئے قبلووم ۔

وسبحانك اللهم وبحمدك اشهد
ان لا اله الا انت استغفرك واتوب الیك ۔

## بسم الله الرحمن الرحيم

**سـئلني بعض الاخوة** عن قول رجل ممن ينتسب الى العلم، بأنه ليس في كتب الفقهاء مسئلة تخالف الكتاب والسنة وكلها يجب العمل بها فهل قوله صحيح ؟ بينوا لنا بياناً شافياً بالعدل واحسن الله اليكم ـ

**ما نه بعض ورورنو د يو سړی چه علم ته منسوب وو ددے قول په باره کښې تپوس اوکړو چه د فقهاؤ په کتابونو کښې داسے مسئله نشته چه هغه د کتاب او سنت خلاف وی او پدے ټولو کتابونو باندے عمل واجب دے نو آیا ددے سړی دا خبره صحیح ده او که نه ؟ مونږ ته ددے پوره بیان اوکړئ په عدل سره احسن الله اليکم ـ**

**الجواب** : ومن الله التوفيق والسداد :

إعلم ! ان الله تعالى امر بالعدل والاحسان، وقال في كتابه : ﴿وَاِذَا قُلْتُمْ فَاعْدِلُوا﴾ فالقول في مسائل الشرع يجب العدل فيه اعظم من العدل في حقوق الناس فنحن نذكر لك فساد هذا القول بادلة وشواهد لان هذا القول إما صدر عن جهل او صدر عن تعصب وكلاهما يفسد على الانسان طريق الهداية :

**پوهه شه چه الله تعالی په عدل او احسان باندے حکم کړیدے په خپل کتاب کښې ئے فرمائیلی دی : ﴿وَاِذَا قُلْتُمْ فَاعْدِلُوا﴾ نو په دینی مسائلو کښې د حقوق الناس نه هم زیات عدل واجب دے، نو مونږ تا ته اوس ددے قول فساد په دلائل او شواهدو سره بیانوو**

ځکه دا قول یا د جهالت په وجه یا د تعصب په بنیاد صادر شویدے او دا دواړه کارونه په انسان باندے د هدایت لاره خرابوی ۔

پوهه شه ! چه د فقهاؤ کتابونه که د هر مذهب وی، په هغے کښ حق او باطل دواړه شته او په هغوی باندے مونږ بدګمانی نه کوو لیکن کله بغیر د ارادے نه پکښ باطل راداخلیږی او کله په کښ د تقلید په وجه ۔

اوس هغه **مسائل** اوګوره چه د **سُنت خلاف** دی یا هغه چه په هغے باندے د کتاب او سنت او اجماع د امت هیڅ دلیل نه وی او دا مسائل د فقه په کتابونو کښ موجود دی :

(۱) الاولی : انکار بعض الفقهاء عن اثبات بعض الاحکام الشرعیة بالقرعة کما انکرت الحنفیة ذلك انظر الفقه الاسلامی (۸۲۸/۲) والهدایة (۲۹۳/۲) کتاب النکاح مع ورود السنة بها، واثبات حل الوطئ بشهادة شاهدی زور یعلم الزوج الثانی انهما شاهدا زور ومع هذا فیثبت الحل له بشهادتهما ۔

فمن یقول : هذا فی حل الابضاع والفروج مع انه مسئلة باطلة کیف یمنع القرعة الشرعیة التی جاء الکتاب والسنة بها کما فی زاد المعاد (۵) تفصیلا ۔

بعض فقهاء احناف په شرعی قرعه سره احکامو ثابتولو نه منکر دی حال دا چه دا په کتاب او سنت کښ راغلے ده زاد المعاد تفصیلا اوګوره ۔ او حال دا چه احناف د دروغژن ګواهانو په ګواهئ سره وطی جائز ګنړی اګرکه دویم خاوند ته ښه معلومه وی چه دا ګواهان دروغژن دی او بیا هم د دوی په ګواهئ د دویم خاوند

**دپاره وطی د دغه ښځے جائز ګنړی او شرعی قرعه باندے احکام ثابتول جائز نه ګنړی نو دا عدل نه دے ۔**

(۲) – الثانية : قالوا اذا منع الذمی ديناراً من الجزية انتقض عهده ولو جاهر بسب الله ورسوله ودينه او حرق بيوت الله لم ينتقض عهده ـ فتدبر فی هذا العدوان ! كيف اباحوا لهم سب الله ورسوله وانظر حديث كعب بن الاشرف فی البخاری (۱۲۰/٦) بشرح الفتح والبحر الرائق (۱۹۵/۵) والمرقاة ـ **وائی ذمی کافر چه کله یوه روپئ د جزیه نه منع کړی نو دده ذمه او عهد ختم شو او که ښکاره الله او رسول او دین ته کنځل اوکړی یا د مساجد اوسزوی نو عهد ئے ندے مات ـ نو دا کوم ظلم دے د روپئ نه هم الله او رسول دے خلقو ته سپك شو ـ**

(۳) الثالثة :

قالوا : يجوز قرائة القرآن بالعجمية ( كما فی نور الانوار : ۱۲ ) ويمنع رواية الحديث بالمعنى ( كما فی اعلام الموقعين واحكام القرآن للجصاص : ۱۰/۱ ) والباعث صـ ۱۳۷ ) فهذا قول ضعيف ومن قال : انه يجوز القرائة بالفارسية فقد غلط لان الرسول عليه السلام قال : لرجل لم يحسن الفاتحة قل : سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اكبر الحديث ـ **وائی په عجمئ ژبه کښې د قرآن قراء ت کول جائز دی لکه نور الانوار اوګوره بیا وائی حدیث کښې روایت بالمعنی جائز نه دے نو دا ضعیف قول دے او څوك چه په فارسی قرائت جائز وائی نو هغه خطاء دے څکه نبی علیه السلام هغه سړی ته چه قرائت د فاتحه نه ورتلو داسے ویلی دی چه سبحان**

الله والحمد لله او لا اله الا الله والله اکبر وایه او داسے ئے او نه وئیل چه په خپله ژبه کښ قرائت کوه ۔

(٤) الرابعة : قالوا : الایمان نفس التصدیق وهو لا یزاد ولا ینقص والاعمال لیست منه ویکفّرون من قال : مُسَیجِدٌ وفُقَیَهٌ بالتصغیر ومن یلتذ بالسماع ویصلی بلا وضوء، ونحو ذلك مع ان الادلة قامت بالاول دون الثانی، انظر شرح فقه اکبر صـ (١٠٥و –٢١٥) وخلاصة الفتاوی وقاضی خان (٣٦٦/٤) دوی وائی ایمان نفس تصدیق ته وائی نه په کښ زیادت راتلے شی او نه نقصان او عملونه په ایمان کښ ندی داخل، او بیا وائی چا چه مسجد ته مُسَیجِد او فقِیُه ته فقیه په تصغیر سره اوویلو یا څوك چه د ګانو بجانو نه خوند اخلی یا بے اودسه مونځ کوی نو هغه کافر دے سره ددے نه چه دلیل په اوله مسئله کښ شته (زادتهم ایمانا) او پدے دویمه خبره هیڅ دلیل نشته ۔

(٥) – الخامسة : قالوا : من استأجر امرأة لرضاع ولده فزنا بها او استأجرها لیزنی بها لا حد علیه، واجبوا الحد علی من وطئ امرأة فی الظلمة یظنها امرأته فبانت اجنبیة، کما فی قاضی خان (٤٠٦/٤) و(٤٠٨/٤) فتدبر فی هذه المخالفة الصریحة ۔

وائی : چا چه یوه ښځه د خپل بچی د پیو ورکولو دپاره په کرایه اونیوله او هغے سره ئے زنا اوکړه یائے یوه ښځه د زنا دپاره په کرایه (ټیکټ) راوسته نو په ده باندے هیڅ حد نشته ۔ او حال دا چه دوی بیا وائی چا چه یوه ښځه په تیاره کښ پدے ګمان وطی کړه چه دا زما ښځه ده او بیا د هغه ښځه نه وه نو ده باندے حد دے

نو پدې صريح مخالفت کښې فکر اوکړه ـ پکار دا ده چه مسئله برعکس شي ځکه دوی سړے معذور دے ـ او اول سړے مجرم دے ـ

(٦) السادسة : قالوا : اذا كان الماء دون عشر فى عشر فوقع فيه البول مثل رأس الابرة نجس الماء، واباحوا الصلاة فى ثوب ربعه متضمخ بعذرة الانسان او بكل نجاسة، مع انه لادليل على الاول بل الدليل بخلافه فانه عليه السلام قال : ان الماء طهور لا ينجسه شئ، ولم يقل فى الثانى شيئاً ، انظر شرح الوقاية بحث عشراً فى عشر، ونجاسة مخففة ومغلظة صـ (٢٥) ـ

وائی : کله چه اوبه د لس په لس گزو نه کم وی او په هغے کښې د ستنے د سر په مقدار بول واقع شی نو اوبه نجسے دی، او بیا وائی : د کوم انسان په څلورمه حصه د جامے چه د انسان گندگی وی یا بل نجاست وی نو ددے سره مونځ جائز دے ـ دا کوم دین دے سره ددے نه چه په اوله خبره دلیل نشته بلکه دلیل د هغے په خلاف دے حدیث دے ( أن الماء طهور لا ينجسه شيئ : اوبه په هیڅ شی نه پلیتیږی مگر کله چه خوند رنگ، او بوئی ئے بدل شی ) او دویمے خبرے په باره کښې هیڅ ثبوت نشته ـ بلکه د وثيابك فطهر د عموم خلاف دے ـ

(٧) – السابعة : قالوا : لا عبرة بالحاق النسب بالقيافة مع انها اعتبرها النبى ﷺ فى نسب اسامة بن زيد كما فى الصحيحين، عمل بها الخليفة الراشد عمر بن الخطاب رضى الله عنه،

وقالوا : يلحق النسب برجل تزوج امرأةً بأقصىٰ المشرق وهو بأقصى المغرب وبينهما ما لا يقطعه البشر وقال : تزوجت فلانة وهى

طالق ثلاثاً عقب القبول ثم جاء ت بولد فقالت : هو منه، فهذا يكون ولده، مع ان هذا لا دليل عليه من الكتاب والسنة والواقع خلافه فكيف يمنعون القيافة وهي من اظهر الادلة ، كما في رد المحتار (۸۵۷/۲) وزاد المعاد (۳٦۹/۵) البدائع (۳۱۱/۳) والفقه الاسلامی (٦۸۲/۷) تفصيلاً ـ

ومن العجب الحاقهم الولد بهذه الصورة المذكورة وزعمهم ان الرجل اذا كانت له سرية وهو يطأها دائماً فاتت بولد على فراشه لم يلحقه الا ان يستلحقه مع انه عليه السلام قال : الولد للفراش وللعاهر الحجر، اخرجه البخاری وغيره زاد المعاد (۳٦۹/۵) ـ

وائی : يو سړے چه د مغرب په آخر سر كښ وی او د يوے ښځے سره نكاح اوكړی چه هغه په آخر سر د مشرق كښ وی او مينځ كښ دومره فاصله وی چه انسان هغه نشی قطع كولے او دا سے اووائی چه ما د فلانئ سره نكاح كړيده خو اوس هغه په درے طلاقو طلاقه ده بيا د هغے نه بچے پيدا شو او ښځے اوويل چه دا بچے د دغه خاوند دے نو دوی وائی چه دا به د هغه خاوند وی او نسب به ئے د هغه سره پيوسته كولے شی نو پدے مسئله هيڅ دليل د كتاب او سنت نشته بلكه دا د واقع هم خلاف ده او بيا وائی چه په دين كښ په قيافه باندے عمل نشی كيدے حال دا چه قيافه احاديثو كښ دليل گرځول شويدے په نسب د اسامه بن زيد كښ نبی عليه السلام معتبره گرځولے ده او مجزز مدلجی چه اووئيل : (ان هذه الاقدام بعضها من بعض) نو نبی عليه السلام پدے سره خوشحاله شو او عائشے ته ئے دا خوشحالی ښكاره كړه ـ او

عمر فاروق پدے باندے فیصله کړیده ۔

او عجیبه خو دا لا دا ده چه احناف وائی کله چه د یو سړی وینځه وی او هغه ئے همیشه وطی کوی او د هغے نه اولاد پیدا شی نو دا د ددے سید پورے نه پیوست کیږی مګر هله چه هغه ئے دعوه اوکړی چه آو دا زما بچے دے ۔ حال دا چه دا خلاف دے ددے حدیث نه چه په بستره کوم بچے پیدا شی نو هغه ځائے ته به ئے نسبت کیږی او زنا کار ته به ئے نسبت نه کیږی ۔

(۸) – الثامنة : قالوا : اذا تشهد اربعة بزنا رجل فقال الرجل : صدقوا فی شهادتهم وقد فعلتُ سقط عنه الحد، وان اتهمهم وقال : کذبوا علیّ حُد مع ان القول الاول والثانی لم یفرق الشریعة فی ذلك وقد اسقطوا حد الشرع بدلیل واهٍ انظر قاضیخان (٤٠٨/٤) ۔

وائی : کله چه څلور کسان د یو سړی په زنا ګواهی اوکړی او هغه سړے اووائی چه دا ګواهان په خپله ګواهئ کښ رشتینی دی او ما زنا کړیده نو ددے سړی نه حد ساقط شو او که دے سړی هغوی لره متهم اوګرځول او دا ئے اووئیل چه دا خلق په ما باندے دروغ وائی نو دے سړی ته به حد ورکولے شی نو شریعت د دواړو قولونو ترمینځ هیڅ فرق ندے کړے او دوی په ضعیف دلیل سره د شریعت اسلامی حد ساقط کړو ۔

(۹) التاسعة : قالوا : لا یصح استئجار دارٍ لتجعل مسجداً یصلی فیه المسلمون ویصح استئجارها کنیسة یعبد فیها الصلیب وبیتاً یعبد فیه النار، مع ان الاصح جواز الاول وحرمة الثانی لانه تعاون علی الاثم والعدوان وقد نهی عنه القرآن ، انظر احسن الفتاوی (۷/ ۹ : ۳)

وقاضيخان (۳۹/۳) ـ

وائی : په اجاره به يو کور نشی نيولے چه هغے نه مسجد جوړ کړی او په هغے کښې مسلمانان مونځونه کوی ليکن که د ګيرجے دپاره ئے په کرايه نيسی دے دپاره چه صليبيان په کښې د صليب عبادت کوی او يا يو کور چه مجوسيان پکښې د اور عبادت کوی نو دا جائز ده ـ سره ددينه چه اول کار جائز دے او دويم حرام دے ځکه تعاون دے په ګناه او په عدوان ـ

(۱۰) – العاشرة : قالوا : من قهقه فی الصلاة انتقض وضوئه ، ولو غنی فی صلاته وقذف المحصنات، واتی باقبح السبّ والفحش فوضوئه بحاله لم ينتقض مع ان القول الاول لم ترد به السنة الصحيحة، والامور التالية من الكبائر، والوضوء بعد ذلك فی درجة الاستحباب ـ ارواء الغليل (۱۱۷/۳) ـ

وائی چا چه په مانځه کښې قهقهه اوکړه نو اودس ئے مات شو او که ګانه ئے په مانځه کښې اوويله يا ئے پاکدامنو ښځو ته سختے کنځلے اوکړے نو دده اودس برحال دے ندے مات ـ نو قهقهه ئے د کنځلو او ګانو نه هم لويه ګناه حساب کړه دا کوم عقل دے !ـ

(۱۱) – الحادية عشرة : ومن العجائب قولهم : اذا وقع فی البئر نجاسة تنزح منه ادلاء معينة مثلاً عشرون دلواً، فاذا حصل الدلو الاول فی البئر تنجس وغرف الماء نجساً فما اصاب حيطان البئر منه نجسها و كذلك ما بعده من الادلاء الی الدلو الاخير فانه ينزل نجساً ثم يصعد طاهراً يقشقش النجاسة من البئر ـ

فما أعقل هذا الدلو وما اكرمه وهل يكون أعقل منه واكرم ؟ مع

انـنـا ذكـرنا فى كتاب الطهارة ان اخراج الادلاء المعينة من البئر ليس فيه سنة البتة فراجعه، الهداية (۱/ ٤٠) ـ

عـجيبه خبره دا هم كوى : چه كله په كوهى كښې نجاست واقع شى نو د هغې نه به معينې بوقې مثلا شل بوقې ويستلې شى نو كله چه اولـه بـوقه كوهى كښې خكته شى نو د اوبو سره چه اولگى نو دا هـم نـجسـه شوه نو كومې اوبه چه د كوهى د ديوالونو سره لگى نـو هغـه هـم پليـت شـو او دغه شان په هره بوقه كښې حكم دے تر آخرى بـوقې پورې خو كله چه آخرى بوقه خكته شى نو دا نجسه وى او چه راپـورتـه كيـږى نـو پـه دغه وخت كښې دا پاكه وى او ټول كـوهـې ځان سـره پاك كړى ـ دا څومره عجيبه عقلمنده او عزتمنه بـوقـه ده ! نـو ددې پـه بـاره كـښې هيـڅ ثبوت د سنت نه نشته بلكه كـوهـى نـه به اوبه اوباسې تردې چه خوند رنگ بوئى خپل حال ته راواپس شى او كه هغه نه وو بدل شوې نو هيڅ ويستل ترې نشته ـ

(۱۲) – الثانية عشرة :

ومن العجائب قولهم : لو حلف لا يأكل فاكهة حنث باكل الجوز ولو كان يابساً منذ سنين ولا يحنث بأكل الرطب والرمان والعنب مع انهـا من أطيب الفواكه فى اللغة والعرف والشرع ولكن هؤلاء يتبعون كـل خـرافة لايتبـعـون الـدليل ولا يبغونه، قال تعالى : ﴿ ومن ثمرات النخيل والاعناب ﴾ ( الهداية : ۲/ ٤۹٠) ـ

دا عـجيبـه خبـره هـم كـوى چـه كـه يـو سړې دا قسم اوكړى چه فـاكهـه ( ميـوه ) بـه نه خورى نو د غوزانو په خوړلو سره حانثيږى اگـركـه اوچ وى د ډيـرو كـلـونو نه او كه چرې تازه كجورې يا آنار او

انګور او خوړی سره ددے نه چه دا په لغت او عرف او شرع کښ مزیدار فواکه دی نو وائی چه پدے سره نه حانثیږی ، نو دے خرافاتو ته هم فکر کوه قرآن وائی ومن ثمرات النخیل والاعناب ) کجورے او انګور ته ئے ثمرات ویلی دی او دوی وائی دا میوے ندی نو آیا د صریح قرآن مخالفت نه دے ؟ ۔

(۱۳) – الثالثة عشرة : ومن العجب قولهم :

لو حلف لا یشرب من النیل والفرات او دجلة فشرب بکفه لم یحنث ولا یحنث حتی ینکب ویکرع بفیه، مثل البهائم ۔ مع ان هذه المسئلة باطلة من جهة الدلیل والاصل الذی بینت علیه فانها مبنیة علی الحقیقة والمجاز، و لا اصل للحقیقة والمجاز لا فی الشرع ولا فی اللغة العربیة کما حققنا ذلك فی موضعه راجع لهذه المسائل بدائع الفوائد لابن القیم رحمه الله (۳/ ۱۳۰، ۱۳۱) الهدایة (۲/ ٤۹۱) ۔

وائی : که یو سړی قسم اوخوړو چه د دریائے نیل او د نهرِ فرات او دجله نه به اوبه نه څکم او بیا په لاس سره اوبه اوڅکی نو دا حانث نه دے او هله به حانثیږی چه ورکوږ شی او په ملاسته سره پرے خوله کیدی لکه د حیواناتو پشان ۔ نو دا مسئله هم باطله ده ځکه دا په حقیقت او مجاز باندے بناء ده او د حقیقت او مجاز دپاره په لغت او شریعت کښ هیڅ بنیاد نشته بلکه امام ابو حنیفه او ټول ائمه فقهاء او اهل لغت د حقیقت او مجاز نه خبر نه دی ځوك دے د ائمه اربعه و نه د حقیقت او مجاز یوه مسئله ثبوت اوښائی؟ دا ټول د متاخرینو باطل قواعد دی چه پدے سره ئے ډیر دین ګډوډ کړیدے دحقیقت او مجاز د تردید پاره مجموع الفتاوی لابن تیمیه

(۲۱/۱۲۷) اوګوره ـ

(۱٤) – ومن العجب : قولهم : ان النية لا تفرض فی الوضوء لانه ليس بعبادة والرسول ﷺ قال : ولا يحافظ علی الوضوء الا مؤمن والوضوء عبادة معلومة وقد اوجبوا النية فی التيمم مع انه لم يرد هذا الفرق لا فی الكتاب ولا فی السنة ولا فی اجماع الائمة ولا فی قياس صحيح مرقاة (۱/۱۲) ـ

**عجيبه دا هم ده وائی : نيت په اوداسه کښې ندے فرض ځکه دا عبادت نه دے او حال دا چه نبی عليه السلام فرمائی د اودس محافظت صرف او صرف مومن کوی، نو اودس مستقل عبادت دے لکه څنګه چه وسيله هم ده او دوی په تيمم کښې نيت واجب ګڼړی نه په اودس کښې او دا فرق په کتاب او سنت او اجماع او صحيح قياس کښې ندے راغلے کما فی المرقات و فتح القدير شرح الهدايه لابن الهمام ـ**

(۱۵) – ومن العجب :

قولهم : يجوز كتابة القرآن بالبول والدم والمنی كما فی مجموعة الفتاویٰ للشيخ عبد الحیؒ (٤/۳٦۱) وقاضی خان (٤/۳٦٥) وكفاية المفتی (۹/٥٦) مع ان هذا الكلام مناقض للاسلام والايمان ـ

**وائی : په بول او وينه او منی ( مردی ) سره قرآن کريم ليکل جواز لری دغه کتابونه اوګوره ـ حال دا چه دا خبره د ايمان او اسلام سراسر خلاف ده ـ**

(۱٦) – ومن العجب قولهم :

ان القياس منقطع بعد عصر الاربعمائة فليس لأحد ان يقيس كما

فی رد المحتار (۳۹٦/۱) ۔

وهذا القول فاسد من وجوه متعددة :

الاول : ان اللّٰه تعالى أمر بتدبر القرآن، والتدبر إنما هو باستخراج المسائل وهذا الامر غير مخصوص بصدر هذه الامة بل لكل من آمن بالقرآن، فقول الشامی يخالف القرآن ۔

الوجه الثانی : من قال ذلك ؟ هل قال اللّٰه تعالى : ان القياس منقطع بعد القرن الرابع ام قاله الرسول ﷺ ؟ ام قاله الصحابة والتابعون لهم باحسان ؟ وانما هو قول مقلد من القرن الثانی عشر وقد ملأ كتابه بأقيسة نفسية فقوله يخالف عمله ۔

الوجه الثالث : الرسول ﷺ قال : مثل امتی كمثل المطر لايدری أوله خير ام آخره، وقال : فرب مبلّغ أوعىٰ له من سامع، وامثال ذلك من الاحاديث ترد على هذا القول ۔

**وائی د څلورمے صدئ نه راپدے خوا قیاس منقطع (ختم) شویدے نو اوس هیچا له دا جائز نه دی چه یوه مسئله په بله مسئله قیاس کړی ۔ او دا خبره باطله ده ځکه په تدبر القرآن حکم کړیدے او تدبر دا په مسائلو راویستلو سره وی او دا حکم هر مومن ته دے نو د شامی مولا خبره د قرآن خلاف شوه ۔**

**۲- دویم دا چه مونږ تپوس کوو چه دا چا وئیلی دی چه قیاس منقطع دے آیا الله یا رسول الله یا صحابه کرامو یا تابعینو وئیلی دی ؟ نه بلکه دا خو د دولسمے صدئ یو مقلد مولا وئیلی دی چه ټول کتاب ئے د خپلو مولیانو د قیاسونو نه ډک کړیدے نو پخپله قیاسونه کوی او بل باندے پابندی لګوی ۔**

۳- دريم دا چه دا قول د حديث هم خلاف دے ځکه حديث کښ دی : زما امت د باران په شان مثال لری پته نه لګی چه اول ئے خير دے او که آخر بل حديث دے : ډير کرتے د اول اوريدونکے نه هغه انسان خبره ښه يادوی چه کوم ته خبره رسی يعنی شاګرد ښه پوهه وی د استاذ نه نو معلومه شوه چه روستو امت کښ به داسے خلق وی چه د بعض مخکښو نه به هم زيات پوهه وی او د اجتهاد بنديدو مطلب خو دا دے چه روستو امت په هيڅ دين نه پوهيږی او صرف دغه ځلورمے صدئ نه مخکښ خلق پوهيدل ۔

(۱۷) - ومن العجب قولهم :

ان خير التابعين وافضلهم هو الامام ابوحنيفةؒ والرسول ﷺ قال : ان خير التابعين رجل يقال له اويس الحديث اخرجه مسلم (۲/) وهو فی المشكاة (۲/۵۸۱) ۔

وقد ورد فی حديث آخر يوشك ان يضرب الناس اكباد الابل يطلبون العلم فلا يجدون احداً أعلم من عالم المدينة رواه الترمذی وهو فی المشكاة (۱/۳۵) ۔

فابوحنيفةؒ لا يُنكر فضله ولكن جعله كأنه النبی المعصوم والمعاداة والموالاة له فهذا يفسد الايمان والدين بل ينبغی ان يقال : ان اصاب اخذنا قوله وان اخطأ فله الاجر باجتهاده وعلينا الرفض لقوله والله المعين ۔

وائی : په تابعيتو کښ افضل او غوره امام ابوحنيفه دے او حال دا چه رسول الله ﷺ فرمائی : غوره په تابعينو کښ اويس القرنی دے نو رسول الله يو چا ته غوره وائی او مقلدين ئے بل چا

تـه وائـی ؟ ـ د امام ابو حنیفه د فضیلت نه انکار نشی کیدے لیکن هـغـه د مـعـصـوم نبی پـه شـان گرځول او د هغـه دپاره دوستی او دشـمـنـی سـاتـل دا د انسـان ایـمـان او دین بربادوی بلکه داسے وئیل پـکـار دی چه امام ابو حنیفه د امت یو عالم دے حقه خبره به ئے منو او کـه خـطـاء خبـره وه نو هغه له به الله یو اجر ورکړے وی په اجتهاد سره او مونږ به ئے خبره نه منو ـ

او دغـه شان خبره به د هر امام سره وی دا ځو مره انصافی عقیده ده او دوی وائی اهل حدیث لا مذهبه دی امامان نه منی ـ

(۱۸) – ومن العجب قولهم :

ان الـعـرب لایسترقـون، لیس لهم الا السیف والا الاسلام، مع ان عـامة مـا استرقـه الـنبـی ﷺ هـم الـعـرب کهوازن، وحنین، وکانت جـویـریهؓ من اصل العرب، وکان عند بعض ازواجه رقیق من بنی تمیم کما رواه مسلم وفی الحدیث الصحیح الذی اخرجه ابوداود وهو فی المشکاة (۱/۸۹) : وانظر قول الحنفیة فی المرقاة ـ

عن انس قال : قال رسول الله ﷺ : لأن اقعد مع قوم یذکرون الله مـن صـلـوة الغداة حتی تطلع الشمس احبّ الیّ من أن اعتق اربعة من ولـد اسـمعیل، ولأن اقعد مع قوم یذکرون الله من صلوة العصر الی ان تـغـرب الشـمـس، احـبّ الـیّ من أن أعتق اربعة، بسند صحیح، وولد اسمعیل هم العرب ـ والاحادیث فی هذا الباب متواترة ـ

وائـی : عـرب مریان نشی جوړیدے بلکه هغوی دپاره یا توره ده یـا اسـلام دے حـال دا چـه عام مریان چه رسول الله ﷺ مریان جوړ کـړی وو هـغـه عـرب وو لکه هوازن، حنین وغیره او جویریه رضی

الله عنها د عربو نه وه د هغه د بعض بی بیانو سره د بنو تمیم نه یو غلام وو ۔ نو د دوی دا خبره بے تحقیقه ده او په لا علمیٔ بناء ده ۔

(۱۹) – ومن العجب قول فقهاء الشافعية :

ان ارسال الطلاق الثلاث دفعة واحدة مباح وجائز، والرسول ﷺ يقول : فعن محمود بن لبيد قال : اخبر رسول الله ﷺ عن رجل طلق امرأته ثلاث تطليقات جميعاً فقام غضبان، ثم قال : أيلعب بكتاب الله وانا بين اظهركم حتى قام رجل فقال : يا رسول الله ! الا اقتله، خرجه النسائي – المشكاة (۲/۲۸٤)۔

شوافع وائی : درے کانړی طلاق په یو ځل ارتول جائز دی او رسول الله ﷺ دیته په کتاب الله باندے لوبے کول وئیلی دی ۔

(۲۰) العشرون : ومن العجب : ايجابهم المسح على الجبيرة مع ان الاحاديث الواردة فيها لم يثبت منها شيء والواجب يقتضي دليلاً شرعياً قويا لا يثبت الوجوب بادلة ضعيفة بل ولا يثبت بها الاستحباب واباحوا الشهادة في الرجعة مع ورود امر الله تعالى عليها ﴿ واشهدوا ذوى عدل منكم ﴾ ولم يثبتوا بها الوجوب كما في الهداية (۲/۳۷٤)۔

عجیبه دا هم ده چه احناف وائی : مسح په جبیره ( پټیٔ ) باندے واجب ده حال دا چه ددے په باره کښ هیڅ صحیح حدیث نشته او واجب خو شرعی قوی دلیل غواړی او په ضعیف دلائلو واجب نه ثابتیږی بلکه استحباب پرے هم نه ثابتیږی ۔ بل طرفته دوی وائی خاوند چه ښځے ته رجوع کوی نو ګواهان ګواه کول صرف مباح دی او واجب ئے نه ګنړی سره ددینه چه قرآن کښ د

ګواهانو په ګواه کولو حکم کړيدے نو دا تعارض دے ځکه په ضعيف حديث وجوب ثابتوی او په قرآنی آيت ئے نه ثابتوی۔

(۲۱) - الحادی والعشرون : ومن العجب :

انهم سنوا رفع اليدين فی تكبيرات العيدين وفی قنوت الوتر مع انه لم يثبت فيها حديث صحيح، وقالوا : لا يسن بل يكره رفع اليدين عند الركوع وعند رفع الرأس منه وعند القيام من الركعتين مع ورود الاحاديث الثابتة فيها، فردوها بزعمهم الباطل - وهو النسخ، وما احسن ما قال العلامة ابن حزم : ولقد عكسوا الحقائق والسنن وانظر المرعاة (۳/۳٤) والهداية (۱)۔

وائی : په تكبيرات العيدين او قنوت الوتر كښ رفع اليدين كول سنت دی حال دا چه پدے باره كښ هيڅ صحيح حديث نشته او په درے مواضعو كښ رفع اليدين باره كښ وائی چه دا سنت نه دی بلكه مكروه دی او حال دا چه دا په صحيح متواترو احاديثو كښ ثابت دی دوی وائی دا منسوخ دی نو په خپل باطل ګمان ئے دا حديثونه رد كړل ابن الحزم وائی احنافو مقلدينو حقائق او سنتونه الټه كړيدی۔

(۲۲) الثانی والعشرون : ومن العجب :

رد هؤلاء الضفائر الثلاثة للميتة مع ورود الحديث الصحيح فيه : عن ام عطية الانصارية فی البخاری (۱/۱٦۹) ومسلم (۱/۳۰٤) فی عهد رسول الله ﷺ بل فی حضوره يعنی انهن جعلن لابنت رسول الله ﷺ ثلاث ضفائر، وهؤلاء يقولون لا بل يضفر لها ضفيرتين مع انه ليس فی ذلك شیء الا اتباع الرأی المجرد والله الموفق، بل امر

الرسول ﷺ بذلك كما رواه ابن حبان - وانظر المرقاة (٤/٣٣) ۔

**احاديثو كښې دي چه زنانه مړي دپاره به ويښته درے كونځۍ كولے شي دوي وائي نه بلكه دوه كونځۍ به ورله جوړولے شي نو په خپل رأيه سره احاديث رد كوي ۔ والله المستعان ۔**

(۲۳) - الثالث والعشرون : المالكية سنوا ارسال اليدين فى الصلواة مع انه لم يثبت فيه شيء عن النبى ﷺ ولا عن اصحابه، بل ذكر مالك رحمه الله نفسه فى الموطأ احاديث وضع اليمنىٰ على اليسرىٰ، فترك هذا والعمل بالارسال جمود وعجب وانظر فتاوى الدين الخالص (٤/٨٠) ۔

**مالكيه وائي : په مانځه كښې ارسال اليدين (لاسونه نه تړل) مسنون دي حال دا چه پدے كښې د نبي عليه السلام او صحابه كرامو نه هيڅ ثبوت نشته بلكه امام مالك پخپله په موطأ كښې د ښي لاس كيخودلُ په ګس لاس په باره كښې احاديث راوړي دي ۔**

(٢٤) - الرابع والعشرون : منع هؤلاء سجدات التلاوة فى المفصلات مع ورود السنن الكثيرة باثباتها فهذا عجب كما فى المرعاة (٣/٤٣٧)۔

**مقلدين وائي په مفصلاتو كښې سجدے د تلاوت نشته حال دا چه دا په ډيرو احاديثو كښې ثابت دي ۔**

(٢٥) - الخامس والعشرون : ومن العجب قولهم :

يجوز تخليل الخمر مطلقاً، مع ان رسول الله ﷺ نهى عن ذلك، عن انس قال : ان النبى ﷺ سئل من الخمر يتخذ خلا فقال : لا اخرجه مسلم (٢/١٦٣) المشكاة (٢/٣١٧) وانظر الهداية

(٤/٤٩٩) فانه قال : واذا تخللت الخمر حلت سواء صارت خلا بنفسها او بشيء يطرح فيها ولا يكره تخليلها، فخالف النص ـ

**احناف وائی : شرابو نه سرکه جوړول جائز دی او هيڅ کراهت پکښې نشته او رسول الله ﷺ ددينه منع فرمائيلی ده خو دوی د رسول الله ﷺ سره کار نشته خپل شريعت ئې روان کړيدے ـ**

(٢٦) – السادس والعشرون : ومن العجب قولهم :

تبطل الصلوة بطلوع الشمس ، ولا تبطل بغروبها مع ان الرسول ﷺ قال : بخلاف قولهم صراحةً فعن ابی هريرة رضی الله عنه قال : قال رسول الله ﷺ : من ادرك ركعة من الصبح قبل ان تطلع الشمس فقد ادرك الصبح، ومن ادرك ركعة من العصر قبل ان تغرب الشمس فقد ادرك العصر، اخرجه البخاری (١/٧٩) مسلم (١/٢٢١) المشكاة (١/٦١) ولا يجوز القياس فی مقابلة النص عند احد من المسلمين، فتعجبوا كيف قاس هؤلاء فی مقابلة هذا النص الصحيح الكريم بقياس يسخر منه وقولهم مذكورفی شرح الوقاية ـ

**وائی : د نمر په راختو سره مونځ باطليږی او د نمر په پريوتو سره مونځ نه باطليږی حال دا چه رسول الله ﷺ د دواړو په باره کښې د نه باطليدو فتوی ورکړيده ـ نو دوی په خپل فاسد قياس سره ددے صريح نص مقابله اوکړه ـ**

(٢٧) – السابع والعشرون : قولهم : لايجوز سجدة الشكر عند تجدد النعمة الدينية والدنيوية مع ورود الاحاديث الصحيحة فيها ، وقالوا : بالرأی فی هذا، والله المستعان وانظر المرقاة (٣/٣٢٨) قال ابوحنيفة : وليست بسنة وفی نور الايضاح : وتكره سجدة الشكر ـ

وائی : د دنیوی یا دینی نوی نعمت په وخت سجده د شکر کول نـدی جائز بلکه مکروه ئے گنړی کما فی نور الایضاح او حال دا چه ددے په باره کښې ښوارلس احادیث راغلی دی خو دوی په خپله رأیه سره رد کړیدی ۔

(۲۸) – ومن العجب : انكارهم الوتر بخمس ركعات وبسبع ركعات وتسع ركعات وبركعة واحدة، وايجابهم الثلاث بهيئة لم تثبت عن النبی ﷺ فی حديث صحيح صريح بل قد ورد النهی عنها فی حديث صحيح [ لا توتروا بثلاث تشبهوا صلوة المغرب ] كما فی نصب الراية وللتحقيق موضع آخر ۔

والاحاديث بلغت حد التواتر ان الوتر يجوز بركعة وبخمس وبسبع وبتسع وانكروها وأوّلوها على غير تاويلها اتباعاً لقول فلان، وتركاً لامر سيد البشر ﷺ ۔ وقد قال ﷺ : فمن احب ان يوتر بخمس فليفعل ومن احب ان يوتر بثلاث فليفعل، ومن احب ان يوتر بواحدة، فليفعل، وسنده صحيح كما فی المشكاة (۱/۱۱۲)۔

وائی : پنځه رکعاته، اووه رکعاته نهه رکعاته او یو رکعت وتر نشته او درے رکعاتو ته واجب وائی او هغه هم پداسے طریقه کوی چه د رسول الله ﷺ نه په صحیح صریح حدیث کښې ندی ثابت بلکه احتمالی جائز دی او بل طرفته د یو رکعت او پنځه او اووه او نهه رکعاتو وترو باره کښې متواتر احادیث راغلی دی خو دوی د هغے نه انکار کړیدے او په هغے کښې ئے ناروا تاویلات د خپل امام دپاره کړیدی ۔

(۲۹) – ومن العجب : قولهم : لايجوز للمولىٰ ان يقيم الحد على

عبده الا بأذن الامام، والرسول ﷺ : أمر الامة ان يقيموا الحدود على ارقّائهم، كما سنذكر الحديث فى ذلك، فاتركوا الامام الاعظم وهو الرسول ﷺ وامره، وتوقفوا الحدود على اذن الامام الخليفة الذى لايجب طاعته الا بعد اقتدائه بالامام الاعظم۔

اوليس نبينا ﷺ هو الامام فما أذن لكم فيه فأتوا منه وما نهاكم عنه فانتهوا عنه وهل تستأذنون الامام فى الصلوات وفى العبادات۔

والحديث هو ما اخرجه البخارى ومسلم كما فى المشكاة (٢/٣١٠) عن ابى هريرة رضى الله عنه قال : سمعت النبى ﷺ يقول : اذا زنت امة احدكم فتبين زناها فليجلدها الحد ولا يثرب عليها ثم ان زنت فليجلدها الحد ولا يثرب ثم ان زنت الثالثة فتبين زناها فليبعها ولو بحبل من شعر وفى حديث السنن : اقيموا الحدود على ما ملكت ايمانكم، وليس عندهم حجة الا رواية ضعيفة ( اربع الى الولاة وذكر فيها الحدود ) انظر لقولهم المرقاة والهداية ۔

**وائی : سید به په خپل غلام حد نه قائموی مګر اجازت به د امام نه غواړی او رسول الله ﷺ امت ته حکم کړيدے چه په خپلو غلامانو حدود قائم کړئ نو دوی رسول الله ﷺ لوئی امام پريخودو او حدودو قائمول ئے د خليفه چه د پيغمبر نه خکته دے د هغه په اجازه پورے موقوف کړل او دوی سره ددے په باره کښ قوی دليل نشته مګر يو ضعيف حديث دے ۔**

(٣٠) – ومن العجب قولهم :

ان المرأة اذا ادعت على رجل اجنبى بأنه زوجها واقامت البينة عند القاضى جاز له وطيها مع انه لم ينكحها بنكاح قبل ذلك ابداً ولا

عرفها، والشرع المطهر قد شرط رضا المرأة والرجل فی النكاح كما هو معلوم، راجع الهداية (۲/۲۹۳) ورد المحتار (۲/۲۹٤) ۔

**وائی : یوه ښځه چه په پردی سړی دعوه اوکړی چه دا زما خاوند دے او ګواهان د قاضی په دربار کښ قائم کړی نو سړی دپاره د هغے سره وطی کول جائز دی حال دا چه دے سړی د دغه ښځے سره مخکښ هیڅ کله شرعی نکاح نه ده کړے او نه ئے چرته لیدلے ده او شریعت خو په نکاح کښ رضا د ښځے او سړی شرط ګرځولے ده ۔**

(۳۱) – ومن العجب : ان كتب الاحناف مشحونة بحرمة قفيز الطحان، والمسائل المستنبطة من هذه الكلية ثم خالفها الحنفية باجمعهم فيعملون بقفيز الطحان، كما فی الهداية (۳/۳٦۰) ومشكل الآثارللطحاوی (۱/۳۰۷) مع ان هذه المسئلة ضعيفة ادلتها كما بين فی موضعها ۔

**وائی : قفیر الطحان حرام دے (مز اخستل) او ددے نه ډیر مسائل مستنبط دی بیا ئے پخپله احناف خلاف کوی او ټول په قفیز الطحان عمل کوی لکه هدایه مشکل الاثار اوګوره حال دا چه دا مسئله ضعیفه ده او دلائل ئے ضعیف دی بلکه مز اخستل جائز دی ۔**

(۳۲) – ومن العجب : ان النبی ﷺ قال : يغسل الاناء من ولوغ الكلب سبع مرات مع التراب فی اولاهن او اخراهن كما رواه الشيخان انظر المشكاة (۱/٤٥) فقالوا : لا بل نغسله ثلاثا بغير تراب فخالفوا النص الصريح فی موضعين من غير ضرورة والواقع شاهد بالحديث ۔

**نبی علیه السلام فرمائی : د سپی جوټه شوے لوښے به اووه کرتے وینځل شی او اول کرتے به په خاورو سره وینځل شی او احناف**

**وائی : مونږ به ئے صرف درے کرتے وینځو نو د نص خلاف ئے اوکړو په دوه مقاماتو کښې او خاورو سره خو وینځل بالکل نه منی او اووه کرتے هم نه منی ۔**

(۳۳) – ومن العجب قول بعضهم :

ان من صلی لیلاً اربع رکعات بتسلیمة واحدة بطلت صلاته والنبی ﷺ قد صلی كذلك كما رواه البخاری والترمذی (۱/۹۹) عن عائشة قالت : ما كان یزید فی رمضان ولا فی غیره علی احدیٰ عشرة ركعة يصلی اربعاً فلا تسأل عن حسنهن وطولهن ثم يصلی اربعاً فلا تسأل عن حسنهن وطولهن الحديث، فتقدموا بين يدی رسول اللّٰه ﷺ فحظروا عليه ما اباحه و اللّٰه المستعان وهو قول بعض الحنابلة كما فی المغنی ۔

**بعض وائی : چا چه په یو سلام څلور رکعاته اوکړل نو د هغه مونځ باطل دے او حال دا چه نبی علیه السلام دغه شان عمل کړیدے ۔ او دا د بعض حنابلو قول دے ۔**

(۳٤) ومن العجب العجاب قولهم :

لا عبرة لمفهوم القرآن والسنة ومفهوم كتبنا ( الحنفية ) حجة ولذلك يفتون هؤلاء بمفاهيم الكتب المذهبية وينكرون علی المخالفين لهم اذا احتجوا بمفهوم القرآن والسنة مع ان منزلهما الرب الذی يعلم بالمنطوق والمفهوم والكتب المذهبية صنفها رجال يصيبون ويخطئون وقد لا يمر ببالهم مفهوم قولهم ولا يدرون به فتدبروا فی هذا العجب تزداد بصيرتكم، وطالعوا رد المحتار (۵/۳۵) باب الاجارة الفاسدة تحت (مطلب الاستئجار بالطاعات ) قال :

فان مفاهيم الكتب حجة ولو مفهوم لقب على ما صرح به الاصوليون وانظر نور الانوار (۱۵۷) مبحث الوجوه الفاسدة والعرف الشذى (۲/۱) ۔

**احناف وائی : د قرآن او سنت مفهوم له اعتبار نشته او زمونږ د احنافو د كتابونو مفهوم دليل دے ددے وجے نه دوی د خپل مذهب د كتابونو په مفهوماتو باندے فتوے وركوی او د قرآن او سنت مفهوم كه ورته څوك پيش كړی نو هغے نه انكار كوی نو دا عجيبه مذهب دے ۔**

(۳۵) – ومن العجب قولهم :

ان العقيقة بدعة كما روى عن ابى حنيفة وفى رواية عنه قال : ليست بسنة، اقول : فابوحنيفة رحمه الله معذور فى ذلك لأن الاحاديث لم تبلغ اليه كما فى مقدمة الترغيب لمحمد عمارةؒ ولكن العجب من الفقهاء المتأخرين الذين صنفوا الاحكام ولم يذكروا للعقيقة باباً ولا مسئلة فكأنهم انكروها لاجل ابى حنيفةؒ ولم يبالوا بالسنة الثابتة عن النبى ﷺ والله المستعان وهذا من اكبر الادلة على نقصان كتب الفقه وانظر المغنى (۱۲۰/۱۱) والعينى عمدة القارى۔

**امام ابوحنيفهؒ نه نقل شويدی چه عقيقه بدعت دے او يا سنت نه ده، نو امام ابوحنيفه خو معذور دے چه احاديث ورته ندی رسيدلی ورنه پدے به ئے قول كړے وے ليكن تعجب د متاخرينو په طرز دے چه په خپلو كتابونو كښ ئے د عقيقے دپاره هيڅ باب ندے بيان كړے نو د امام ابوحنيفه د وجے نه ئے د ډير صحيح احاديثو نه غفلت او روګردانی اوكړه او دا لوئی دليل دے چه فقه نقصانی ده ۔**

(۳٦) – ومن العجب قولهم : ليس فى صلاة الجنازة فاتحة وسنوا فيها الثناء بقوله سبحانك اللهم وبحمدك الخ مع ان الفاتحة وردت فى بضع عشر حديثاً كما ذكرناها فى الجنائز (۱۱۲۸) ولم يرد الثناء فى حديث البتة فى صلاة الجنازة فتدبروا ۔

**عجيبه دا هم ده چه وائى : د جنازے په مانځه کښں سورت فاتحه نشته او ثناء ته سنت وائى سره ددينه چه سورت فاتحه په اوولس احاديثو کښں راغلے ده لکه د فتاوى الدين الخالص کتاب الجنائز اوګوره (٥) او ثناء په هيڅ حديث کښں نشته ۔**

(۳۷) – ومن العجب قولهم : يستحب صوم يوم الجمعة والرسول عليه الصلاة والسلام يقول : لا تختصوا يوم الجمعة بصيام من الايام كما رواه الامام مسلم وهو قول مالك فى الموطأ (۲۵٦) وابى حنيفة وانظر المرقاة وحاشية الموطأ ۔

**وائى : د جمعے د ورځے روژه نيول مستحب دى او حال دا چه رسول الله ﷺ يواځے د هغے نه منع کړيده، مګر هله به جائز وى چه مخکښں روستو ورسره نيسي ۔**

(۳۸) – ومن العجب قول بعضهم :

ان الرجل الذى تزوج باخته او امه او ذوات محارمه، ووطئها لايحد، لان هنا شبهة، فنقول : هذا من اعجب العجب فان كل احد من المسلمين يعلم ان النكاح مع المحارم لايجوز فمن اين جاء ت الشبهة، فهذه الشبهة غير مستندة الى دليل، بل قد ثبت فى الحديث الصحيح عن النبى ﷺ انه امر بضرب عنقه واخذ ماله كما تراه فى زاد المعاد (٥/١٥،١٦) وقاضى خان (٤/٤٠٧) كتاب الحدود ۔

وائی : کوم سړے چه خپله خور یا مور یا خپل محارم سره نکاح اوکړی او وطی ئے کړی نو حد پرے نشته ځکه پدے کښ شبهه موجوده ده ۔ مونږ وایو : دا خو ډیره عجیبه خبره ده ځکه چه هر مسلمان ته دا معلومه ده چه د محارمو سره نکاح حرامه ده نو شبهه پکښ د کوم ځائے نه راغله، بلکه رسول الله ﷺ د مور سره د نکاح کونکی په ځټ وهلو او مال اخستو باندے حکم کړیدے ۔

(۳۹) – ومن العجب العجیب : ان النبی ﷺ قال : من صام رمضان ثم اتبعه ستا من شوال کان کصیام الدهر اخرجه الامام مسلم ( المشکاة : ۱/۱۷۹) ۔

وقال مالك وابوحنیفة وابویوسف : یکره صوم ستة من شوال ( الموطأ :(۱/۲۵٦) والفتاوی الهندیة (۱/۲۰۱) ۔

عجیبه دا هم ده چه امام مالك، ابوحنیفه او ابویوسفؒ وائی : د شوال شپږ روژے نیول مکروه دی او حال دا چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی چه ددے ثواب داسے دے لکه د ټول کال ( کله چه ورسره رمضان حساب کړے شی ) نو دوی د نص په خلاف فتوی ورکړه مګر دوی معذور دی حدیث ورته ندے رسیدلے خو مقلدین تاوان والا دی ۔

(٤۰) – ومن العجب : انه علیه السلام امر بثلاثة آصع فی من حلق رأسه فی الاحرام فقال الحنفیة لا بل یعطی ستة آصع من غیر الحنطة کما فی مسلم (۱/۳۸۳) ۔

حدیث کښ دی ځوك چه په حالت د احرام کښ سر اوخروی نو هغه به درے صاعه ( اوړی) ورکوی او ددے په خلاف احناف وائی د

غنمو نه سوا به شپږ صاعه ورکوی ۔

(٤١) - ومن اعجب ما رأیت فی خلاصة الفتاویٰ مع مجموعة الفتاویٰ (٤/٣٨٨) انه قال : من انکر المعوذتین لا یکفر لان ابن مسعود وابی بن کعب قالا لیستا من القرآن فتعجب منه فهل یجوز لاحد ان ینکر عن سورة من القرآن لاجل قول فلان وفلان مع ان ما روی عن ابن مسعود مؤول بأنه کان لم یکتب ما بین السورتین فی مصحفه ولیس معناه بأنه انکرهما لأن القرآن کله معجز وکله متواتر، قال تعالی : ﴿ فلیأتوا بحدیث مثله ان کانوا صادقین ﴾ فان کانت هاتان السورتان لیستا من القرآن فلیأت هذا المصنف بسورة مثلهما واما قوله : وابی بن کعب ایضاً انکر ، غلط لان البخاری (٢/٧٤٤) نقل عنه بأنه اثبتهما ولم ینکرهما البتة فتدبر فی هذه ۔ راجع المحلی (١/١٣) نووی شرح مسلم (١/٢٧٢) (١/٢٧٤) الاتقان ص (٨١) قالوا : من روی عن ابن مسعود انکار هاتین السورتین فقد کذب ۔

**احناف وائی : څوك چه د معوذتین نه منکر شو نو نه کافر کیږی څکه ابن مسعود او ابی بن کعب وئیلی دی چه دا دواړه د قرآن نه ندی نو اوګوره چه د قرآن د سورت نه انکار کولو ته کفر نه وائی حال دا چه د ابن مسعود قول کښې تاویل دے چه هغوی دا دواړه سورتونه په خپل مصحف کښې نه وو لیکلی او دا مطلب نه چه هغوی دا د قرآن نه نه ګڼړل ۔**

(٤٣) - ومن العجیب : انهم قالوا : کما فی الخلاصة المذکورة (٤/٣٨٦) : من شتم النبی ﷺ او أهانه او عابه فی امور دینه او فی شخصه او فی وصف من اوصاف ذاته سواء کان الشاتم مثلا من امته

او غيرها وسواء كان من اهل الكتاب او غيره ذمياً كان او حربياً سواء كان الشتم او الاهانة او العيب صادراً عنه عمداً او سهواً او غفلة او جداً او هزلاً فقد كفر خلوداً بحيث ان تاب لم يقبل توبته ابداً لا عند الله ولا عند الناس وحكمه فى الشريعة المطهرة القتل قطعاً ولا يداهن السلطان او نائبه فى حكم قتله آهـ ـ

فاذا كان رجل كافراً ومشركاً خبيثا وداعراً مفسداً وسبّ الله عز وجل ودينه وكتابه والعياذ بالله، ثم تاب توبة نصوحاً ورجع بظاهره وباطنه الى الله تعالى فقد اتفق المسلمون على قبول توبته ظاهراً وباطناً و لم يخالف فيه احد ، وهل الرسول ﷺ اعظم واجل من رب العالمين ـ

ثم قولهم او سهواً او غفلة الخ مخالفة عن الكتاب والسنة لان النسيان والسهو مغفوران لهذه الامة وقد كان الناس يسبون النبى ﷺ ثم يسلمون وتقبل توبتهم وصاروا من خيار المسلمين وهذا المعنى فهم ابن عابدين فى مجموعة الرسائل ص (١٤) فقال :

ومن المسائل التى وقعت فى كتب الفقه وهى خطأ : مسئلة عدم قبول توبة السابّ للجناب الرفيع ﷺ كما ذكره فى البزازية وابن الهمام وصاحب الدر والغرر، اقول : وفى المحيط ايضاً : هذا مع العلم واليقين بان حق نبينا ﷺ علينا وتعظيمه وتوقيره وتبجيله من افرض الواجبات واهم المهمات ـ

ثم ان هؤلاء نقضوا هذه المسئلة وقالوا : لو ان الذمى منع ديناراً من الجزية انتقض عهده وصار حربياً ولو سبّ الله ورسوله ﷺ وجاهر بذلك لا ينتقض عهده كما تقدم ، وانظر البحر الرائق

(۱۹۵/۵) وبالله التوفيق ۔

وائی : چا چه رسول الله ﷺ ته کنځل اوکړل یا ئے د هغه سپکاوے اوکړو یا ئے په هغه باندے د دین په کارونو کښں عیب اولګولو یا ئے د هغه په شخصیت او ذاتی صفت عیب اووئیلو برابره ده که کنځل کونکے دده امتی وی او که نه وی یا کتابی وی یا ذمی وی یا حربی وی او دا عیب او شتم عمدا وی او که سهوا وی یا غفلت حالت کښں وی په تهوقو وی او که رشتیا نو دا انسان کافر دے همیشه دپاره که توبه اوباسی نو هم توبه ئے نه قبلیږی نه د الله په دربار کښں او نه د خلقو په نیز او په شریعت کښں دده حکم یقینا قتل دے او بادشاه له پکار دی چه دده په قتل کښں مداهنت اونکړی ۔

حال دا چه په اجماع د مسلمانانو سره چه یو کافر مشرك خبیث مفسد الله ته کنځل اوکړی او د هغه دین او کتاب ته نو که هغه رشتینے توبه اوباسی نو د هغه توبه قبلیږی ظاهرا او باطنا نو آیا رسول الله ﷺ د الله نه هم لوئی شو ددوی په نزد ۔

بلکه دا چه سهو او غفلت باندے خو الله تعالی نیول نه کوی هغه خو په نص قرآنی سره معاف دے ۔

ددے وجے نه ابن عابدین الشامی ته دا خبره غلطه ښکاره شویده نو رد ئے کړیدے په فقهاؤ باندے ۔

لیکن بیا دوی پخپله دا خبره ماته کړیده او وئیلی ئے دی چه که یو ذمی الله او رسول ته کنځل اوکړی نو عهد ئے ندے مات او که د جزیه نه یوه روپئ منع کړی نو عهد ئے مات دے ۔ نو دے تعارض

ته اوګوره ـ

(٤٣) – ومن اقبح ما رأيت ما ذكره الكرخي في اصوله باسم اصول الكرخي ص (٢٩) ان كل خبر يجيء بخلاف قول اصحابنا فانه يحمل على النسخ او على انه معارض بمثله ثم يصار الى دليل آخر او ترجيح فيه بما يحتج به اصحابنا من وجوه الترجيح او يحمل على التوفيق ـ وقال ايضاً :

ان كل آية تخالف قول اصحابنا فانها تحمل على النسخ او على الترجيح والاولىٰ ان تحمل على التاويل من جهة التوفيق، كذا فيه (٢٨) ـ فتدبر فى هذا العدوان وهل هذا الا اتباع اليهود والنصارىٰ كما قال تعالى : ﴿ اتخذوا احبارهم ورهبانهم ارباباً من دون اللّٰه ﴾ الآية ـ ولكن المقلدين من هذه الامة جعلوا المجتهدين انداداً مع اللّٰه يؤولون فى قوله تعالى ويستطيعون نسخه ولكنهم لايستطيعون ان يقولوا ان امامنا قد اخطأ فى هذه المسئلة مع اقرارهم بأن المجتهد يخطئ ويصيب والرب تعالى لا يخطئ ولا يغفل واللّٰه المستعان وانظر ''مسئله اجتهاد وتقليد'' للشيخ گوهر رحمان المردانى ـ

کرخي په خپل اصول الکرخي کښ ليکلي دي چه هر حديث چه زمونږ د مذهب د علماؤ د اقوالو خلاف راشي نو هغه به يا په نسخ باندے حمل کولے شي يا به د هغے مقابل کښ بل حديث پيدا کوو چه د دواړو تعارض راشي نو بيا به بل دليل ته رجوع اوکړو يا به يو طرفته ترجيح ورکړو اويا به په کښ تطبيق کوو نو دا د حديثونو قدر شو د کرخي سره ـ

بيا ئے په آيت کښ هم دغه شان خبره کړيده

نو دا خبره آيا يهوديت او نصرانيت نه دے چه دوی د رسول الله ﷺ سره خپل علماء برابر کړل دارنګه د الله سره ئے په حکم کښ علماء شريك کړل نو آيا دا کار به شرك نه وی ؟ ۔

(٤٤) – ومن التناقض : انهم قالوا : الركعة الواحدة ليست بصلوة البتة وهی باطلة ومنهی عنها، ثم نقضوا هذا فقالوا : لو حلف لا يصلی فصلی ركعة واحدة حنث لان الركعة الواحدة صلاة فتدبر فيمن خالف قول الرسول ﷺ كيف يتناقض اقواله والرسول عليه السلام يقول : من احب ان يوتر بواحدة فليفعل ومن احب ان يوتر بثلاث فليفعل ومن احب ان يوتر بخمس فليفعل رواه ابوداود والترمذی والنسائی بسند صحيح ، راجع رد المحتار (۱۲٦/۳)۔

بل تناقض : وائی : يو رکعت مونځ نه دے او ددے کول باطل دی او منع ترے راغلے ده بيا ئے دا خبره خپله ماته کړيده او وائی : که يو سړی قسم اوکړو چه مونځ به نه کوی او يو رکعت ئے اوکړو نو حانث دے ځکه يو رکعت هم مونځ دے نو اوګوره چه څوك د رسول الله ﷺ د قول خلاف کوی نو د هغه په اقوالو کښ به دغه شان تناقضات وی ځکه رسول الله ﷺ فرمائی : څوك چه يو رکعت وتر کول غواړی نو اودِ کړی الخ ۔

(٤٥) – ومن العجب ان المقلدين المتأخرين قد اخترعوا قواعد جدلية لرد الاحاديث الصحيحة فيتحاكمون اليها كما يتحاكم الى الكتاب والسنة بل يردون الاحاديث بها، فهل يبقی الاسلام بعد ذلك ۔ قال تعالی : ﴿فان تنازعتم فی شئ فردوه الی الله والرسول ان كنتم تؤمنون بالله واليوم الآخر﴾ ۔

فقد قال الشاه عبد العزيز فی فتاواه فتاوی عزیزی (۱/٦٢) ومن اللطائف التی قلما ظفر بها جدلی لحفظ مذهبه وما اخترعه المتأخرون لحفظ مذهب ابی حنیفة وهی عدة قواعد یردون بها جمیع ما یحتج به علیهم من الاحادیث الصحیحة ۔

متأخرین مقلدینو جدلی قواعد د صحیح احادیثو د رد کولو دپاره جوړ کړیدی نو هغې باندې داسې فیصلې کوی لکه په قرآن او سنت چه کولې شی بلکه د هغه قواعدو په خلاف چه کوم حدیث یا آیت راشی نو هغه رد کوی نو آیا ددې نه بعد به اسلام پاتې شی ؟ او الله خو امر کړې چه په جګړو کښې به الله او رسول ته فیصلې وړئ ۔

شاه عبد العزیز په خپله فتاوی عزیزیه کښې وائی : بله لطیفه دا ده چه متاخرینو د ابو حنیفه د مذهب دپاره یو څو قواعد جوړ کړیدی چه په هغې باندې د دوی د مذهب خلاف هر صحیح حدیث راشی هغه پرې رد کوی :

القاعدة الاولیٰ : الخاص مبین فلا یلحقه البیان ردوا بها فرضیة قرائة الفاتحة فی الصلوة وفرضیة الاطمئنان وغیر ذلك قالوا : لفظ اسجدوا او اقرأوا خاص بین فلو لحقها البیان لکان الخاص یلحقه البیان ۔

اوله قاعده : خاص بین بنفسه دې ( خپله ښکاره دې ) نو ددې بیان ته ضرورت نشته ۔ پدې قاعده سره ئې په مانځه کښې د فاتحې د لوستلو فرضیت رد کړیدې او د اطمینان د ارکانو فرضیت ئې رد کړیدې وائي : لفظ د اسجدوا اوفاقرأوا خاص دی پخپله ښکاره دی که دا بیان ته محتاج شی نو بیا به خاص دپاره بیان راشی او حال دا چه مونږ خو فرض کړیده چه خاص خو بیان ته ضرورت نه لري ۔

**( ددے قاعدے خلاصه مطلب دا دے چه د رسول الله ﷺ بيان ته هيڅ ضرورت نشته کله چه قرآن کښې خاص راشي نو بس په خپله خوښه به پرے عمل کوو او د رسول الله ﷺ بيان به بيکاره وی )**

والقاعدة الثانية : الزيادة على الكتاب والسنة نسخ فلا يكون الا بآية خاصة او حديث مشهور خاص۔

**دويمه قاعده : زيادت په کتاب الله او سنت باندے دا نسخ وی او نسخ به صرف په خاص آيت جائز وی يا په خاص حديث مشهور سره ۔**

الثالثة : المرسل كالمسند،

**دريمه قاعده : مرسل حديث د مسند پشان دے ۔**

الرابعة : لا ترجيح بكثرة الرواية وانما هی بفقه الراوی۔

**څلورمه قاعده : ډير رواياتو له به ترجيح نه وی بلکه د فقيه راوی روايت له به اعتبار وی ۔**

الخامسة : لايقبل الجرح حتى يكون مفسراً وذلك لان الجرح والتعديل انما هما فی الاکثر اجماليان ۔

**پنځمه قاعده : جرح به صرف مفسره مقبوله وی او دا ځکه چه جرح او تعديل اکثر اجمالی وی ۔**

السادسة : قول ابن الهمام فی بعض کتبه ما صححه البخاری ومسلم ونظراهما لا يجب علينا قبوله کيف وکم من راوٍ يختلف فيه الناس لاجتهادهم فمن جارح ومعدّل فعسى ان يکون الذی عدلوه مجروحاً عند امامنا وکذلك ما ضعفوه او وضعوه لايجب علينا ان نقول به کيف وعسى ان يکون الذی جرحوه عدلا وثوقاً به فاذا لا

اعتماد لنا الا علی ما ذکره اصحابنا ۔

**شپږمه قاعده : د ابن همام قول دے چه بخاري او مسلم او د دوی په شان نورو علماؤ چه کوم حدیثو نه صحیح ګرځولی دی په مونږ باندے د هغے قبلول واجب نه دی ځکه ډیر راویان شته چه د خلقو په کښې اختلاف وی څوك ئے جرح کوی او څوك ئے تعدیل کوی نو کیدے شی چه چا د یو راوی تعدیل کړے وی هغه ډِے زمونږ د امام په نزد باندے مجروح وی دغه شان کوم حدیث ته چه هغوی ضعیف یا موضوع وئیلے وی په مونږ واجب نه دی چه مونږ هم هغه شان قول اوکړو ځکه کیدے شی چه کوم کسانو مجروح کړے وی هغه ډِے عادل او ثقه راوی وی نو بس اعتماد به صرف په هغه خبره وی چه زمونږ اصحابو وئیلی وی ۔ دا په اسلام کښې کورکے جوړول ندی نو څه دی ؟ ۔**

السابعة : قال بعض اصحاب الفتاوی : اذا کان فی المسئلة قول لابی حنیفة وصاحبیه وخالفه حدیث یحکمون بصحته وجب اتباع قولهم دون الحدیث لانا نظن بابی حنیفة وصاحبیه انهم عارضوا الحدیث مع صحته وصحة الاستنباط منه ولا نظن بهم انهم لم یبلغهم الحدیث لقرب زمانهم وسعة علمهم ۔

**بعض فتاؤو والا وائی : کله چه په یوه مسئله کښې د ابو حنیفه او صاحبینو قول وی او د هغے مخالفت کښې صحیح حدیث وی نو د هغوی د قول اتباع واجب ده نه د حدیث ځکه مونږ به په ابو حنیفه او صاحبینو دا ګمان لرو چه هغوی به ددے حدیث معارضه کړی وی اګر که ددے نه به استنباط هم صحیح وی او**

مونږ په په هغوی دا گمان نه کوو چه هغوی ته به حدیث نه وی رسیدلے ځکه چه د هغوی زمانه نزدے وه او علم ئے فراخه وو ۔
دے ضد او تعصب ته اوگوره دین صرف په درے علماؤ کښ بندول ۔ او صحیح حدیث رد کول دا د یهودیت والاؤ پشان خبرے دی ۔
الثامنة : کل حدیثٍ لم یروه الا من لیس فقیها فان انسد فیه باب الرأی لایجب قبوله۔
اتمه قاعده : هر حدیث چه صرف غیر فقیه راوی ئے نقل کړی (لکه ابو هریره انس بن مالك، سلمه بن المحبق وغیره رضی الله عنهم شو) نو که په هغه حدیث کښ رأی نه چلیده نو د هغے قبلول واجب نه دی ۔
التاسعة : العام قطعی کالخاص فلا یخصص عام بخاص حتی یکون قطعیاً فیکون تخصیصه نسخاً الا اذا کان العام قد خص منه بعضه ۔
نهمه قاعده : عام د خاص په شان یقینی دے نو د عام تخصیص به په خاص سره نشی کولے مگر هله چه هغه یقینی وی ۔ نو تخصیص د عام به نسخ د هغه وی مگر که عام مخصوص منه البعض وی نو بیا به د عام تخصیص نسخ نه وی ۔
فهذه قواعد مزعومة لم یأذن بها الله ولا رسوله ﷺ بل اخترعوا لان یردوا بها ما خالف مذهبهم من الکتاب والسنة وقد صرح بذلك الشاه عبد العزیز فی فتاواه (۱/۶۲) ۔
نو دا د ځان نه جوړ شوی قواعد دی او الله او رسول ددے اجازت ندے ورکړے بلکه دوی د احادیثو د رد کولو دپاره دا جوړ کړی دی ۔
امام ابو حنیفه ددے نه خبر هم ندے په فقه کښ ډیرے گوتے وهلے

**شوی دی هر قسمه خلق تیر شویدے الله پو هیږی چه دا کومو خلقو جوړ کړی دی لکه شاه عبد العزیز دا قواعد په خپله فتاوی کښې د تردید دپاره ذکر کړی دی ۔**

(٤٦) – ومن العجب : انهم قالوا : لایجب الحد علی من عمِلَ عمَلَ قوم لوط الا اذا تکرر منه هذا العمل الخبیث فهناك یعزر بحبس او بقتل ونحوه، أفلیس هذا عجیباً فان من جامع عشرة نفر والذی جامع واحداً کلاهما قد تعدیٰ عن حکم الله ورسوله، ومن الذی یحسب تکرار عمله فان قلت الفاعل ، فاذاً یأتی الرجل بوطئ عشرین رجلاً ثم یقول : قد فعلتُ مرةً، وانت تعرف خباثة هذه المسئلة لو تدبرتها، وهی فی رد المحتار (۳/۱۵۵، ۱۵٦) ۔

**وائی : چا چه هلکانو ته راتګ اوکړو په ده باندے حد قائمول ندی واجب مګر هله چه بار بار دا خبیث عمل اوکړی نو بیا به تعزیر ورکولے شی چه جیل ته به واچولے شی یا به قتل کړے شی وغیره ، دا خو ډیره عجیبه خبره ده ځکه یو سړی ته راتګ کول او لس کسانو ته راتګ کول دواړه د الله او د رسول د حکم نه تجاوز دے نو بار بار قید پکښې د ځان نه شریعت دے ۔**

(٤٧) – ومن العجب المضحك : انهم قالوا : یؤم القوم اقرأهم ثم اعلمهم، ثم الاورع ثم الاسن ثم احسنهم خلقاً ثم احسنهم وجهاً ثم الاحسن صوتاً ثم اشرفهم نسباً ثم الاحسن زوجة ثم المتزوج بزوجتین ثم الاکبر رأساً ثم اصغرهم عضواً یعنی ذکراً ۔ ثم اکثرهم مالاً ثم اکبرهم جاهاً کما فی مراقی الفلاح ص (۷۰) والطحطاوی (۱٦٤) وقال : ولا یعلم ذلك : الا بالاطلاع او الاخبار الخ ۔

فكيف يتصور اخراج المذاكير حتى يعرف بان ذكره صغير ام كبير وهل اذا تنازعوا فى حسن ازواجهم فقال واحد : زوجتى جميلة فهل يذهبون الى بيته حتى يروها كلهم، ولا نعلم من اين لعب الشيطان بعقول هؤلاء وهل هذا الا تنفير الكفار عن الشريعة السمحة البيضاء وهذه كتب تسمىٰ بالفقه وليس فيها الفقه عن اللّٰه ولا عن رسوله ﷺ وانما هى آراء الناس وتعمقات المتفقهة، وسبب ذلك الاعراض عن الكتاب والسنة الصحيحة فقد جاء الحديث الصحيح فى صفة الائمة بلفظ :

[ يؤمّ القوم اقرأهم لكتاب اللّٰه فان كانوا فى القرائة سواء فاعلمهم بالسنة فان كانوا فى السنة سواء فاقدمهم هجرةً فان كانوا فى الهجرة سواء فاقدمهم سناً الحديث ولم يذكر هؤلاء الهجرة فى هذه الصفات بل اخترعوا صفات مضحكة اخرىٰ ـ

**وائى : امامتى به اقرأ كوى بيا اعلم بيا ډير پرهيزګار بيا معمر مشر بيا ښكلى اخلاقو والا بيا ښائسته مخ والا بيا ښائسته آواز والا بيا شريف نسب والا بيا ښائسته ښځې والا بيا دوه ښځو والا بيا غټ سر والا بيا وړوكى ذكر والا، بيا ډير مال والا بيا غټې مرتبې والا ـ نور الايضاح شرح مراقى الفلاح (۷۰) او طحطاوى اوګوره بيا طحطاوى كښې ليكى چه ددې معلومات به په اطلاع او اخبار سره كيږى۔**

**نو دا څنګه كيدې شى چه هريو خپل ذكر راوباسى چه زما ذكر غټ دې او كه د دوى جګړه شى او هريو وائى چه زما ښځه ډيره ښائسته ده نو آيا بيا به د ټولو په كورونو ګرځى چه ښځې اووينى چه كومه ښځه ډيره ښائسته ده ـ دا خو د عقل خبرې نه**

دی د رسول الله ﷺ د حدیثو نه تعدی او تجاوز دے هغه بل څه ذکر کوی او دا متفقهه د پیغمبر په خبروئے تسلی نه کیږی نو بل څه ئے پکښں راوویستل رسول الله پدے ترتیب ذکر کړی چه اول مستحق د امامت اقرأ دے بیا اعلم بالسنت بیا اول هجرت والا بیا د عمر په لحاظ مشر بس دوی پکښں هجرت ذکر نه کړو او نورے ډکوسلے ئے پکښں راوویستلے ۔

(٤٨) – ومن العجب : احتيالهم في كثير من الاحكام الشرعية والحدود الدينية فاسقطوها ودفعوها بانواع الحيل الباطلة، ۔

فمنها : قالوا : خندق له طول اكثر من عشرة اذرع وفيه ماء الا ان عرضه اقل من عشرة اذرع فلا يجوز التوضؤ به بعد وقوع النجس فيه والحيلة في الجواز ان يحفر حفيرة صغيرة قريبة من الخندق ثم يحفر نهيرة صغيرة من الخندق اليها ويسيل الماء الى الحفيرة فيصير الماء جارياً فيجوز له الوضوء من النهيرة ومن الخندق ۔

فتعجب من هذه السماجة، ونقول : ان مسئلة عشر في عشر لا حجة لها اصلاً في الشرع بل روى عن ابي حنيفة في ذلك اربعة عشر قولاً فكيف يعمل بها،

ثانياً : اذا نجس الماء مثلاً في الجب والجرة ثم اجراه الانسان فهل يكون طاهراً كلا ! والله، وهل جاء ت الطهارة بنفس هذ الجريان في الماء النجس، راجع الهندية (٦/٣٩٠) ۔

بله عجیبه د دوی دا ده چه دوی په ډیرو دینی احکامو او حدودو کښں باطلے حیلے راویستلی دی چه د هغے په وجه ئے ډیر احکام او حدود ساقط کړیدی ۔

بعض دا دی : وائی : یوه کنده چه د هغے اوګد والے د لسو ګزو نه زیات وی او په هغے کښ اوبه وی مګر د هغے پلنوالے د لسو ګزو نه کم وی نو پدے باندے خو اودس نه دے جائز کله چه نجاست پکښ پریوځی نو حیله د جواز ئے دا ده چه ددے کندے خوا کښ به بله یوه وړه شان کنده اوباسی او ددے کندے نه به اوبه هغے طرفته روانے کړی نو دا اوبه به جاری شی او په جاری اوبو خو اودس کیږی اګرکه پلیتی پکښ پرته وی نو دواړه کندے پاکے شوے ۔ راشئ د فقه نه دوکے زده کړئ ۔

اول خو د عشر فی عشر مسئله دین کښ نشته د امام ابو حنیفه نه په کښ خپله (١٤) اقوال نقل دی ۔ دویم دا چه پدے روانولو سره اوبه ځنګه پاکے شوے، دے روانولو پدے نجس اوبو کښ څه اثر اوکړو ؟ که نه صرف مذهب ته خبره برابروی چه جاری اوبه پاکے دی، مسلمانانو ! حیلے په دین کښ نشته ولے خپل آخرت په داسے خرافاتو خرابوئ والله که دا د الله شریعتِ منزله وی ۔

(٤٩) – ومن العجب انهم احتالوا لاسقاط الزكاة الذی ذكره الله تعالى فی كتابه اكثر من خمسة وثلاثين موضعاً، فقالوا :

اذا كان عند الرجل النصاب وقرب عليه حولان الحول يهب ذلك النصاب لرجل يثق به فاذا حال عليه الحول فيرجع فی هبته، ويفعل هكذا الى آخر الدهر فلا تجب عليه الزكاة ۔ الهندية (٦/٣٩١) ۔

أليس هذا مناقضة لحكم الله ورسوله ؟ أليس فی هذه الحيلة الباطلة اسقاطاً لحق الله ولحقوق الفقراء المسلمين وفی هذه الحيلة رجوع فی الهبة وذلك حرام ايضاً وذلك عمل الكلاب كما فی

الحديث ( ثم يعود فی قيئه )۔

بله عجيبه : د زکات د ساقطولو دپاره ئے دا حيله جوړه کړيده چه کله يو سړی سره نصاب وی او د کال تيريدل رانزدے شی نو دا د نصاب مال دِے يو معتمد سړی ته هبه کړی بيا کله چه کال تير شو نو د هغه نه دِئے واپس واخلی او دا عمل دِتول عمر کوی نو هيڅ زکات به پرے واجب نه وی ۔ الهنديه (۳۹۱/٦) ۔

آيا دا به د الله او د رسول سره مخالفت نه وی ؟ آيا پدے کښ به د الله او د مسکينانو حق ضائع کول نه وی او پدے حيله کښ خو په هبه کښ رجوع راغله او هغه په نص د پيغمبر حرامه ده او د سپو عمل ورته وئيلے شويدے لکه سپے چه خپلو التهو (قیء) کښ رجوع کوی ۔

(۵۰) – ومن العجب : انه قد ثبت فی صحيح البخاری (۱۷۸/۱) عن طلحة بن عبد الله بن عوف قال : صليت خلف ابن عباس علی جنازة فقرأ بفاتحة الكتاب، فقال : لتعلموا انها سنة، وقد قالت الحنفية وغيرهم، ان قول الصحابی : من السنة كذا و كذا فالمراد به سنة الرسول ﷺ ولكن لما كانت هذه الرواية تخالف منهبهم قالوا : وليس هذا من قبيل قول الصحابی من السنة كذا فيكون فی حكم المرفوع، راجع المرقات (٤٧/٤) ۔

فتعجب من هذا العدوان، أليس هذا فی حكم المرفوع وقد ثبت قرائة الفاتحة فی احاديث كثيرة منها ما اخرجه النسائی (۱/۴۲۸) رقم (۱۸۸۰) عن ابی امامة بن سهل قال : السنة فی الصلاة علی الجنازة ان يقرأ فی التكبيرة الاولیٰ بأم القرآن مخافتة الحديث بسند

صحيح راجع (۱۱۲۸) ۔

فهذه الاحاديث ليست فی حكم المرفوع عندهم، وقول ابراهيم النخعی الذی هو لم يلق النبی ﷺ البتة هو فی حكم المرفوع كما قال صاحب الهداية (۱/۶۶) (واقل الطهر خمسة عشر يوماً، هكذا نقل عن ابراهيم النخعی، وانه لا يعرف الا توقيفاً، فهذا توقيف عندهم الذی لم يثبت فيه شیء عن النبی ﷺ ای فی الطهر المتخلل بين الدمين مع ان قول ابراهيم النخعی لا سند له ولا يعرف فی أیّ كتاب هو كما قاله صاحب الدراية ۔

فتمهل ولا تعجل علیّ يا اخی الكريم فانك لو ذقت حلاوة السنة ومرارة هذه الآراء وسخافتها لتكونن اشد عليهم ۔

ابن عباس رضی الله عنه جنازه کښ په جهر سره سورتِ فاتحه اولوستله او دا ئے اووئيل چه دا ما ځکه اولوستله چه تاسو ته پته اولګی چه دا سنت عمل دے پدے باندے اتفاق د ټولو مسلمانانو دے سره د احنافو نه چه صحابی کله من السنه لفظ اووائی نو ددينه مراد به د پيغمبر سنت وی ليکن هر کله چه دا روايت د هغوی د مذهب خلاف وو نو دوی ددے نه انکار شروع کړو او دا ئے اووئيل چه دلته د ابن عباس خپل سنت مراد دی ۔ دے عدوان ته اوګوره آيا دا حديث په حکم د مرفوع کښ نه دے څه او حال دا چه په جنازه کښ د فاتحے لوستلو باره کښ ډير احاديث مرفوعه راغلی دی ۔

(۵۱) – ومن العجب انهم قالوا : كما فی الهداية (۱/۷۸) وفتح القدير (۱/۱۸۷) : الاستنجاء سنة لان النبی ﷺ واظب عليه الخ :

فتدبر فی هذا فانهم قالوا الرسول ﷺ قد ترك الاستنجاء ولم يمس حجراً ولا ماءً فهل يمكن هذا واين ثبت ذلك عنه ﷺ ؟ هب ! انك لو قمت من غائطك وبولك بلا مس حجر ومدر وماء أفليس يتنجس ثيابك بقطرات البول وبالغائط المعلق فی اشعار دبرك وهل يجوز ان ينسب الى الرسول ﷺ نحو هذه الحماقة كلاّ ! وحاشا ! ۔

بل الصحيح ان الاستنجاء فرض اما بالحجر او بالماء سواء جاوزت النجاسة موضعها ام لا لأمر النبی ﷺ بذلك فی عدة احاديث : ولكنهم استدلوا لهذه الخرافة بحديث موضوع، ( تعاد الصلوة من قدر الدرهم من الدم كما فی السلسلة رقم (۱٤۸و ۱٤۹) و(۱/ ۱۸۰،۱۸۱) قال صاحب الهداية (۱/ ۷٤) فصل فی الاستنجاء : الاستنجاء سنة ( ای مع ان النبی ﷺ تركه ) الخ

**وائی استنجاء سنت ده ځکه نبی علیه السلام پرے همیش والے کړیدے او یو کرت دوه کرتے ئے پریخودلے ده نو آیا داسے چرته کیدے شی چه نبی علیه السلام نه په اوبو او نه کانړو اولوټو سره استنجاء کړی وی او همداسے پاڅیدلے وی دا څومره بے وقوفی ده۔**

(۵۲) – ومن العجب : ان رسول الله ﷺ قال : لو اطلع عليك فی بيتك احد ولم تأذن له فخذفته بحصاة ففقأت عينه ما كان عليك من جناح، متفق عليه ۔ المشكاة (۲/ ۳۰۵) وقالت الحنفية : عليه الضمان، فهل هذا الا تقدم بين يدی الله ورسوله راجع المرقاة (۷/ ۹۱) و (۹۲)۔

وقال البخاری (۲/ ۱۰۲۰) فی صحيحه : باب من اطلع فی بيت قوم ففقؤوا عينه فلا دية له ثم ذكر الحديث ۔

عن سهل بن سعد ان رجلاً اطلع فی جُحرٍ فی باب النبی ﷺ ومع رسول الله ﷺ مدرعاً یحك به رأسه فلما رآه رسول الله ﷺ قال : لو أعلم أنك تنظرنی لطعنت به فی عینك قال رسول الله ﷺ : انما جعل الاستیذان ( الاذن ) من قبل البصر ـ المشكاة (۲/۳۰۵) ـ

البخاری (۲/۱۰۲۰) وفی روایة اخریٰ للبخاری : فقام الیه بمشقص او مشاقص وجعل یختله لیطعنه،، وقالت الحنفیة : من فعل ذلك فعلیه القصاص فاوجبوا القصاص فی اخراج عین الظالم من رسول الله ﷺ راجع المرقاة (۹۲،۹۱/۷) ـ

واما من قال : لیس فی هذه الاحادیث نفی الدیة والقصاص، فنقول : هذا الحدیث اخرجه مسلم (۲/۲۱۲) من وجه آخر بلفظ : عن ابی هریرة رضی الله عنه قال : قال رسول الله ﷺ : من اطلع فی بیت قوم بغیر اذنهم فقد حل لهم ان یفقأوا عینه، واخرج النسائی رقم (٤٥١٦) (۳/۱۰۰۳) و(۲/۲٥۲) قدیمی ) وابوداود (۲/۳٥٦) كتاب الادب عن ابی هریرة عن النبی ﷺ قال : من اطلع فی بیت قوم بغیر اذنهم ففقأوا عینه فلا دیة له ولا قصاص ، باسناد صحیح ـ

ونحوه فی المسند للامام احمد (۲/۲٦٦) (٤١٤) و (٥۲۷) والبیهقی (۸/۳۳۸) وابن الجارود (۷۹۰) وارواء الغلیل (۷/۲۸٤) رقم (۲۲۲۷) وفتح الباری (۱۲/۲۰۵) و (۲۰٦) مفصلاً ـ

فهل تستطیع التاویل الباطل بعد هذا والله المستعان ابن ابی شیبة (۱٤/۲۰۷)ـ

نبی علیه السلام فرمائی که ستا کور ته څوك درښكاره شی او ستا ورته اجازت نه وی او ته هغه په كاڼړی اوولے او د هغه سترګه

شیرۍ شی نو په تا باندے هیڅ ګناه نشته ۔

او حنفیه وائی : پدے سړی باندے ضمان دے نو آیا دا به د الله او رسول نه ځان مخکښ کول نه وی څه ؟ ۔

(٥٣) - ومن العجب تناقضهم، فی جواز قضاء سنة الفجر بعد صلاة الفجر قبل طلوع الشمس، فقال صاحب الهداية (١/٨٦) لايجوز سنة الفجر بعد صلاة الفجر وان افسدها، وقال فی الهندية (٦/٣٩٠) : يجوز ذلك بلا كراهة فهذا التناقض انما جاء بسبب المخالفة عن السنة ۔

هدایه کښ وائی چه د سحر مانځه نه روستو د سنتو قضائی نه ده جائز او فتاوی هندیه کښ وائی چه دا بالکل جائز ده هیڅ کراهت پکښ نشته نو دا تناقض په دوی کښ پدے وجه راغلو چه دوی د سنت مخالفت اوکړو ۔

(٥٤) - ومن عجيب التناقض : ان لحوم الخيل محرمة عند ابی حنيفة كما فی المرقات (٨/١٤١) مشكاة (٢/٣٥٩) وقال فی الهداية (١/٨٦) وحواشيها : ان لحم الخيل غير محرمة ۔

مع ان الصحيح جواز اكل لحمه كما ثبت فی الصحيح من حديث جابر، المشكاة (٢/٣٥٩) ۔

مرقات کښ لیکی چه د امام ابو حنیفه په نزد باندے د اسونو غوښه حرامه ده او هدایه کښ وائی چه د اسونو غوښه نده حرامه نو دے تناقض ته اوګوره حال دا چه حدیث کښ ددے جواز ثابت دے ۔

(٥٥) - ومن العجب : ان الرسول ﷺ قال : صلوا قبل المغرب صلوا قبل المغرب صلوا قبل المغرب ثم قال : فی الثالثة او الرابعة لمن

شاء كراهة ان يتخذها الناس سنة، اخرجه البخارى (۱/۷۲) المشكاة (۱/۱۰٤) و(۱۰۵) وفى معناه احاديث كثيرة تراها فى باب السنن وفضائلها من المشكاة۔

ولكن المتفقهة يقولون : يكره الصلاة قبل المغرب، أليس هذا مخالفة رسول الله ﷺ عيانا وجهاراً راجع الهداية (۱/۸۹) (۹۰)۔

**رسول الله ﷺ ترغيب وركړے دے چه د مابنام نه مخكښ مونځ كوئ (يعنى دوه ركعاته نفل) او پدے باره كښ (۳٦) احاديث راغلى دى ليكن متفقهه وائى : د مابنام مانځه نه مخكښ نفل كول مكروه دى نو دا ښكاره مخالفت ئے د حديث نه اوكړو۔**

(٥٦) – ومن العجب : ان رسول الله ﷺ قال : وهو يخطب اذا جاء احدكم يوم الجمعة والامام يخطب فليركع ركعتين وليتجوز فيهما رواه مسلم وهوفى المشكاة (۱/۱۲۳)۔

وقال الحنفية : يكره الصلاة عند الخطبة كما فى كتب الفقه وشروح المشكاة فهذا مخالفة صريحة عن امر الرسول ﷺ۔

**رسول الله ﷺ فرمائى : كله چه امام په خطبه د جمعه كښ لګيا وى او يو تن د بهر نه راشى نو هغه دِے دوه ركعاته تحية المسجد اوكړى۔ او احناف وائى چه دا دوه ركعاته د خطبے په وخت كښ مكروه دى، نو دا هم صريح مخالفت دے د رسول الله ﷺ نه۔**

(٥٧) – ومن العجب : ان الرسول ﷺ قال : لا يحل للرجل ان يعطى عطية ثم يرجع فيها الا الوالد فيما يعطى ولده، ومثل الذى يعطى العطية ثم يرجع فيها كالكلب اكل حتى اذا شبع قاء ثم عاد فى قيئه رواه ابوداود والترمذى، المشكاة (۱/۲٦۱) وسنده صحيح

وقال الاحناف، بعكس الحديث فقالوا : لايجوز للوالد الرجوع فی الهبة ويجوز الرجوع فيها من غير الولد كما فی حواشی المشكاة ـ

**رسول الله ﷺ فرمائی څوك چه يوه تحفه چا ته ورکړی نو هغه دپاره بيرته رجوع کول حلال نه دی مګر که پلار بچی ته څه ورکړی هغه ئے ترے بيرته اخستے شی ـ او احناف ددے په خلاف وائی چه پلار په هبه کښ رجوع نشی کولے او د پلار نه سوئ بل څوك که چا ته هبه ورکړی نو هغه په کښ رجوع کولے شی نو دا بعينه د نبی عليه السلام سره ترېگنی ده ـ**

(۵۸) – ومن العجب : ان النبی ﷺ قال : من نسی وهو صائم فأكل او شرب فليتم صومه فانما اطعمه الله وسقاه متفق عليه المشكاة (۱/۱۷۶) ـ

وقالت المالكية : لا بل عليه القضاء فخالفوا نص الحديث كما فی المرقاة (۲٦۲/٤) وقالت الحنفية : لو قيل له لا تشرب فانه حرام فلم ينتبه لذلك فعليه القضاء، وهذا ايضاً مخالف عن اطلاق الحديث ـ

**نبی عليه السلام فرمائی : څوك چه په هيره په روژه کښ خوراك څكاك اوکړی نو روژه دِے پوره کړی څکه ده ته الله خوراك څكاك ورکړو ـ او مالكيه وائی نه ! بلكه په ده باندے قضاء راګرځول لازم دی او احناف پکښ داسے وائی که دے سړی ته پدے وخت کښ چا اووئيل چه مه څکه دا حرامے دی او هغه دده خبرے ته متوجه نه شو نو دے به قضاء راوړی ليکن دا هم د اطلاق د حديث مخالفت دے ـ**

(۵۹) – ومن عجيب التناقض فی اصولهم وفروعهم : ان الحنفية

يقولون : ان الحديث المرسل حجة مطلقاً و ان كان المرسِل من القرن الثالث الحسامى (٧٠) ـ

لان الراوى قد حمل العهدة على نفسه فلو لم يكن الحديث ثابتاً عنده لما حمل العهدة على نفسه وهو مسلم ثقة وهو فوق السند ـ

ثم انهم قالوا : فى احاديث كثيرة ان الصحابى الفلانى نقل الحديث فاخطأ فيه فنسبوه الى الخطأ من غير دليل، ولا يقولون : بانه تحمل العهدة على نفسه فى ذلك مثال ذلك : حديث ابى محذورةؓ حيث روى الترجيع فى الاذان و كان يعمل بذلك فى مسجد الحرام فيقول صاحب الهداية (١/٨٧) فى جوابه :

ولنا انه لا ترجيع فى المشاهير و كان ما رواه تعليماً فظنه ترجيعاً، يعنى الرسول ﷺ لم يعلّمه الترجيع ولكنه اخطأ فنقل الى الأمة الترجيع فتدبر ـ

**احناف وائي مرسل حديث حجت دے اګرکه ارسال کونکے د دریمے صدئ نه وی ځکه راوی ذمه واری په ځان باروی نو که دده په نزد حدیث ثابت نه وی نو بیا ولے په ځان باندے دا ذمه واری پورته کوی او حال دا چه مسلمان دے د سند نه ئے درجه اوچته ده ـ**

**بیا په ډیرو حدیثونو کښې وائي : فلاني صحابی دا حدیث نقل کړیدے او پدے کښې خطاء شویدے نو هغه بے دلیله خطاء ته منسوب کوی او داسے نه وائي چه ده ذمه واری پوره په ځان پورته کړیده نو د هغې مثل پکار دی لکه ددے ډیر مثالونه دی :**

**یو مثال دا چه حدیث د ابو محذوره کښې ترجیع په اذان کښې ثابته ده او هغه به په مسجد حرام کښې پدے باندے عمل کولو او**

**ددے په مقابله کښې هدايه مولا وائي : ابو محذوره ته رسول الله ﷺ ترجيع په اذان کښې د تعليم دپاره خودلے وه او دے خطاء شو او دا ئے فهم کړه چه گنے دا د اذان نه حساب ده او حال دا چه دا د اذان نه وه بلکه پدے سره دده ايمان مضبوطول مقصود وو۔**

المثال الثاني : قال ابن عمر : صليت مع رسول الله ﷺ ركعتين قبل الظهر الحديث متفق عليه، المشكاة (۱۰۳/۱) وفي البخاري (۱۲۸/۱) نحوه۔

فقالوا : هذه كانت تحية المسجد فظنه ابن عمر ان الرسول ﷺ يصلي سنة القبلية للظهر، فنقل الخطأ الى الأمة انظر حاشية المشكاة ۔

وقد قال ابن عمر : حفظت من رسول الله ﷺ عشر ركعات، ركعات قبل الظهر، الحديث اخرجه البخاري (۱۵۷/۱) ۔

فابن عمر يقول : حفظت وهم يقولون لا بل اخطأ ۔

**دويم مثال : ابن عمر وائي ما د رسول الله ﷺ سره د ماسپښين نه مخکښې دوه رکعاته اوکړل دوی وائي : دا تحية المسجد وو خو ابن عمر خطاء شو او دا گمان ئے اوکړو چه گنے دا د ماسپښين سنت دی ۔ او حال دا چه ابن عمر صريح لفظ حفظت استعمالوی او دوی وائي نه هغه خطاء شويدے ۔**

المثال الثالث : ان مغيرة بن شعبة روى المسح على العمامة كما في صحيح مسلم والترمذي (۲۹/۱) فقالوا : ان الرسول ﷺ كان يسوّى عمامته بعد المسح فظنه انه يمسح عليها وهذا تغليط الصحابي الجليل كما في العرف الشذي (۳۰/۱) وامثلة ذلك كثيرة يغلطون الصحابة لاجل المذهب، والله المستعان۔

وخطّأوا عائشة فی صلاة الکسوف کما فی الهدایة (۱/۱۷۵) وتقدم امثلة ذلك فی رقم (۲)۔

**دريم مثال: مغيره بن شعبه وائی رسول الله ﷺ په پتهکی مسحه اوکړه دوی وائی رسول الله ﷺ خپل پتهکے سمولو نو مغيره خطاء شو او دا ګمان ئے اوکړو چه ګنے په پتهکی ئے مسحه اوکړه نو اوچت صحابی ئے خطاء کړو۔**

**دارنګه په باب د صلوة الکسوف کښ ئے عائشه خطاء کړه چه عائشه روستو ولاړه وه او قرائت اوګدوو نو هغے دا ګمان اوکړو چه ګنے دوه رکوع ګانے اوشوے او حال دا چه يوه رکوع شوے وه۔**

(۶۰) – ومن العجب: ان المالكية قالوا: الامام لا يقول بالتامين لا جهراً ولا خفيةً وقد قال ﷺ: اذا امّن الامام فأمنوا رواه البخاری، القرطبی (۱/۱۲۹)۔

**مالکيه وائی چه امام به آمين نه پټ وائی او نه ښکاره او حال دا چه رسول الله ﷺ فرمائی: کله چه امام آمين اووائی نو تاسو هم ورسره آمين وايئ۔**

(۶۱) – ومن العجب: ان الحنفية قالوا: الامام لا يقول: ربنا ولك الحمد، وقد ثبت فی البخاری انه عليه ﷺ كان يقول بعد سمع الله لمن حمده: ربنا ولك الحمد كما فی المشكاة (۱/۷۶) البخاری (۱/۱۰۲) فخالفوا نصّ الحديث۔

واستدل بعض الحمقی بقوله عليه السلام: اذا قال الامام سمع الله لمن حمده فقولوا ربنا ولك الحمد وهذا تقسيم والتقسيم ينافی الشركة فنقول: وهذا تناقضكم فما تقولون فی قوله عليه السلام: اذا

امـن الامـام فأمنوا رواه البخاری، أليس هذا تقسيم وهو ينافي الشركة فما هو الجواب وضعتم القواعد المزعومة لرد الاحاديث الصحيحة۔

**احـناف وائـی : امـام بـه ربـنـا ولك الحمد نه وائی او حال دا چه بـخاری کـښ دی چـه رسـول الله ﷺ بـه د سـمـع الله لمن حمده نه روستو ربنا ولك الحمد وئيله ۔**

**بـعض نادان ددے دپاره استدلال کوی چه حدیث کښ دی : کله چه امام سمع الله لمن حمده اووائی نو تاسو ربنا ولك الحمد وايئ نو دا تقسیم دے او تقسیم د شرکت منافی وی دا استدلال غلط دے ځکه چه دغه شان الفاظ په آمین کښ هم راغلی دی چه کله امام ولا الضالین اووائی نو تاسو آمین وایئ نو دلته هم پکار ده چه امام آمین ونه وائی ۔ نو ښکاره د تناقض خبرے کوی ۔**

(٦٢) – ومـن التـنـاقـض العجيب : ما ذكره الحلبي في الكبيري (٣٤٧) والـكـاسـانـي في البدائع : ان رفع اليدين مكروه تحريماً عند الـركـوع ورفـع الرأس منه وفي رواية عن ابي حنيفة : ان الصلاة تفسد بـه، وقـال رشـيـد احمد في الكوكب الدري (١/١٢٩) ان رفع اليدين جـائـز وكـذالك فـي فيـض الباري (١/٢٥٧) والتعليق الممجد لعبد الحي اللكهنوي (٨٩) فتدبر في هذا التناقض ۔

**وائـی : رفـع الیـدین په درے ځایونو کښ مکروه تحریمی دی او یو روایت د ابو حنیفه کښ دی چه مونځ پدے سره فاسدیږی ۔**

**او ددے پـه خـلاف رشـید احمد گنگوهی لیکی چه رفع الیدین پـه دغـه مـواضـعو کښ جائز دی او دغه شان شاه انور شاه په فیض الباری کښ وئیلی دی نو دے تناقض ته اوگوره ۔**

(٦٣) - ومن العجب : ان رسول الله ﷺ نهانا ان نشرب فی آنية الفضة والذهب وأن نأكل فيها وعن لبس الحرير والديباج وان نجلس عليه، متفق عليه المشكاة (۳۷٤/۱) وفی فتاوی قاضی خان (۳۷۰/۲) قال ابوحنيفة : لا بأس بافتراش الحرير والديباج والنوم عليها وكذا الوسائد والمرافق والبسط والستور من الديباج والحرير اذا لم يكن فيها تماثيل، فتدبر فی هذه المخالفة الصريحة۔

**رسول الله ﷺ د سرو او سپينو زرو په لوښو کښې د خوراك څكاك نه منع فرمائيلې ده او د وريښمو د اغوستو نه او په هغې باندې كيناستو نه ئې منع فرمائيلې ده او امام ابو حنيفه نه نقل دی چه د وريښمو په بستره كيناستل او خوب كول جائز دی۔**

(٦٤) - ومن العجب : ان ابا حنيفة قال : كما ذكره قاضی خان (۳۷۱/۲) - كتاب الحظر : حلقت رأسی بمكة فخطأنی الحجام فی ثلاثة، منها انی جلست مستدبراً فقال : استقبل القبلة وناولته الجانب الايسر فقال : الايمن واردت ان اذهب بعد الحلق فقال : ادفن الشعر فرجعت فدفنته فتدبر ان المجتهد كيف يخطئ وهم لا يقولون بخطائه ولو فی مسألة مع ان المسألة الاولی والثالثة لا دليل عليها، وتقديم الجانب الايمن سنة كما فی الصحيح ۔

**امام ابو حنيفه وائی : ما په مكه كښې د احرام نه پس سر خرئيلو نو حجام ( نائی ) ما ته د درې خبرو تعليم راكړو ۔ ما قبلې ته شا كړه هغه راته اووئيل قبلې ته مخ كړه، ما ورته گس طرف وركړو هغه راته اووئيل ښې طرف راواړوه ۔ زه د سر خرئيلو نه بعد روان شوم هغه راته اووئيل : ويښته دفن كړه ۔ نو اوگوره مجتهد څنګه**

**خطاء کيږي سره ددينه چه په اوله او دريمه خبره دليل نشته او د نبي طرفنه شروع کولو باندے حديث ثابت دے۔**

(٦٥) – ومن العجب والتناقض : انهم استدلوا بالحديث ( تعاد الصلوة من قدر الدرهم من الدم) وفي لفظ ( اذا كان في الثوب قدر الدرهم من الدم غسل الثوب واعيدت الصلوة، اخرجه الدارقطني في سننه (١/١٥٤) والبيهقي (٢/٤٠٤) على ان النجاسة المغلظة معفو عنها عندهم اذا كانت اكثر من قدر الدرهم كما في الهداية (١/٧٤)

فخالفوا الدليل مع ان الحديث موضوع، في سنده روح بن غطيف وهو متروك وقال البخاري : هذا حديث باطل وروح هذا منكر الحديث وقال الزيلعي : في نصب الراية (١/٢١٢) قال ابن حبان هذا حديث موضوع لاشك فيه لم يقله رسول الله ﷺ بل اخترعه بعض اهل الكوفة : الضعيفة (١/١٨٠، رقم (١٤٩)۔

**دوی وائی حديث کښې دی : چه د يو روپۍ په مقدار وينه په جامه يا بدن وی نو مونځ ورسره نه کيږی او راګرځولے به شي او بيا ئے ددے حديث خلاف کړيدے او وائی چه نجاست مغلظه چه د روپۍ نه زيات وی نو معاف دے حال دا چه دا حديث هم موضوع دے۔**

(٦٦) – ومن العجب : انهم قالوا : استماع الملاهي معصية والتلذذ بها كفر ثم قالوا : الرجل اذا كان مطرباً مغنياً اعطى بغير شرط قالوا : يباح له ذلك وان كان يأخذه على شرط رد المال على صاحبه كما في قاضي خان (٢/٣٦٤) كتاب الحظر۔

**وائی : تهنګ تکور اوريدل ګناه ده او ددے نه خوند اخستل کفر دے او بيا وائی : کله چه يو سړے ډم او سندر غاړے وی نو هغه ته**

بغير د شرط نه پيسے ورکول جائز دی او هغه له ئے اخستل جائز دی او که شرط په کښ لګوی نو بيا به مالك ته بيرته مال واپس کوی ـ نو دے تناقض ته هم فکر کوه ـ

(٦٧) – ومن العجب : ان رسول الله ﷺ صلى صلاة الاستسقاء وحول فيها الرداء وخطب فيها كما اخرج ذلك البخارى (١٣٩/١) وغيره وقال ابوحنيفة : لا صلاة فى الاستسقاء ولا تحويل الرداء ولا خطبة فتدبر ! ـ

رسول الله ﷺ په استسقاء کښ مونځ هم کړيدے او څادرئے هم اړولے دے او خطبه ئے هم وئيلے ده او امام ابو حنيفه وائى : په استسقاء کښ دا درے واړه کارونه نشته ـ

(٦٨) – ومن العجب : ان رسول الله ﷺ حرم المدينة ما بين عير الى ثور لا يقطع شجرها ولا يصيد فيها كما فى كتب السنة والاحاديث فيه متواترة راجع المشكاة (٢٣٨/١) وقالت الحنفية : لاحرم للمدينة واستدلوا بحديث مجمل وهو : يا ابا عمير ما فعل النغير،، راجع ابن ابى شيبة (٢٠١/١٤) ـ

رسول الله ﷺ فرمائى : مدينه حرم دے او احناف وائى : مدينه حرم نه دے ـ

(٦٩) – ومن العجب : انهم انكروا صلاة العشاء وقالوا : انها لا تجب على اهل المغرب الذين لايجدون وقتها كما فى الكنز (٣١/١) والرسول ﷺ قال : فاقدروا له اخرجه مسلم يعنى اذا لم تكن وقت الصلاة وطال النهار فى زمن الدجال فاقدروا للصلوات والله تعالى فرض على جميع الأمة خمس صلوات ولم يستثن من

ذلك احداً واحاديث المعراج كثيرة معلومة ۔

**وائی : په مغرب والو باندے د ماسخوتن مونځ او وتر نشته ځکه دوی د هغے وخت نه مومی او حال دا چه رسول الله ﷺ فرمائی : تاسو به وخت ددے دپاره مقرروئ په زمانه د دجال کښ دارنګه حدیث دے چه پنځه مونځونه فرض دی ۔ او دا حکم هر چا ته دے ۔**

(۷۰) – ومن العجب : ان الرسول ﷺ قال : من ذرعه القیئ فليس عليه قضاء ومن استقاء عمداً فليقض، اخرجه الترمذی (۱/۲۱۹)، المشكاة (۱/۱۷٦) ۔

وفی رواية : فلا يقض : كما فی الصحيحة (۲/٦۲۹) وقالت الحنفية : لا عبرة لذلك بل العبرة للقليل، والكثير مع ان الحديث لم يفرق بين القليل والكثير والفارق هو العمد وعدمه۔

**رسول الله ﷺ فرمائی چا له چه په روژه کښ قیء (التهئ) راغلو نو هغه باندے قضاء نشته او که قصدا قیئ اوکړی نو قضاء به راوړی ۔**

**او احناف وائی : دے له اعتبار نشته بلکه لږ او ډیر له اعتبار دے۔**

(۷۱) – ومن العجب العجاب : ان صاحب الهداية (۱/۹۳) – قال فی بيان العورة لقوله عليه السلام : المرأة عورة مستورة، قال : وهذا تنصيص على ان القدم عورة ويروىٰ عن ابی حنيفة انها ليست بعورة وهو الاصح ۔

فتدبر فی هذا، فانه قدم قول ابی حنيفة على قول الرسول ﷺ مع ان الحديث لم يثبت بهذا اللفظ ورد على قول صاحب الهداية عبد الحی فی حاشيته ۔

**ډیره عجیبه خبره دا هم ده چه هدایه مولا وائی : د نبی علیه**

السلام قول دے ښځه عورتِ مستوره دے، بیا وائی دا حدیث نص دے په دے خبره چه قدم د ښځے عورت دے او د ابو حنیفه نه روایت دے چه دا عورت نه دے او دا خبره ( د ابو حنیفه) ډیره صحیحه ده ۔
نو ته اوګوره چه د امام ابو حنیفه قول ئے د رسول الله ﷺ په قول باندے مقدم کړو سره ددے نه چه دا حدیث پدے الفاظو ثابت نه دے لکه پدے خبره په حاشیه کښ عبد الحی لکهنوی هم رد کړیدے ۔

(۷۲) – ومن العجب : انهم قالوا : المرأة اذا صلت و كشف اقل من ربع ساقها او ربع فرجها او اقل من ربع الذكر فصلاتها صحيحة وقال ابويوسف لو كشف نصف ذلك جاز، كما فى الهداية (۱/۹۳،۹٤) فتدبر اين الدليل لهذه الارباع والاثلاث والانصاف التى جعلوها قاعدة كلية فى جميع احكام الشرع ۔

وائی : ښځه چه کله مونځ کوی او د هغے د پونډۍ د څلورمے حصے نه کم ښکاره شی یا څلورمه حصه د فرج یا کم د څلورمے حصے د ذکر ښکاره شی نو مونځ ئے صحیح دے ۔ او ابویوسف وائی : که نیمائی حصه ددغه ځائے ښکاره شی نو جائز دے ۔
نو ددے اندازو نه ئے د دینی احکامو قاعدے جوړے کړیدی او هیڅ دلیل ئے ندے پیش کړے ۔

(۷۳) – ومن العجب : ان الرسول ﷺ قال : كما روى الشيخان عن النعمان بن بشير ان اباه أتى به الى رسول الله ﷺ فقال : انى نحلت ابنى هذا غلاماً فقال : أكلّ ولدك نحلت مثله قال : لا! قال : فارجعه وفى رواية : قال : فاتقوا الله واعدلوا بين اولادكم وفى رواية انه قال : لا اشهد على جور وانظر المشكاة (۱/۲٦۱) ۔

وقالت الحنفية وغيرهم : لايجب العدل بين الاولاد فخالفوا نص الرسول عليه السلام من غير دليلٍ كما فی حواشی المشكاة وفتح الباری۔

**نعمان بن بشیر لره خپل پلار رسول الله ﷺ ته راوستو چه ما دے ځوی (نعمان) ته یو غلام هبه کړے دے، نو رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل : آیا تهولو اولادو ته دِے دده په شان هبه ورکړے ده ؟ هغه اووئیل : نه ! نبی علیه السلام هغه ته اوفرمائیل : دده نه ئے واپس واخله بل روایت کښ دی : د الله نه یره کوئ او د اولادو ترمینځ عدل کوئ، او بل روایت کښ دی چه نبی علیه السلام اوفرمائیل : زه په ظلم باندے ګواهی نه کوم۔**

**او ددے په خلاف احناف وغیره وائی : د اولادو ترمینځ عدل واجب نه دے نو بے دلیله ئے د رسول الله ﷺ د نص خلاف اوکړو۔**

(٧٤) – ومن العجب : ان الرسول ﷺ قال : كما روى الترمذی وابوداود وابن ماجه المشكاة (٢/٢٧٤) عن الضحاك بن فیروز الدیلمی عن ابیه قال : قلت یا رسول الله ! انی اسلمت وتحتی اختان قال : اختر ایتهما شئت وقال ابو حنیفة : ان تزوجها متعاقبتین لایختار الا الأولیٰ لعدم صحة نكاح الاخری اذ ذاك فتدبر الیس هذا تقدیم بین یدی الله ورسوله۔

**فیروز الدیلمی رضی الله عنه فرمائی : ما رسول الله ﷺ ته اووئیل : زما په نکاح کښ دوه خویندے دی نو هغه ورته اوفرمائیل : هره یوه چه غواړے خوښه ئے کړه (او بله پریده) او امام ابوحنیفه فرمائی : که دواړه خویندے ئے یو بل نه روستو نکاح کړے وے (یعنی په یو ځائے ئے نکاح نه وه کړے) نو اوله به غوره**

کوی نه دویمه ځکه د دویمې نکاح نه ده شوې ۔ نو دلته د حدیث خلاف شویدې مګر امام ابو حنیفه پدې ګنا هګار نه دې ځکه هغه ته حدیث نه دې رسیدلې خو که احناف پدې عمل کوی نو د حدیث مخالف به شی ۔

(۷٥) – وعن نوفل بن معاوية قال : اسلمت وتحتى خمس نسوة فسألت النبی ﷺ فقال : فارق واجدة وامسك اربعاً فعمدت الى اقدمهن صحبة عندى عاقر منذ ستين سنة ففارقتها، رواه فی شرح السنة المشكاة (۲/۲۷٤) وخالف الحنفية هذا الحديث فقالوا لايفارق الا الاخيرة كما فی المرقاة ۔

نوفل بن معاويه رضی الله عنه وائی : زه چه مسلمان شوم نو زما په نکاح کښ پنځه ښځې وې نو ما د نبی علیه السلام نه تپوس اوکړو، هغه اوفرمائیل : يوه پريده او څلور اوساته نو ما اراده اوکړه د اولنئ ښځې چه ما سره د شپيتو کالو نه په نکاح کښ وه او شنډه وه نو د هغې نه جدا شوم ۔

ددې په خلاف احناف وائی : اختيار نشته بلکه د اخيرنئ ښځې نه به جدا کیږی ۔

(۷٦) – ومن العجب : ان الرسول ﷺ قال : ليس فيما دون خمسة اوسق من التمر صدقة الحديث اخرجه الشيخان المشكاة (۱/۱٥۸) وقالت الحنفية لا بل يجب العشر فی القليل والكثير فخالفوا نص الرسول عليه السلام ۔

نبی علیه السلام فرمائی : په کجورو کښ د پنځو وسقو نه کم کښ زکات نشته ۔ او احناف وائی : نه بلکه عشر په لږ او ډیر کښ

**واجب دے نو د صريح حديث خلاف ئے اوکړو ۔**

(۷۷) – ومن العجب : ان قاضيخان (٤/٣٨٢) قال :

رجل اغتاب اهل قرية فقال اهل هذه القرية كذا لم يكن ذلك غيبة لانه لا يريد به جميع اهلها و كأن المراد هو البعض وهو مجهول، وقد قال عليه السلام : ان اعظم الناس فرية لرجل هاجى رجلاً فهجا القبيلة باسرها ورجل انتفى من ابيه وزنى امه، اخرجه ابن ماجه رقم (٣٧٦١) بسند صحيح كما فى الصحيحة رقم (٧٦٣) واخرجه ابن حبان رقم (٢٠١٤) والبخارى فى الادب المفرد (١٢٦) ۔

**وائى : يو سړى د يو کلى والو غيبت اوکړو او داسے ئے اووئيل چه ددے کلى والا داسے دى نو دا غيبت نه دے ځکه دے پدے سره ټول کلى والا نه اراده کوى بلکه مراد بعض خلق دى او هغه نامعلومه دى ۔ او حال دا چه نبى عليه السلام فرمائى : د خلقو نه لوئى افتراء والا هغه سړے دے چه د يو سړى بدى بيانولو سره د ټولے قبيلے بدى بيان کړى الخ ۔**

(۷۸) – ومن العجب : ان تحديد المسافة بين القدمين فى القيام بمقدار اربعة اصابع بدعة ومع ذلك هؤلاء يدينون بها كما فى الخلاصة الكيدانية وغيرها ۔

**وائى : مونځ کونکے به د دوه قدمونو ترمينځ فاصله د څلورو ګوتو په اندازه ساتى ۔ او حال دا چه ددے مسافت تحديد بدعت دے هيڅ ثبوت ئے نشته بلکه دليل ددے په خلاف دے ۔**

(۷۹) – ومن العجب : ان الاشارة بالمسبحة فى التشهد ثبتت فى السنة المتواترة ومع ذلك انكرها الحنفية فى رواية واثبتها الحنفية فى

روایة ومع ذلك قالوا : یرفعها عند النفی ویضعها عند الاثبات وذلك بدعة بل السنة ان یرفعها من اول التشهد الی آخره كما فی تمام المنة وصفة الصلاة للالبانی۔

**عجیبه دا ده چه وائی : اشاره په مسواکئ گوته نه ده ثابته او په بل روایت د احنافو کښ دی چه ثابته ده او بیا وائی چه د نفی ( لا اله ) په وخت به ئے پورته کوی او په اثبات ( الا الله ) کښ به ئے خکته کوی او حال دا چه په سنت متواتره کښ اشاره په مسواکئ گوته ثابته ده او احناف په یو روایت کښ ترے منکر دی او بیا په نفی او اثبات کښ پورته کول او خکته کول بدعت دے بلکه سنت دا دے چه ابتداء د تشهد نه به ئے پورته کوی ۔**

(٨٠) – ومن العجب انهم قالوا : لو وطئ الرجل امة وهی علیه حرام برضاع او صهریة لاحد علیه وان قال : علمت انها علیّ حرام كما فی قاضیخان (٤٠٧/٤) ۔

**وائی : که یو سړے یوه وینځه چه په هغه باندے د رضاعت یا سخرگنئ په وجه حرامه وی – وطی اوکړی نو په ده باندے حد نشته اگرکه وائی چه ما ته پته وه چه دا په ما باندے حرامه وه ۔**

(٨١) – ومن العجب العجاب : انهم قالوا : الحربی المستأجر اذا زنی فی دارنا بمسلمة او ذمیة لاحد علیه وتحد المرأة،

والرسول ﷺ قد رجم اهل الكتاب بزناهم، أفلیس فی هذا عبرة لاولی الالباب، فعلی هذا یأتی الهنود والسیخ واهل المغرب الی بلادنا فیوطئون نساء المسلمین بتؤدة وطمانینة لانهم لا یخافون الله وقد اسقطتم عنهم الحد ایضاً فلا مانع لهم من ذلك فاحتفظوا

بنسائکم راجع قاضی خان (٤/٤٠٧) ـ

وائی : حربی مستاجر کله چه زمونږ په دار اسلام کښ د یوے مسلمانے یا ذمیه سره زنا اوکړی نو په هغه باندے حد نشته او ښځه باندے حد دے ـ او حال دا چه رسول الله ﷺ اهل کتاب په زنا باندے رجم کړیدی نو پدے کښ د عقلمندو دپاره عبرت دے ـ

بیا خو به هندوان سیکان او غربیان زمونږ د مسلمانانو ملك ته راځی او د مسلمانانو ښځو سره به ښه په آرام بے خطرے زناګانے کوی ځکه هغوی خو د الله نه نه یریږی او تاسو خو ترے هسے هم حد ساقط کړو نو بس زنانو سره به زناګانے ښه په جوق درجوق سره کوی او حد به پرے نه وی آیا دا اسلام دے !! ـ

(۸۲) – ومن العجب : انهم صنعوا مسائل فی مصانعهم التی وضعوها فی بیوتهم ثم یخرجون ایاها الینا فیقولون : اذا شهد اربعة رجال بزنا رجل، فاقرّ الرجل بعد شهادتهم بالزنا ثم انکر ولم یقر اربع مرات لاحد علیه، قاضی خان (٤/٤٠٨) ألیس هذا من العجب فانه لا عبرة باقرار الرجل ولا بانکاره بعد الشهود والعدول الاربعة فی نصوص الشریعة، راجع الاعلام (۲/۳۳٦) ـ

عجیبه لا دا ده چه دوی په خپلو کارخانو کښ مسائل جوړ کړی بیائے مونږ ته راوباسی وائی : کله چه د یو سړی په زنا باندے څلور کسانو سړو ګواهی اوکړه، او سړی د هغوی د ګواهئ نه پس اقرار د زنا اوکړو بیا منکر شو او څلور کرتے ئے اقرار اونه کړو نو په ده باندے حد نشته ـ نو دا څو مره غلطه مسئله ده ځکه د ګواهانو د ګواهئ نه پس د سړی اقرار او انکار لره په شریعت کښ هیڅ

اعتبار نشته ـ

(٨٣) – ومن العجب : انهم قالوا : لو ان الاخرس العاقل البالغ أقر بالزنا اربع مرات في كتاب كتبه او اشارة لايحد، مع ان الشرع المطهر جعل اشارته و كتابته مثل صريح الكلام فلم لا تحدونه وتحدون الاعمىٰ الذى دعى امرأته الى فراشه فاجابته غيرها فجامعها، مع انه معذور، راجع قاضى خان (٤/٨٠٤) ومع انهم قالوا : لو طلق الاخرس بالاشارة يقع طلاقه فيا للعجب راجع البخارى (٢/٧٩٨-٧٩٧) مفصلاً ـ

**وائى : كه يو چاړا عاقل بالغ څلور كرتے په زنا اقرار اوكړى په يو خط كښ ئے اوليكى يا ئے په اشاره اوكړى نو ده باندے حد نشته ـ حال دا چه شريعتِ مطهره د هغه اشاره او ليكل د صريحو خبرو په شان ګرځولے ده نو ولے ورته حد نه وركوى ؟ او حال دا چه يو ړوند سړى خپله ښځه بسترے ته راوغوښته او پردئ ښځه ورله راغله او هغے سره ئے جماع اوكړه نو تاسو ورته حد وركوئ سره ددينه چه ړوند معذور دے ـ**

**دارنګه بيا ددے مخالف خبره كوى وائى چه كه چاړا په اشارے سره طلاق وركړل نو طلاق ئے واقع دى ـ**

(٨٤) – ومن العجب البديع : ان صاحب الهداية قال : (١/١٢٣) : ويكره للنساء ان يصلين وحدهن الجماعة لانها لا تخلو عن ارتكاب محرّم وهو قيام الامام وسط الصف فيكره كالعراة فنقول : ادعيت الكراهة فيها وذكرت دليل تحريمها فلا يطابق الدليل مع الدعوىٰ وهكذا يفعله صاحب الهداية وغيره فى اكثر المواضع ـ

وايضاً من قال ؟ ان جماعة النساء مكروهة، أليست أم سلمة وعائشة وام ورقة صلين الجماعة في عهد رسول الله ﷺ كما ذكره ابوداود (۱/۱۱۷) رقم (۵۹۱) وابن ابی شيبة (۲/ ۸۸، ۸۹) والمحلى (۳/۱۳۵) ۔

ومن قال ان قيام النساء اذا كانت امرأة يحرم قيامه وسط الصف ؟ بل بذلك وردت الآثار، فالشرع المطهر جاء بالامرين ان يتقدم الرجل اذا كان اماماً واذا كانت امرأة تقوم وسطهن فاين جاء المحرم ثم يجيب صاحب الهداية فيقول : وما فعلته عائشة كان فى ابتداء الاسلام ۔ فنقول : وهذا جوابكم المعروف عن النصوص الصريحة التى تأتى بخلاف قولكم ۔

ايها القارى تدبر بالانصاف أليس هذا من العمى و التقليد الجامد فان عائشة تزوجها رسول الله ﷺ فى المدينة وزفت اليه و كانت بنت تسع سنين، وتوفى عنها وهى بنت ثمانى عشرة سنة ۔

فان قلت : انها كانت تؤم حين كان عمرها تسع سنين او عشر فقولك هذا ترده انت بنفسك وتقول لا يصح امامة الصبى حتى فى النوافل فكيف امت هى ۔

وان قلت : انها امّت بعد ما بلغت فعند ابى حنيفة المرأة تبلغ بسبع عشرة سنة لاسيما النساء التى غذائهن قليل مثل عائشة فعلى هذا امت عائشة قبل وفاة رسول الله ﷺ بسنة فكيف كان هذا فى اول الاسلام، فيا ايها المسلمون اتركوا التقليد الجامد الذى يجهل الانسان ويحرمه عن لذة التحقيق والعرفان ۔

ونقول ايضاً : ماذا تجيب عن حديث ام ورقة التى امرها النبى ﷺ

ان تـؤم اهل دارها وكانت تؤم بعد وفاة رسول الله ﷺ كما يدل عليه حديث ابی داود فهل كان ذلك فی ابتداء الاسلام ۔ والله المستعان ۔

ناشنا خبره دا ده چه صاحب هدایه وائی : یواځے ښځو لره جَمعه کول مکروه دی ځکه پدے کښ حرام کار کیږی او هغه دا چه د دوی امام به مینځ د صف کښ اودریږی نو دا داسے مکروه دی لکه د بربنډو جمعه چه مکروه ده ۔

نو اوګوره د ښځو جماعت ته ئے مکروه اووئیل او حال دا چه ام سلمه او عائشه او ام ورقه به ښځو ته جَمعے کولے په زمانه د رسول الله ﷺ کښ ۔

دارنګه دا چا وئیلی دی چه د ښځو امامه مینځ د صف کښ اودریدل حرام دی بلکه دا بعینه په آثارو کښ راغلیٰ دی نو شریعت دواړه خبرے جائز کړیدی او هدایه مولا یو ته مکروه وائی او بل ته حرام ۔دارنګه هدایه مولا بیا جواب ورکوی چه د عائشے عمل په ابتداء د اسلام کښ وو ۔ مونږ وایو : څه دلیل دے چه دا په ابتداء د اسلام کښ وو ناسخ ئے څه دے ؟ خو نصوص د ځان نه اړول او د خپل مذهب دفاع کول د مقلدینو کار دے دا هغه ړوند تقلید دے چه انسان ګمراهئ ته رسوی ځکه عائشه رضی الله عنها چه کله رسول الله ﷺ ته په مدینه کښ واده شوه نو د هغے عمر نهه کاله وو او کله چه ترے رسول الله ﷺ وفات شو نو د هغے عمر اتلس (۱۸) کاله وو (نو دا خو ابتداء د اسلام نه شو ) نو که په نهه یا لس کلنئ کښ ئے دا امامت کړے وی نو تاسو خو وایئ چه د ماشوم امامت اګرکه په نوافلو کښ وی صحیح نه دے او که هغے پس د

بلوغ نه امامت کړے وی نو د امام ابو حنیفه رایه خو دا ده چه زنانه په اولس (۱۷) کالو وخت ته رسی خاصکر هغه زنانه چه د هغوی خوراك كم وی لکه د عائشے په شان نو پدے لحاظ سره عائشےؓ د رسول الله ﷺ د وفات نه یو کال مخکښ امامت کړے دے نو آیا دیته ابتداء د اسلام وئیلے شی ؟ دا کوم عقل دے !۔ هدایه مولا صرف د جوابونو یو بوجئ تیاره کړے ده چه حدیث راشی خامخا به د هغے نه جواب کوی ۔ ځکه بیا مذهب حنفی خرابیږی ۔

دارنګه مونږ وایو هدایه مولا به د ام ورقه رضی الله عنه حدیث سره څه کوی چه هغے ته رسول الله ﷺ حکم اوکړو چه ته خپلے محلے والو ته امامتی کوه نو هغے به د رسول الله ﷺ د وفات نه بعد هم دغه امامت کولو لکه حدیث د ابوداود پدے ګواه دے نو آیا دا هم ابتداء د اسلام دے ؟ ۔

اے مسلمانانو ! دا تقلیدونه پریدئ والله چه دا ګمراهی ده کلا سوف تعلمون ثم کلا سوف تعلمون ۔

(۸۵) – ومن العجب : بیانهم مسئلة محاذاة المرأة التی لا سند لها ولا دلیل مع ان صاحب الهداية قال : فیها حدیث مشهور وهو قوله اخروهن من حیث اخرهن الله،

فنقول : کذبت هذا حدیث لا یعرف مرفوعاً البتة کما فی نصب الراية والدراية والسلسلة (۲/۳۱۹) وفتح الباری (۱۶۹) بل هو موقوف کما رواه عبد الرزاق کأن صاحب الهداية لایعرف تعریف الحدیث المشهور او هو مقلد متعصب وذکروا لتلك المسئلة شروطاً لا دلیل علی واحد منها فتدبر ۔

دوی مسئله د محاذات المرأه بیانو ی (یعنی ښځه چه د سړی سره په صف کښې نزدے اودریږی نو د سړی مونځ فاسد دے که امام د ښځے د امامتیٔ نیت کړے وی او د ښځے مونځ فاسد دے که امام د هغے د امامت نیت نه وی کړے) او حال دا چه دا مسئله هیڅ دلیل او سند نه لری او صاحب هدایه وائی پدے باره کښې مشهور حدیث دے : اخروهن من حیث اخرهن الله مونږ وایو : دا حدیث بالکل مرفوع ندے ثابت بلکه دا د عبد الله بن مسعود موقوف حدیث دے پاتے لا دا چه دا دِ مشهور حدیث شی بیا ددے مسئلے دپاره شرطونه بیانوی خو په هغے یو باندے هم دلیل نشته ۔

(۸٦) – ومن العجب : ان صاحب الهداية قال : فی (٤/٤٥٩) كتاب الكراهية انه يجوز مصافحة العجائز الاجنبيات ويجوز ان تمرّض الرجل وتغمز رجله وتفلى رأسه كأنها زوجته، وقال : وقد كان ابوبكر وابن الزبير يفعلان ذلك ۔

اقول : الرسول ﷺ لم يصافح امرأة اجنبية لا عجوزة ولا شابة واما نقلك عن الصحابة فلم يوجد لذلك اثر كما قاله الزيلعی فی نصب الراية (٤/٢٤٠) ۔

وايضاً قال صاحب الهداية (١/١٢٦) ولا بأس للعجوز ان تخرج فی الفجر والمغرب والعشاء وهذا عند ابی حنيفة، ولا تخرج فی الظهر والعصر، لان فرط الشبق حامل على الوقاع فتقع الفتنة بخروجها فی هذين الوقتين هذا حاصله ۔

واعجب من ذلك ما فی فتاوی العالمكيرية (٥/٣٢٩) :

لا بأس بان يعانق العجوز من وراء الثياب الا ان تكون ثيابها

تصف ما تحتها ۔

فتدبر ! کیف اباح لها ان تغمز الرجل الاجنبی ویعانقها الرجل الاجنبی وتصافحه وهناك لا خوف، وههنا فی خروجها للصلاة فتنة وهذا من العجب مع الکذب علی الصحابة ۔

وقال : فی السراجیة (۷۲) ولا بأس بان تغمز الامة الاجنبیة للرجل فوق الثیاب اذا لم یکن فیه خوف الفتنة ۔

اقول : وهل یمکن عدم الخوف فی مثل هذه الصورة اذا کان الرجل ذا شهوة وهل اباح الشرع ذلك کلاّ واللّٰه ! ۔

هدایه مولا وائی : اجنبی بوډئ ګانو سره مصافحه کول جائز دی او د سړی علاج هم کولے شی او د سړی خپو باندے چونډارے هم لګولے شی او د سړی د سر نه سپږے راویستل ورله هم جائز دی ګویا کښ دا ئے ښځه ده بیا وائی ابوبکر صدیق او ابن الزبیر به دا کار کولو ۔

مونږ وایو : رسول اللّٰه ﷺ هیڅ اجنبی ښځے سره مصافحه نه ده کړے که څوانه وی او که بوډئ او هر چه د صحابه کرامو نه ستا نقل کول دی نو د هغے په باره کښ هیڅ ثبوت نشته لکه زیلعی حنفی دا خبره کړیده ۔

دارنګه هدایه مولا وائی : بوډئ ګانے که سبا او ماښام او ماسخوتن مانځه ته اوځی نو د امام ابوحنیفه په نزد هیڅ باك نشته خو په ماسپښین او مازیګر کښ به نه وځی څکه پدے وخت کښ شوق زیات وی نو دا په جماع باندے انسان آماده کوی نو پدے دوه وختونو کښ په وتلو کښ فتنه ده ۔

ددينه ډيره عجيبه خبره په فتاوی عالمگيری کښ ده : وائی : د جامو نه اخوا بو ډئ گانو ښځو ته په غاړه ورکولو کښ هيڅ باك نشته مگر که د نيمائی نه لاندے جامے وی نو بيا به غاړه نه ورکوی ۔

نو اوگوره اول وائی بوډئ گانے پردی سړی باندے چونډارے هم لگولے شی او سر هم ورله غوښتے شی او بيا وائی دوه وختونو کښ به مانځه ته نه وځی ځکه فتنه پيدا کيږی نو دے تعارضاتو ته فکر کوه آيا دا به څه شريعت وی ؟ دارنگه په صحابه کرامو باندے په کښ دروغ هم اووئيل شو چه هغوی به داکار کولو حال دا چه ددے هيڅ ثبوت نشته ۔

فتاوی سراجيه کښ وائی : که پردئ وينځه په يو سړی باندے د جامو دپاسه چونډاره اولگوی نو که يره د فتنے نه وی نو پدے کښ هيڅ باك نشته ۔

دے عقل ته اوگوره کله چه يوه ښځه او سړے شهوت والا وی او په يو بل چونډارے لگوی نو آيا پدے صورت کښ دا امکان شته چه خوف به نه وی؟ او آيا شريعت پدے کار کښ اجازت ورکړے دے؟ دا ټول د خپلے خيټے خبرے دی والله که دا شريعتِ محمدی وی ۔

(۸۷) – ومن العجب : ان المتفقهة قالوا : لا يجب القرائة فی الركعتين الأخريين، بلا دليل ثم قالوا : كما فی الهداية (۱۲۸/۱) قبيل باب الحدث فی الصلاة : ولو استخلف الامام امياً فی الركعتين الاخريين فسدت وقال زفر لا تفسد لتأدی فرض القرائة ولنا ان كل ركعة صلاة فلا تخلی عن القرائة اما تحقيقاً او تقديراً ولا تقدير فی حق الامی لانعدام الاهلية الخ فتعجب من التناقضات ۔

وائی : په آخری دوه رکعتونو کښې قرائت واجب نه دے دا خبره بے دلیله کوی او بیا هدایه کښې وائی : که یو امام امی سړے په آخری دوه رکعتونو کښې خلیفه جوړ کړی نو مونځ فاسد دے او امام زفر وائی ندے فاسد ځکه فرض قرائت اداء شویدے او ځان دپاره دا دلیل بیانوی چه هر رکعت مونځ دے نو دے کښې به ضرور قرائت کولے شی یا تحقیقا یا تقدیرا او د امی په حق کښې تقدیر قرائت نشی کیدے ځکه هغه اهل د قرائت نه دے۔

نو دے تناقضاتو ته فکر کوه آیا شریعت داسے وی ؟ ۔

(۸۸) – ومن العجب : انهم یضعون اصلاً ثم یهدمونه من اسه، فکأنهم الشارعون ینسخون ما شاءوا ویثبتون ما شاءوا ومثال ان صاحب الهدایة (٤/٤٤٢) قال :

الرأی لایهتدی الی المقادیر یعنی ان بیان مقدار العبادات والاوقات انما هو الی الشارع لا مدخل للرأی فیه ونحوه فی (۱ ) وهو قول صحیح واصل اصیل ولکنهم خالفوه فی عامة الاحکام فقدروا فی مسح الخفین مقادیر کثیرة لا دلیل علیها وکذا فی مسح الرأس ومدة الحیض اقله واکثره والطهر المتخلل وفی نجاسة ربع الثوب وقدر الدرهم وعشراً فی عشر وفی مسائل وقوع النجاسة فی الآبار وکذا فی احکام کثیرة فتدبرها فخالفوا هذا الاصل۔

دوی اول یو اصل او قاعده مقرر کړی بیائے بیرته د بیخ نه اوباسی ګویا کښې دوی شارعان دی چه څه غواړی هغه به منسوخ کوی او چه څه غواړی هغه به ثابتوی او ددے مثالونه دا دی :

هدایه مولا وائی (٤) : د عبادات او اوقاتو د اندازو او مقادیرو

بیان په رأیه سره نشی کیدے بلکه اندازے به شارع مقرروی ( نو دا صحیح قاعده ده ) لیکن دوی بیا په عام احکامو کښ ددے خلاف کوی نو په مسح د موزو کښ ډیرے اندازے د ځان نه مقرر کړیدی دارنګه په مسح د سر کښ ئے مقدار الناصیه د ځان نه مقرر کړیده نبی علیه السلام په ټول سر مسحه کړیده او د حیض اقله او اکثره موده دپاره ئے حد مقرر کړیدے او ددے په باره کښ هیڅ صحیح حدیث نشته او طهر متخلل دپاره د ځان نه اندازے مقرروی او د جامو د پلیتئ دپاره ئے ربع الثوب حد مقرر کړو او د نجاست د معافئ دپاره ئے قدر الدرهم اندازه مقرر کړه او د اوبو د نجاست د پاکوالی دپاره ئے عشر فی عشر حد مقرر کړیدے او د کوهیانو د صفائی دپاره ئے د ځان نه اندازے مقرر کړیدی ۔

(۸۹) – ومن العجب : ان الطمانینة فی الصلاة فرض لا تصح الصلاة بدونها لقوله علیه السلام : لا تجزئ صلاة لایقیم الرجل فیها صلبه فی رکوعه وسجوده، وقوله لمن ترکها : ( صل فانك لم تصل ) وقوله : ( ثم ارکع حتی تطمئن راکعاً ) فنفی جواز اجزائها بدون الطمانینة ونفی مسماها الشرعی بدونها وامر بالاتیان بها ۔

فجاء هؤلاء فقالوا : لا یجب ذلك بل هی سنة، من ترکها جازت صلاته واستدلوا بان الرکوع والسجود فی القرآن مطلق، فتعجب کیف اسقطوا بیان الرسول ﷺ واخذوا قول فلان وفلان، راجع اعلام الموقعین (۲/۳۰۵) وانظر الهدایة (۱) والمرقاة ۔

په مانځه کښ طمانینت او اعتدال په ارکانو کښ فرض دے ددے نه بغیر مونځ صحیح نه دے لکه حدیث کښ دی : هغه

مونځ صحیح نه دے چه سړے په کښ په رکوع او سجده کښ ملا برابره نه کړی الخ

او دوی وائی : اعتدال او طمانینت واجب نه دے بلکه دا سنت دے ددے نه بغیر هم مونځ صحیح دے، دلیل دا وائی چه رکوع او سجده په قرآن کښ مطلق ذکر دی د نبی علیه السلام بیان ته ئے ضرورت نشته ـ نو اوګوره د پیغمبر بیان ته ئے دغه درجه ورکړه چه د درجے د فرضیت او وجوب نه ئے ګوزار کړو ـ

(۹۰) – ومن العجب : ان الرسول ﷺ قال : فی الحدیث الصحیح : ذکوة الجنین ذکاة امه رواه ابوداود والدارمی ـ المشکاة (۳۵۸/۲) فزادوا فیه کاف التشبیه من عند انفسهم اخذاً لمیراث الیهود فی ازدیادهم النون فی الحطة فقالوا : ذکوة الجنین کذکوة امه وهذا تاویل فاسد یرده الحدیث الذی ذکره صاحب المشکاة (۲۵۸/۲) بعده متصلاً به فراجعه ـ

رسول الله ﷺ فرمائی : د حیوان ذبحه کولو سره دهغه په خیټه کښ بچے هم ذبح شو، نو دوی راغلل په هغے کښ ئے د ځان نه کاف د تشبیه زیات کړو او د یهودیانو میراث ئے واخستو چه هغوی حطه کښ نون زیات کړو حنطه ئے ترے جوړ کړو ـ

(۹۱) – ومن العجب : ان الفقهاء قالوا : لا تقام صلاة الجمعة الا فی مصر جامع ینفذ الحدود فیه وما یسع اکبر مساجدهم اهله ثم قالوا : ینعقد الجمعة بثلاثة او اثنین فکیف یکون هذا فتدبر وانظر الهدایة (۱۶۸/۱) (۱۶۹) ـ

فقهاء وائی : د جمعے مونځ به صرف په مصر جامع کښ اداء

کولے شي چه هلته حدوډ نافذ وي او يا هغه ځائے به قائمولے شي چه لوئی مساجدو کښ د هغه کلی خلق نه ځائيږی -

بيا ددے معارضه خبره کوی وائی چه د جُمعے مونځ په درے کسانو يا دوه کسانو هم منعقد کيږی نو آيا درے کسانو باندے لوئی مسجد ډکيږی څه ؟ -

(۹۲) - ومن العجب : ان اباحنيفة قال : الاشعار فی الابل بدعة مع ان السنة الصحيحة وردت بذلك فتأول قوله بعضهم بان المراد هو اشعار اهل الكوفة راجع السنن للترمذی (۱۸۱/۱) مفصلاً -

امام ابو حنيفه فرمائي : په اوښانو کښ اشعار ( وينه ويستل چه بيرته په حيوان باندے راخکلے شي او دا معلومه شي چه دا د حرم هديه ده ) کول بدعت دے سره ددينه چه دا په صحيح سنت کښ ثابت دی نو بعض خلقو ددے دا تاويل اوکړو چه امام صاحب د کوفے والو اشعار ته بدعت وئيلے دے -

(۹۳) - ومن العجب : ان صاحب الهداية (۱۷٦/۱) - قال : ليس فی الكسوف خطبة لانه لم ينقل ، وقد قال الامام البخاری (۱٤۲/۱) باب الخطبة فی الكسوف ثم ذكر حديث اسماء وعائشة رضی اللّٰه عنهما، انه عليه السلام خطب فيه -

واجاب الناكت : بانه لم ينقل بطرق مشهورة فهذه نكتة فاضحة لانها تدل على ان الحكم اذا لم يثبت بطرق مشهورة لا يعمل به -

وفيه من الفساد ما لا يعلم به الا اللّٰه -

هدايه مولا وائی : په کسوف ( د نمر د تندر نيولو په وخت مونځ ) کښ خطبه نشته ځکه دا نقل نه ده او حال دا چه امام

بخاري په دے باندے باب ایخودے دے او بیا ئے د اسماء او عائشے رضی الله عنهما حدیث راوړیدے چه نبی علیه السلام خطبه وئیلے ده ۔ نو نکتے والا اولیکل چه مراد دا دے چه دا په طرق مشهوره ؤ سره ندے نقل لیکن دا نکته د شرم نه ډکه ده ځکه چه ددے مطلب دا شو چه کله یو حکم په مشهور طرقو سره ثابت نه شی نو په هغه به عمل نه کیږی ۔

(۹٤) - ومن العجب : ان اباحنیفة قال : لیس فی صلاة الاستسقاء خطبة ولا جماعة ولا صلاة ولا قلب رداء لانه لم ینقل ذلك مع ان كتب الحدیث مشحونة بذلك راجع الهدایة (۱۷٦/۱) والبخاری (۱۳۹/۱) ۔

امام ابوحنیفه وائی : د استسقاء په مانځه کښ مونځ او خطبه نشته او نه پکښ جماعت شته او نه قلب رداء شته ځکه دا ندی نقل سره ددے نه چه د حدیثو کتابونه ددے نه ډك دی ۔

(۹۵) - ومن العجب : ان ابا یوسف انكر صلاة الخوف كما فی الهدایة (۱۷۰،۱) مع انه ورد النقل المتواتر به من لدن عهد رسول الله ﷺ الی یومنا هذا فمن الذی نسخه ؟ ۔

امام ابویوسف د صلاةِ خوف نه منکر دے سره ددے نه چه دا په تواتر سره مونږ ته رانقل شوے دے ۔

(۹٦) - ومن العجب : ان الفقه الحنفی فی اكثر مسائله خلاف بین ابی حنیفة وصاحبیه فاما ان یكون قوله الحق او قولهما لان الحق واحد فدل ذلك علی وقوع الخطأ الكثیر فی قولهم جمیعاً فتدبر هذا ۔

فقه حنفی کښ اکثرو مسائلو کښ د امام ابو حنیفه او

**صاحبينو اختلاف واقع دے نو يا به د امام ابو حنيفه قول حق وی يا به د صاحبينو نو حق خو يو دے معلومه شوه چه د دوی ډير اقوال په خطاء دی ـ**

(۹۷) – ومن العجب : انكار المالكية عن دعاء الاستفتاح والتعوذ والتسمية والتأمين للامام، مع ثبوت النقل بذلك فی احاديث كثيرة راجع المشكاة (۱/ ۷٤) ـ

**مالكيه په مانځه كښې دعاء د استفتاح او تعوذ او تسميه او د امام دپاره د آمين وئيلو نه منكر دی سره ددے نه چه دا ټول په احاديثو كښې نقل دی ـ**

(۹۸) – ومن العجب : ايجاب الشوافع التسمية فی اول الفاتحة لانها منها مع انه لم يرد النقل انه عليه السلام جهر بالتسمية مع توفر الهمم والدواعی ـ

**شوافعو د فاتحے په ابتداء كښې بسم الله وئيل واجب كړی دی ځكه چه تسميه د فاتحے نه ده او حال دا چه د رسول الله ﷺ نه د تسميه جهر نه دے ثابت ـ**

(۹۹) – ومن العجب : ان صاحب الهداية يقول : (۱/ ۱۷۸) : اذا احتضر الرجل وجّه الی القبلة علی شقه الايمن اعتباراً بحال الوضع فی القبر لانه اشرف عليه والمختار فی بلادنا الاستلقاء لانه ايسر لخروج الروح، والاول هو السنة ـ

فتعجب كيف يخالف السنة ولا يبالی، والسنة عندهم كأنه شیء تافهٌ بل اليسر والسهولة فی السنة ومن عمل بالسنة يسّر الله عليه الامر ـ

**هدايه مولا وائی : كله چه سړی ته مرګ نزدے شی نو مخ په**

قبلـه بـه ښـی طـرف باندے واچولے شی لکه څنګه ئے چه قبر کښ
ږدی څـکـه دا اشـرف حـال دے لیـکـن زمونږ په علاقو کښ سُتنی
ستـاق اچـول غـوره دی څکه چه پدے کښ روح آسانئ سره اوځی
او اول سنـت عـمـل دے ۔ نـو اوګـوره د سنت په مقابله کښ ئے بله
طـریـقـه غوره کړه او سنت ئے رد کړو سنت ورته یو معمولی (تافه)
شے ښـکـاره کیـږی حال دا چـه آسـانـی پـه سـنـت کښ او په عمل
بالسنت کښ ده۔

(۱۰۰) – ومـن الـعـجـب : ان الحدیث ورد فی ان الامام یقوم فی جنـازة الـرجـل عند رأسه ومن المرأة عند عجیزتها ۔ فیقول صاحب الهـدایة (۱۸۱/۱) تـأویـلـه : ان جنازتها لم تکن منعوشة فحال بینهم وبینها۔ فهذا التاویل غلط من وجوهٍ :

(۱) الاول : انـه صـدر عـن تعصب لانه روی نفسه عن ابی حنیفة فی تلك الصفحة انه عمل بالحدیث فی هذه المسئلة .

(۲) الـوجـه الـثـانـی : ان انساً قد صلّی علی رجل وامرأة فقام عند رأس الـرجل ووسط المرأة وقیل له هل فعل ذلك رسول الله ﷺ فقال : نعم، رواه الترمذی وغیره کما فی المشکاة (۱۴۷/۱) ۔

(۳) الـوجـه الثالث : ان جنازتها کانت منعوشة کما فی روایة ابی داؤد وحاشیة الهدایة۔

(٤) الـوجـه الـرابـع : قـد ثبت فی صحیح البخاری (۴۷/۱) باب الصلاة علی النفساء وسنتها عن سمرة بن جندب قال : ان امرأة ماتت فـی بـطـن فصلی علیها النبی ﷺ فقام وسطها فهذا رسول الله ﷺ قد قام وسط المرأة فهل یصح تأویلك هنا – کلا والله ۔

(٥) الـوجـه الـخـامـس : اذا كـان انـس ينظر الى المرأة فهل كان يجوز له ذلك ـ

(٦) – الـوجـه السـادس : او لـم يـكن عند الصحابة و التابعين ازار واحد يغطون به فرج المرأة الميتة وسوئتها وهل كانوا بخلاء ؟ ـ

فـلا يـعـقـل هـذا التاويل، بل هو تحريف و اكبر دليل على تعصب المقلدين للقول الضعيف دون ما عليه الدليل، والله المستعان ـ

**حـديـث كـښې راغـلـى د ى چـه امام به په جنازه د سړى كښې سر سره اودرېږى او د ښځې كوناتو ته به اودرېږى ـ**

**نـو هـدايـه مـولا ددے داسے تـاويـل كوى چه اصل كښې د ښځې جـنـازه بـانـدے نـعـش نه وو وهلے شوے پدے وجه رسول الله ﷺ د ښځې او د خلقو ترمينځ حائل واقع شو چه ښځه د سړو نه پټه كړى او حال دا چه دا تاويل د ډيرو وجوهو نه غلط دے :**

**۱ – اولـه وجـه : دا تـاويـل په تعصب بانـدے بناء دے ځكه هدايه مـولا پـخپـلـه د امام ابو حنيفه نه په دغه صفحه كښې نقل كړل چه هغه پدے مسئله كښې په حديث باندے عمل كړيدے ـ**

**۲ – دويـمـه وجه : انس په يو سړى او ښځه باندے جنازه اوكړه او دغـه شـان فـرق ئے اوكـړو نو هغه نه تپوس اوشو چه آيا دا كار نبى ﷺ كړيدے ؟ هغه اوفرمائيل : آو ـ (ترمذى)**

**۳ – دريـمـه : دا چه هغه جنازه منعوشه وه لكه حاشيه د هداد او روايت د ابوداود كښې ذكر دى ـ**

**٤ – څلـورمـه وجـه : بـخـارى كښې دى : يوه زنانه په نفاس كښې وفـات شـوه نـو نبى عـلـيـه السـلام پـه جـنازه د هغې كښې مينځ ته**

اودريدو نو دے عمل د رسول الله ﷺ سره به څه کوے آيا دلته هم تاويل کولے شے ؟ ۔

٥- کله چه انس زنانه ته ګورى نو آيا هغه دپاره دا نظر کول جائز دى څه ؟ ۔

٦- دا تاويل د عقل هم خلاف دے ځکه چه صحابه کرام او تابعينو سره آيا دومره جامه نه وه چه د مړى بدن ئے پټ کړے وے آيا هغوى بخلاء وو څه ؟ ۔نو دا تاويل تحريف دے اولوئى دليل دے په تعصب د مقلدينو د يو ضعيف قول دپاره چه هيڅ دليل پرے نشته ۔

(١٠١) - ومن العجب : ان الرسول ﷺ صلى الوتر على الراحلة وتقول الحنفية : لا يجوز ذلك وقد كان ابن عمر يصلى الوتر على الراحلة وقال : لقد كان لكم فى رسول الله ﷺ اسوة حسنة كما رواه مسلم (١/٢٤٤) ۔

احناف وائى : په سورلئ باندے وتر ندى جائز او حال دا چه رسول الله ﷺ او عبد الله بن عمر به په سورلئ باندے وتر کول او ابن عمر به فرمائيل : ستاسو دپاره په رسول الله ﷺ کښ ښائسته اقتداء شته ۔

(١٠٢) - ومن العجب : ان مدة الرضاعة بيّنها القرآن الكريم ( حولين كاملين لم اراد ان يتم الرضاعة ) فالله جعل مدة الرضاعة حولين، وهم يقولون : لا بل عامين ونصف او ثلاثة اعوام واستدلوا بقوله تعالى : ( وحمله وفصاله ثلاثون شهراً ) فوقعوا فى محظورين احدهما : انهم يشيرون الى التعارض والتناقض فى القرآن وهذا لا

يكون ابداً، والثاني : انهم ارادوا بالحمل في هذه الآية الحمل بالاكف، ثم استدلوا بهذه الآية نفسها، في اقل مدة الحمل انه ستة اشهر، وهذان التفسيران لايرادان معاً من هذه الآية بل الظاهر المعنى الثاني وهو الحمل في البطن فتدبر وتعجب وانظر الهداية (۲/)باب الرضاع ۔

**مده د رضاع قرآن كريم بيان كړيده چه دوه كاله دي او دوى وائي : نه بلكه دوه نيم كاله دي يا درے كاله دي استدلال كوى په حمله وفصاله آيت باندے نو په دوه نقصانونو كښې واقع شو يو دا چه دوى اشاره كوى تعارض او تناقض ته په قرآن كښې دويم دا چه دوى د حمل نه په آيت كښې حمل په لاسونو كښې اخلى او بيا پدے آيت باندے په اقله موده د حمل كښې استدلال كوى چه دا شپږ مياشتے دے او حال دا چه دا دواړه تفسيرونه په يو ځائے ددے آيت نه نشي اراده كولے بلكه ظاهر دويمه معنى ده چه حمل نه مراد حمل في البطن دے ۔**

(۱۰۳) – ومن العجب : انهم يقولون : لايجب النية في الوضوء كما في جميع كتب الفقه الحنفي مع ان الرسول ﷺ قال : انما الاعمال بالنيات، وقال الله تعالى : وما امروا الا ليعبدوا الله مخلصين له الدين) فالاخلاص في الاعمال واجب وهو انما يحصل بالنية فالنية فرض في الوضوء وجميع العبادات وهم يردون هذه الادلة بالعقل حيث يقولون ان الوضوء ليس بعبادة مخضة بل هو وسيلة وقربة ولا يجب النية في الوسائل كما في شرح الوقاية ۔

فنقول : من قال لكم ان النية ليست بعبادة مخضة ؟ بل هو عبادة

محضة صفة للمؤمن كما ورد فی الحديث الصحيح : لا يحافظ على الوضوء الا مؤمن - فقدموا العقل على النقل الصحيح الصريح، لاجل مذهبهم، والله المستعان ـ

**وائی : په اودس کښې نيت واجب نه دے حال دا چه رسول الله ﷺ فرمائی : انما الاعمال بالنيات او الله تعالی فرمائی : وما امروا الا ليعبدوا الله مخلصين له الدين ـ نو اخلاص په اعمالو کښې واجب دے او اخلاص په نيت سره راځی نو نيت په اوداسه کښې هم فرض شو او په ټولو عباداتو کښې هم او دوی دا دلائل په عقل سره رد کوی وائی اودس عبادت محضه نه دے بلکه وسيله ده او په وسائلو کښې نيت واجب نه وی ـ**

(١٠٤) - ومن العجب : انهم يمنعون المصلی من الصلاة بالوضوء من ماء يبلغ قناطير مقنطرة وقعت فيه قطرة دم او بول، ويبيحون له ان يصلی فی ثوب ربعه متلطخ بالبول وان كان عذرة فقدر راحة الكف، وما الفارق بين الثوب والماء مع بعد ما بينهما فی مقدار النجاسة ـ اعلام (٢/٣٣٦) ـ

**عجيبه کارنامه ئے دا ده چه وائی په هغه اوبو باندے اودس جائز نه دے چه هغه په ټونو وی او په هغے کښې يو څاڅکے ... ـينه يا بول پريوځی او بيا وائی : که يو سړے په هغه جامه کښې مونځ اوکړی چه څلورمه حصه ئے په بول ګنده ... نو مونځ ئے جائز دے او که په غټه ګندګئ ګنده وی نو بيا د ... ورغوی په اندازه معاف ده ـ**

**نو مونږ تپوس ک... ـوو چه د اوبو او جامے ترمينځ څه فرق دے؟ چه د دوارو مقدار ... ـ د نجاست هم ډيره فاصله لری يو څاڅکے په اوبو**

**کښې پریوتو سره اوبه پلیتې او څلورمه حصه جامه ډِې په بولو سره نه پلیتیږی دا کوم شریعت دے ؟ ۔**

(١٠٥) ومن العجب : انهم قالوا : من قال للمسجد مسيجد وللفقيه فُقيه بالتصغير فهو كافر، ولا يكفرون من مات ولم يصل فی عمره صلاة قط ولا سجد لله طرفة عين مع صحته وفراغه ويقولون هو مؤمن، ويقولون ان الايمان لا يزيد ولا ينقص، مع كثرة النصوص الصريحة فی هذا الباب، وليس فی تكفير من قال للمسجد مُسيجد لا نص ولا احماع فهؤلاء هم اتباع الرأی المجرد وتقدمت هذه المسئلة ۔ **وائی : چا چه مسجد ته مسیجد او فقیه ته فقیه په تصغیر سره اووئیلو، نو هغه کافر دے او نه کافر کوی هغه څوك چه په ټول عمر کښې هیڅ یو مونځ اونکړی او نه الله تعالی ته یوه سجده اولګوی او ښه فارغه او صحتمند وی نو دے ته مؤمن وائی او وائی : ایمان نه زیاتیږی او نه په کښې نقصان راځی سره ددینه چه پدے باره کښې ډیر نصوص راغلی دی چه ایمان زیاتیږی او کمیږی او په اوله خبره د دوی باندے هیڅ نص او اجماع نشته نو دوی صرف د رأی تابع دی ۔**

(١٠٦) – ومن اعجب العجب : ان الحنفية يقولون : لو اغتصب نصرانی رجلاً علیٰ ابنته او امرأته او حرمته وزنی بها، ثم شدخ رأسها بحجر او رمی بها من أعلیٰ شاهق حتی ماتت فلا حد عليه ولا قصاص فلو قتله المسلم صاحب الحرمة بقصبة محددة قتل به، فتدبر مع ان هذا القول يخالف من عشرات النصوص، اعلام (٢/٣٣٨) الهداية (٤/٥٦٦) ۔

احناف وائی : كه يو نصرانی (عيسائی) د يو سړی لور يا ښځه غصب كړی او ورسره زنا اوكړی او بيا د هغې سر په كانړی چقنی كړی يا ئے د غر سر نه ګوزار كړی او مړه شی نو په ده باندے حد نشته او نه قصاص خو كه هغه نصرانی لره عزتمند مسلمان قتل كړو د اوسپنے په ډرمه يا نيزه باندے نو دے به پرے قصاص كولے شی ـ نو دا قول د ډيرو نصوصو خلاف دے ـ

(۱۰۷) – ومن العجائب : قولهم : لو ان رجلاً مسلماً طاهر البدن عليه جنابة غمس يده فی بئر بنية رفع الحدث صارت البئر كلها نجسة يحرم شربها، والوضوء منها والطبخ به، فلو اغتسل فيها مائة نصرانی قلف عابدوا الصليب او مائة يهودی فماء ها باق علی حاله طاهر مطهر يجوز الوضوء منه وشربه والطبخ به كنز الدقائق (۱/۱٤) والمرقاة (۲/٤۱) الكافر طاهر ـ

وائی : كه يو مسلمان پاك بدن والا د جنابت په حالت كښې يو كوهی ته د بے اودسئ ختمولو په نيت لاس داخل كړی نو ټول كوهے پليت ګرځی او د هغې نه څكل حرامیږی او اودس او پخلے پر هم صحيح نه دے خو كه په كوهی كښې سل عيسايانو صليبيانو يا يهوديانو غسل اوكړو نو اوبه ئے په خپل حال پاكے پاكونكی دی اودس او څكل او پخلے ترے كول ټول جائز دی ـ دے عجيبه خبرو ته فكر كوه ـ

(۱۰۸) – ومن العجب : قولهم : لو ماتت فارة فی ماء فصب ذلك الماء فی بئر لم ينزح منها الا عشرون دلواً فقط وتطهر بذلك ولو توضأ رجل مسلم طاهر الاعضاء بماء فسقط ذلك الماء فی البئر فلا

بـد ان تـنـزع كـلهـا، وهذا يعلم من قواعد الاحناف لان اباحنيفة قال بنجاسة الماء المستعمل كما فى الهداية ـ

وائـی : کـه يـوه مړه په اوبو کښې مړه شوه او دغه اوبه کوهی ته گـوزار کړے شـی نـو صـرف شـل بـوقـو ويستـلـو سره کوهے پاك حسابيـږی خو که يو پاك اندامونو والا مسلمان اودس اوکړی او د هـغـه مستـعـمـلے اوبـه کـوهـی ته گوزار شی نو بيا به ټولے اوبه د کـوهی نه ويستلے شی او دا خبره د قواعدو د احنافو نه معلوميږی ځکه د امام ابو حنيفه په نزد باندے مستعملے اوبه نجس دی ـ

(١٠٩) – ومـن الـعجب : قولهـم : يصح نكاح الشغار ويجب فيه مهر المثل، وقد صح نهى رسول الله ﷺ عنه وتحريمه اياه، ولا يصح نـكـاح مـن اعتق امة وجعل عتقها صداقها وقد فعله رسول الله ﷺ ( الهداية ٢ : والفقه الاسلامى (٧/١١٨–١٢٠) ـ

وائی : د بدل نکاح صحيح ده او په دے کښې به مهر مثل واجب وی او حال دا چه رسول الله ﷺ د بدل د نکاح نه منع فرمائيلے ده ـ دارنگه وائی : چا چه يوه وينځه آزاده کړه او بيا ورسره نکاح کوی او د هغے آزادول مهر مقرر کړی نو صحيح نه ده او حال دا چه دا کار رسول الله ﷺ کړيدے ـ

(١١٠) – ومـن العجب : انهم افسدوا صلاة من تكلم فيها ساهياً او جـاهلاً ولـم يفسـدوا صـوم مـن اكل فيه ناسياً مع ان كلا الامرين خـلاف الـقيـاس عـندكم فما الذى لجئكم الى العمل باحد الحديثين دون الآخر ـ راجع الاعلام (٢/٣٤٥) ـ

عـجيبه خبره دا هم کوی چه وائی : چا چه په مانځه کښې په

سهوه یا جهالت سره خبرے اوکړے نو مونځ ئے فاسد دے او که چا په روژه کښ په هیره سره خوراك څکاك اوکړو نو روژه ئے صحیح ده سره ددینه چه دواړه کارونه خلاف القیاس ثابت دی ستاسو په نیز نو ولے په یو حدیث عمل کیږی او بل پریخودے شی ؟ ۔

(۱۱۱) – ومن العجب : ان رسول الله ﷺ قال : انکم تختصمون الیّ ولعل بعضکم الحن بحجة من بعض، فمن قضیت له بحق اخیه شیئاً فلا یأخذه فانما اقطع له قطعة من نار یأتی بها یوم القیامة رواه الشیخان وغیرهما ۔

• وقال ابو حنیفة : لو ان شاهدی زور شهدا عند القاضی علی طلاق رجل بأنه طلق امرأته فرّق القاضی بینهما بشهادتهما انه لا بأس ان یتزوجها احد الشاهدین ۔

مع انها حق الغیر کیف یجوز لهما اخذ حق الغیر بقضاء القاضی بین الزوجین کما فی المصنف لابن ابی شیبة (۲٦۹/۱٤) (۲۷۰) مع ان الاحناف لایأخذون بحدیث الیمین والشاهد ویجعلونه خلاف الاصول وهذه اصولهم کما فی الاعلام (۳۳۹/۲) والهدایة (۲۹۳/۲) ۔

رسول الله ﷺ فرمائی: اے خلقو تاسو ماته جګړے راوړئ او شاید چه په تاسو کښ به بعض چالاك وی د بعضو نه نو دا قانون واورئ چه چا له زه د یو ورور مسلمان د پردی حق نه څه شی باندے فیصله اوکړم نو هغه دِے ئے نه اخلی ځکه زما په فیصله هغه نه جائز کیږی ځکه ما ته به حقیقتِ حال معلوم نه وی خو که څوك ئے اخلی نو هغه به د اوریوه ټکړه قیامت ته ځان سره راوړی ۔

او ددیے په خلاف امام ابو حنیفه وائی : که د قاضی په دربار کښ

دوه دروغژن ګواهانو ګواهي اوکړه چه فلانی سړی خپلے ښځے ته طلاق ورکړل نو قاضی به د هغوی په ګواهئ د دواړو په مابين کښ تفرقه راولی او جائز ده چه بيا ګواهانو کښ ئے يو تن په نکاح کړی سره ددينه چه دا پردے حق دے نو د قاضی په فيصله ځنګه ده دپاره پردے حق جائز شو سره ددينه چه احناف هغه حديث باندے عمل نه کوی چه په هغے کښ يو ګواه او يو قسم باندے فيصله شوے ده ځکه دا د خپلو اصولو خلاف ګڼړی او دلته پردے حق په دروغژنه ګواهئ سره جائز ګڼړی دا کوم اصول دی ؟ ۔

(۱۱۲) – ومن العجب : ان الرسول ﷺ قال : من بدّل دينه فاقتلوه وفی حديث : التارك لدينه المفارق للجماعة، ای يقتل كما فی البخاری وقال الحنفية : المرتدة لا تقتل ۔ ابن ابی شيبة (۱٤/۲۷۰) وتنظيم الاشتات (۳) ۔

رسول الله ﷺ فرمائی : چا چه دين بدل کړو ( مرتد شو ) نو قتل ئے کړئ ۔ او په يو حديث کښ دی چه دين پريخودونکے او د مسلمانانو د ډلے نه جدا کيدونکے به قتلولے شی او احناف وائی : که ښځه مرتده شوه نو نه به شی قتلولے ۔

(۱۱۳) – ومن العجب : انه عليه السلام اباح الشرط الواحد فی البيع كما فی حديث جابر عند البخاری وغيره، والحنفية منعوا من ذلك بدليل لا يثبت وهو حديث نهی عن بيع وشرط ۔ ابن ابی شيبة (۱٤/۲۷۵)

نبی عليه السلام په بيعه کښ يو شرط جائز ګرځولے دے او احنافو ددے نه منع کړيده او دليل کښ ئے يو حديث راوړيدے چه هغه ثابت نه دے چه منع راغلے ده د بيع او شرط نه ۔ نو دا ئے هم

خطاء مسئله ده ـ

(۱۱٤) – ومن العجب : ان الرسول ﷺ قال : من وجد متاعه عند رجل قد أفلس فهو احق به، وقال الحنفية : بل هو اسوة للغرماء، المصدر السابق (۲۷٦/۱٤) ـ

رسول الله ﷺ فرمائی : چا چه د یو سړی سره چه مفلس (غریب) شوے وو خپل سامان اوموندلو نو دے پرے ډیر لائق دے چه هغه ځان له واخلی ـ او احناف وائی : نه ! دا سړے ئے ځان له نشی اخستے بلکه دے د نورو قرضوړو سره شریك دے ـ پدے کښې د نورو قرضوړو حق هم دے ـ نو نبی علیه السلام وائی : د نورو حق په کښې نشته او دوی وائی د نورو حق هم پکښې شته ـ

(۱۱۵) – ومن العجب : انهم قالوا : لا یفطر الصوم بالاستمناء بالکف کما فی الهدایة (۲۱۷/۱) ـ

عجیبه مسئله کوی وائی : که څوك په روژه کښې په لاس سره منی خارجه کړی نو روژه ئے نه ده ماته ـ

(۱۱٦) – ومن العجب : انهم استدلوا بحدیث الذی وقصته بعیره، فقال النبی ﷺ : لا تخمروا رأسه رواه مسلم ـ

فقالوا : هذا حدیث مخصوص بذلك الرجل او هو حدیث منسوخ ـ فتدبر وانظر الهدایة (۲۳۹/۱)ـ

نبی علیه السلام د هغه سړی په باره کښې اوفرمائیل چه په حالت د احرام کښې د اوښ نه پریوتو سره مړشو : دده سر مه پټوئ ـ نو احناف وائی : چه دا حدیث د دغه سړی پورے خاص دے یا دا منسوخ دے ـ نو دا چا منسوخ کړو او ولے د هغه پورے خاص دے ؟

(۱۱۷) - ومن العجب : انهم وضعوا قواعد اختراعية، فلما جاء الحديث تحيروا فلم يجدوا لدفعه الا التأويلات البعيدة التي هي بمنزلة التحريفات، كما روى البغوى فى شرح السنة والمشكاة (۱۲۰/۱) عن جابر : ان النبي ﷺ كان يصلي بالناس صلوة الظهر ببطن نخل فصلى بطائفة ركعتين ثم سلم ثم جاء طائفة احرى فصلى بهم ركعتين ثم سلم، قال صاحب المرقاة : هذا الحديث على قواعد مذهبنا مشكل جداً فانه لو حمل على السفر لزم اقتداء المفترض بالمتنفل، وان حمل على الحضر يأباه السلام على رأس ركعتين، ثم جاء وا بالتحريف فارجع الى حواشى المشكاة المنقولة من المرقاة ۔

**دا هم عجيبه خبره ده چه دوى څه وضعى او اختراعى قواعد مقرر كړى خو چه كله د هغے خلاف جديث راشى نو بيا حيران شى چه ددے سره څه اوكړى نو بيا د هغے د دفع كولو دپاره بعيد تاويلات بارده فاسده لټوى چه هغه درحقيقت تحريفات دى لكه ددے مثال : جابر فرمائى : نبى عليه السلام په بطن نخله كښ خلقو ته د ماسپښين مونځ كولو نو يوه طائفه ته ئے دوه ركعته اوكړل بيا ئے سلام واړولو بيا بله طائفه راغله هغوى ته ئے هم دوه ركعاته اوكړل او بيا ئے سلام واړولو ۔**

**نو صاحب د مرقات وائى : دا حديث زمونږ (احنافو) په قواعدو مشكل دے ځكه كه دا په سفر باندے حمل شى نو بيا خو اقتداء د مفترض د متنفل پسے لازميږى او كه په حضر حمل شى نو بيا د دوه ركعتو نه پس سلام ګرځول صحيح نه دى نو بس ددے په تحريف كښ شروع شو ۔**

(۱۱۸) - ومن العجب انهم يقولون : الايمان لا يزيد ولا ينقص كما في شرح فقه اكبر وشرح العقائد مع ان مئات من الآيات الصريحة والاحاديث الصريحة وردت بزيادة الايمان ونقصانه فحرفوها وأولوها بتأويلات فاسدة ۔

**وائي : ايمان زيادت او نقصان نه قبلوي او حال دا چه دا د ډيرو نصوصو خلاف دي نو دوي په کښ تاويلات کوي د امام خبره برابروي او نص خرابوي ۔**

(۱۱۹) - ومن العجب : انه عليه السلام فرق بين بول الغلام الذي لم يطعم وبين بول الجارية في الغَسل، خالف الحنفية تلك الاحاديث الخمسة الواردة بالفرق وليس لهم دليل بعدم الفرق البتة وانظر شروح الحديث ۔

**رسول الله ﷺ د هلك چه لا خوراك څكاك ئې شروع کړې نه وي او د جينۍ ترمينځ د بول په وينځلو کښ فرق کړيدے چه د هلك په بولو کښ تخفيف دے صرف پوشناك کولو سره پاکيږي ۔ او احناف ددے په باره کښ د پنځه احاديثو خلاف کوي او فرق نه کوي او هيڅ دليل ورسره نشته ۔**

(۱۲۰) - ومن العجب : ان صاحب الهداية ( ۱/۱٤۲) فتح القدير) قال : لا يحل شرب ابوال الابل للتداوي لانه لا يتبين الشفاء فيه فلا يعدل عن الحرمة مع انه عليه السلام اباح ذلك كما في الصحيحين ۔

**صاحب هدايه وائي : د اوښانو بول د تداوي دپاره څکل حلال نه دي څکه پدے کښ شفاء واضحه نه ده نو د حرمت نه به عدول نشي کولے ۔ او حال دا چه رسول الله ﷺ دا مباح کړيدي لکه**

**صحيحينو حديث پرے دليل دے حديث العرنيين ۔**

(۱۲۱) – ومن العجب : انهم لم يقولوا بغسل الاناء من ولوغ الكلب سبع مرات مع صحة الحديث وضعف ما يخالفه لانه مخالف عن الاصول المزعومة ۔

**دوی وائی : سپے چه کله لوښی کښ خوله اووهی نو اووه کرته وينځل ئے ضروری نه دی او حال دا چه صحيح حديث پکښ راغلے دے ځکه دا د دوی د اصول مزعومه و خلاف دے ۔**

(۱۲۲) – ومن العجب : ان فی شرح الوقاية ورد المحتار والفتاوی الهندية : انه يجوز تخليل الخمر : مع انه عليه السلام نهی عن ذلك كما رواه مسلم عن انس (۲/۱٦۲) ۔

**شرح وقايه وغيره کښ وائی : د شرابو نه سرکه جوړول جائز دی او حال دا چه رسول الله ﷺ ددے نه منع فرمائيلے ده ۔**

(۱۲۳) – ومن العجب : انهم اوجبوا الضربتان فی التيمم واستيعاب المسح مع انه لم يصح فی ذلك حديث بل روی البخاری عن عمار ضربة واحدة ۔

**احنافو په تيمم کښ دوه ضربے او استيعاب د اندامونو په مسح کښ واجب گرځولے دے حال دا چه پدے باره کښ هيڅ صحيح نشته بلکه بخاری کښ د عمار بن ياسر په حديث کښ يوه ضربه نقل ده ۔**

(۱۲٤) – ومن العجب : انهم انكروا عن المسح علی العمامة كما فی الكنز والهداية مع صحة الحديث فی ذلك رواه مسلم (۱/۱۳٤) عن مغيرة ۔

**دوی د پټکی د مسح نه منکر دی او حال دا چه دا په صحيح**

کښې راغلې دي ـ

(۱۲۵) – ومن العجب : ان صاحب رد المحتار والهداية قالا : واذا طلع الشمس فقد بطلت الصلاة بخلاف العصر مع ان الحديث لم يفرق بل قال عليه السلام فليتم صلاته ـ

**هدايه مولا او شامي وائي : کله چه نمر په صبا کښې راوخيژي نو مونځ باطل شو په خلاف د ماښکر نه ـ نو دوي فرق کوي په دواړو مونځونو کښې او حال دا چه په حديث کښې فرق نشته بلکه نبي عليه السلام د دواړو په باره کښې فرمائي : مونځ دِے پوره کړي ـ**

(۱۲٦) – ومن العجب : انهم قالوا : كما في قاضي خان والهندية والكنز اذا قرأ لامام عن المصحف فسدت صلاته عند ابي حنيفة مع انه قد ثبت عن عائشة انها كانت يؤمها غلامها من المصحف كما رواه البخاري (۹۲/۱) وابن ابي شيبة ـ

**وائي : کله چه امام د مصحف (قرآن) نه قراء ت اوکړي نو مونځ ئے فاسد دے د امام ابو حنيفه په نزد او حال دا چه د عائشے رضي الله عنها نه ثابت دي چه هغے ته به غلام د مصحف نه امامتي کوله ـ**

(۱۲۷) – ومن العجب : انهم قالوا : وركعتا الظهر سواء كما في الهداية والكنز وفتح القدير مع انه ثبت في الصحيح للبخاري (۸۸/۱) انه عليه السلام كان يطيل الركعة الاولىٰ ـ

**وائي : د ماسپښين دوه رکعتونه برابر دي او حال دا چه په حديث کښې دي چه نبي عليه السلام به اول رکعت اوږد کولو ـ**

(۱۲۸) – ومن العجب : انهم قالوا : وهو مخير في الركعتين

الاخريين ان شاء سكت وان شاء قرأ وان شاء سبّح كذا روى عن ابى حنيفة كما فى الهداية – مع ان الحديث ورد بأنه عليه السلام كان يقرأ الفاتحة فى الركعتين الاخريين كما فى حديث البخارى (۱/۸۸) ۔

**وائی : په اخرینودوه رکعتونو کښ د سړی اختیار دے چه غلے اودریږی او که قرائت کوی او که تسبیحات وائی او حال دا چه رسول الله ﷺ به په آخری دوه رکعتونو کښ فاتحه لوستله ۔**

(۱۲۹) – ومن العجب : انهم كرهوا الجهر بالتامين كما فى الهندية وجامع الرموز مع ورود الاحاديث الكثيرة بالجهر، وكان الانصاف ان يقولوا الاخفاء افضل لا ان يقولوا الجهر مكروه مع ان الاخفاء ليس فيه فضيلة ۔

**دوی آمین بالجهر ته مکروه وئی او حال دا چه ډیر احادیث په آمین بالجهر کښ راغلی دی، پکار خو داوه چه داسے ئے وئیلی وے چه پټ آمین وئیل افضل دی نه دا چه مکروه دی د پیغمبر عمل ته مکروه وئیل د چا کار دے ؟ ۔**

(۱۳۰) – ومن العجب : انهم اباحوا الخروج عن المسجد بعد الاذان فى صلاة المغرب والفجر والعصر مع ان الاحاديث الكثيرة المرفوعة جاء ت بأنه لا يجوز الخروج بل يشارك مع الامام ۔
راجع المشكاة (۱/۱۰۲) ۔

**دوی وائی : د ماښام او سحر او مازیګر د مانځه د اذان نه روستو د مسجد نه وتل جائز دی او حال دا چه ډیر مرفوع احادیث پدے باره کښ راغلی دی چه وتل ندی جائز بلکه امام سره به مانځه کښ شریك کیږی ۔**

(١٣١) - ومن العجب : انهم كرهوا امامة الاعمى كما فى الهداية والدر المختار والشامية وكذلك كرهوا امامة العبد مع انه ثبت فى الحديث الذى اخرجه ابوداود وانظر المشكوة (١/١٠٠) بأن ابن ام مكتوم كان امام المسجد النبوي بأمر النبى عليه السلام، وكذلك كان سالم يؤم وهو غلام ـ

**دوی وائی : د ړوند سړی امامتی مکروه ده دغه شان د غلام امامت هم مکروه دے او حال دا چه دا په احاديثو کښ ثابت دی چه عبد الله بن ام مکتوم د مسجد نبوی امام جوړ شويدے په امر د نبی عليه السلام سره ـ او دغه شان سالم غلام وو او امامت به ئے کولو ـ**

(١٣٢) - ومن العجب : انهم قالوا : ولا يقول الامام ربنا ولك الحمد كما فى الهداية مع انه ثبت فى الصحيح انه عليه السلام كان يقولها ـ

**وائی : امام به ربنا ولك الحمد نه وائی او حال دا چه په صحيح احاديثو کښ دا ثابت دی چه رسول الله ﷺ به دا لوستله ـ**

(١٣٣) - ومن العجب : انهم كرهوا امامة النساء كما فى الهداية والكنز وشرح الوقاية ولو فى التراويح مع ان ام سلمة وعائشة امتا، وفى ابى داود انه عليه السلام جعل ام ورقة اماما للمسجد ـ

(١٣٤) - و من العجب : انهم فرقوا بين رفع الرجل يديه عند التحريمة وبين المرأة ولم يثبت الفرق مع صحة الحديث فى رفع الرجل يديه الى المنكبين وهم انكروا ذلك كما فى الكنز وشرح الوقاية ـ

**دوی وائی د ښځے او سړی په لاسونو پورته کولو کښ فرق دے او حال دا چه په احاديثو کښ هيڅ فرق ندے راغلے بلکه دواړه به ئے اوګو پورے اوچتوی يا دواړه به ئے غوږونو پورے ـ او دوی ئے د**

سړی دپاره اوګو پورے پورته کول نه منی ۔

(۱۳۵) – ومن العجب : انهم قالوا بكراهة الصلاة خلف الصف كما فی رد المحتار والهندية مع انه عليه السلام امر باعادة الصلاة كما رواه ابوداود والترمذی وابن حبان والطبرانی بالفاظ مختلفة ۔

**دوی وائی : د صف نه روستو مونځ کول مکروه دی او حال دا چه نبی علیه السلام حکم کړیدے په اعاده د مانځه سره ۔**

(۱۳٦) – ومن العجب : انهم لم يقولوا بالطمانينة فی القومة والجلسة فرضاً مع ورود الامر بذلك فی حديث مسیء الصلاة رواه البخاری كما فی شرح العينی ۔

**دوی په قومه او جلسه کښ طمانينت فرض نه ګڼړی حال دا چه په حديث د مسیء الصلاة کښ پدے باندے امر راغلے دے ۔**

(۱۳۷) – ومن العجب : انهم لم يقولوا بفرضية القومة والجلسة مع صحة الحديث فی ذلك فراجع الهداية والبخاری ۔

**دوی وائی : قومه او جلسه فرض نه دی او حال دا چه پدے باره کښ صحيح حديث ثابت دے چه دلالت کوی پدے خبره چه قومه او جلسه فرض دی ۔**

(۱۳۸) – ومن العجب : انهم لم يقولوا بجواز جلسة الاستراحة مع صحة الحديث فی ذلك كما فی الهداية والبخاری والترمذی ۔

**دوی وائی : جلسه د استراحت نه ده جائز حال دا چه په صحيح حديث کښ راغلے ده ۔**

(۱۳۹) – ومن العجب : انهم لم يقولوا بالتورك مع صحة الحديث فيه كما فی رد المحتار والكنز وشرح الوقاية والبخاری ۔

دوی وائی : په مانځه کښ تورك نشته او حال دا چه د رسول الله ﷺ نه ثابت دے ۔

(١٤٠) – ومن العجب انهم لم يقولوا بالتنفل قبل المغرب و كرهوا ذلك كما فى الهداية مع صحة احاديث كثيرة فى ذلك۔

دوی د ماښام نه مخکښ نفل کولو ته مکروه وائی او حال دا چه پدے باره کښ ډیر زیات احادیث راغلی دی ۔

(١٤١) – ومن العجب : ان فى رد المحتار والهندية والذخيرة ولو تكلم بين السنة والفرض لا يسقطها ولكن ينقص ثوابها وقيل تسقط مع انه عليه السلام تكلم بعد سنة الفجر كما روت عائشة كما فى مسلم (١/٢٥٥) مشكاة (١/ ١١٠) ۔

وائی : كه چا د سنت او فرضو په مابين كښ خبرے اوكړے نو سنت ندی ساقط ليكن ثواب ئے كم شو او بعض وائی چه ساقط شو ۔ او حال دا چه رسول الله ﷺ د سحر د سنتو نه پس خبرے كړی دی ۔

(١٤٢) – ومن العجب : ان فى رد المحتار : وحاصله : ان اضطجاعه عليه السلام بين السنة والفجر انما كان للاستراحة لا للتشريع وهذا يخالف قوله عليه السلام وفعله فانه امر بذلك فى الحديث كما روى احمد والترمذى وابوداود ۔

وائی : نبی علیه السلام چه د سحر د سنتو او د مانځه په مابين کښ ډه لګوله نو دا ئے استراحت کولو او دا څه حکم شرعی نه دے ۔ او حال دا چه دا خبره د رسول الله ﷺ د قول او فعل دواړو خلاف ده ځکه هغه پدے باندے امر کړیدے ۔

(١٤٣) – ومن العجب : ان فى الهداية والكنز والوقاية ودُرِّهم

وردّهم والهندية ومن انتهى الى الامام وهو لم يصل ركعتى الفجر ان خشى ان تفوته ركعة ويدرك الاخرى يصلى ركعتى الفجر عند باب المسجد وهذا يخالف ثلاثة عشر حديثاً ۔

**څوك چه جَمعے ته اورسيدو او د سحر سنت ئے نه وو کړی نو که دا يره وه چه دده نه به يو رکعت فوت شی او بل به رالاندے کړی نو د سحر سنت به د مسجد په دروازه کښ کوی او حال دا چه دا د ديارلس احاديثو مخالف حکم دے ۔**

(١٤٤) – ومن العجب : ان فى الهداية والدرّ والرد – واذا فاتته ركعتا الفجر لا يقضيهما لا قبل طلوع الشمس ولا بعد طلوعها عند ابى حنيفة وابى يوسف مع ورود الاحاديث الصحيحة فى ذلك كما فى ابن ماجه ۔

**وائی : کله چه د انسان نه د سحر سنت فوت شی نو بالکل قضائی ئے نشته نه د نمر خاته نه مخکښ او نه روستو او حال دا چه ډير صحيح احاديث ددے په قضائی کښ راغلی دی ۔**

(١٤٥) – ومن العجب : انکارهم عن الجمع بين الصلاتين كما فى الدر المختار والكنز والهندية مع ورود الاحاديث المتواترة فى ذلك ۔

**دوی جمع بين الصلاتين په سفر کښ نه منی او حال دا چه پدے باره کښ متواتر احاديث راغلی دی ۔**

(١٤٦) – ومن العجب العجاب : ان صاحب الهداية قال : وحكى الحسن اجماع المسلمين على الثلاث : مع ان هذا القول باطل وجواز الوتر بركعة ثابت فى السنة المطهرة فى البخارى وغيره

**وائی : د وتر درے رکعاتو باندے اجماع ده او حال دا چه دا خبره غلطه ده ځکه يو رکعت وتر او پنځه او اووه او نهه رکعاته وتر هم په**

احاديثو کښې راغلي دي ـ

(۱٤۷) – ومن العجب : قولهم بالوتر ثلاث ركعات بتشهدين من غير تسليم مع ورود النهى عن ذلك ـ

**دوی وائي : وتر درې رکعاته دي په دوه تشهدونو سره چه مينځ کښې به ئې سلام نه وی او حال دا چه ددې نه په يو حديث کښې منع راغلې ده على احتمال واحد ـ**

(۱٤۹) – ومن العجب : انهم انكروا عن الوتر على الراحلة كما فى العينى ورد المحتار والهندية مع صحة الحديث الذى رواه مسلم وغيره ـ **ـدوی په سورلۍ باندې وتر جائز نه ګڼړی حال دا چه د رسول الله ﷺ او ابن عمر نه په صحيح سند سره ثابت دی ـ**

(۱٤۹) – ومن العجب : انهم كرهوا الزيادة على ثمان ركعات ليلاً بسلام واحد كما فى الهداية وشرح الوقاية مع صحة الحديث الذى رواه مسلم بأنه صلى تسع ركعات بتسليمة واحدة وهو فى المشكاة (۱/۱۱۱) ـ

**دوی وائي : د شپې مونځ کښې د اته رکعاتو نه زياتو نيت تړل په يو سلام سره مکروه دی او حال دا چه په حديث د مسلم کښې راغلی دی چه نبی عليه السلام نهه رکعاته په يو سلام کړيدی ـ**

(۱٥۰) – ومن العجب : انهم يقولون صدقة الفطر تؤدى عن العبد الكافر ايضاً كما فى الهداية (۱/۲۰۹) مع ان الرسول ﷺ قال : لاتجب صدقة الفطر الا على المسلمين انظر الحديث فى البخارى (۱/۲۰٥) ـ

**وائي : فطرانه به د کافر د طرفنه هم اداء کولې شی ـ او حال دا چه حديث کښې دی چه فطرانه صرف په مسلمانانو فرض ده ـ**

(١٥١) – ومن العجب : انكارهم عن وضع اليدين على الصدر فى الصلاة مع انه قد ورد فيه احاديث كثيرة ـ

**دوی په مانځه کښې لاسونه په سینه کیخودل نه منی او وائی چه لاسونه به د نامه نه لاندے کیخودے شی حال دا چه پدے باره کښې هیڅ صحیح حدیث نشته ـ**

(١٥٢) – ومن العجب : قولهم : لا حد على من زنا بصبية وازال بكارتها كما فى قاضى خان (٤٠٧/٤) ـ

**وائی کـه چا د یوے ماشومے جینئ سره زنا اوکړه او د هغے بکارت ئے زائل کړو نو په هغه باندے هیڅ حد نشته ـ**

(١٥٣) – ومن العجب : انهم قالوا الحجامة مكروهة كما فى الهداية (٢٦٣/١) مع ان الرسول ﷺ احتجم ، كما فى الترمذى (١٨٤/١) والمشكاة (٢٣١/١) فكيف يتصور الكراهة فى فعل الرسول ﷺ ـ

**وائی ښکر لګول مکروه حال دا چه رسول الله ﷺ پخپله ښکر لګولے دے نو د هغه فعل ته مکروه وئیل څنګه شو ؟ ـ**

(١٥٤) – ومن العجب : قولهم : ويكره ان يُحرم الرجل قبل اشهر الحج كما فى الهداية (٢٩٠/١) مع انه لا دليل على هذه الكراهة فبطل جميع المسائل التى تتفرع على هذه المسئلة ـ

**وائی : د حج د میاشتو نه مخکښې احرام تړل مکروه دی حال دا چه پدے کراهت باندے هیڅ دلیل نشته ـ نو پدے باندے چه کومو مسائلو بنیاد ایخودے شوے دے هغه ټول باطل او بے بنیاده شو ـ**

(١٥٥) – ومن العجب : قولهم لا فرق بين البكر والثيب فى القسم بل يجب فى كلتا الزوجتين على السواء كما فى الهداية

(۳٤٩/۲) مع ان الرسول ﷺ قال : اذا تزوج الرجلُ البكر على الثيب اقـام عندها سبعاً ثم يقسم وان تزوج الثيب على البكر اقام عندها ثلاثاً كما فی روایة الصحیحین والمشكاة (۲۷۹/۲)

**وائی: دویـم واده کـولـو پـه صورت کښې د اولنۍ ښځې او دویمې ښـځې په نمبر کښې هیڅ فرق نشته، او حال دا چه نبی علیه السلام فـرمائی : نـوې ښـځې سره به اووه شپې تیروی او بیابه تقسیم کوی او که پیغله نه وی نو د هغې سره به درې شپې تیروی بیا به تقسیم کوی ۔**

(۱۵٦) - وقـالـوا : بـاخـفـاء الـقرائة فی الكسوف مع صحة الحديث فی الجهر بخاری، مسلم ، هدایه، والدر، والرد ۔

**دوی وائی په صلاة الـكسـوف کښې به اخفاء کوی او حال دا چه په احادیثو کښې جهر ثابت دے ۔**

(۱۵۷) - قال فی الهداية ورد المحتار، فان قيد الخامسة بسجدة بـطـل فرضه عندنا مع انه عليه السلام سلم بعد خامسة كما فی مسلم (۲۱۲/۱) ـ **هـدایه کښې دی چه که پنځم رکعت ته پاڅیدو او هغې کـښې ئې سجده اوکړه نو فرض ئې باطل شو او حال دا چه نبی علیه الـسـلام د پـنځم رکعت نه پس سلام اړولے دے او دوه سجده سهوے ئې کړیدی او مونځ ئې باطل نه دے ګرځولے ۔**

(۱۵۸) - ومن العجب : انهم قالوا بضم السادسة ولا دليل لذلك بل الحديث المتقدم يرد ذلك ۔

**دوی وائـی : که پنځم رکعت ته پاڅیدو او قعده ئې نه وه کړې نو شپـږم به ورسره یو ځائې کړی او ټول مونځ ئې نفل شو او حال دا چه پدې خبره هیڅ دلیل نشته بلکه مخکښې حدیث ددې مخالف دے ۔**

(۱۵۹) – ومن العجب : انهم قالوا : ولا يصلى فى مسجد جماعة على ميت، مع صحة الحديث كما فى مسلم وروى ابن ابى شيبة ان صهيب صلى على عمر فى المسجد وكذلك انظر الموطأ فى هذه المسئلة ۔

**وائی : په مړی باندے د جنازے مونځ په مسجد کښ جائز نه دے او حال دا چه حديث کښ دی چه صهيب رضی الله عنه په عمر فاروق رضی الله عنه باندے په مسجد کښ جنازه اوکړه ۔**

(۱۶۰) – قال فى الهداية والهندية والكنز : ولو كبر الامام خمساً اى فى الجنازة لا يتابعه المقتدى مع صحة الحديث بالخمس كما فى مسلم والترمذى وكبر اكثر من ذلك كما فى احكام الجنائز للالبانى والدين الخالص (٦) ۔

**وائی : که امام په جنازه کښ پنځه تکبيرونه اوکړل نو مقتدی به ئے تابعداری نه کوی او حال دا چه په صحيح حديث کښ شپږ تکبيرونه هم راغلی دی ۔**

(۱۶۱) – قال فى درهم وردهم وقاضى خانهم وكنزهم : ولا يقرأ بفاتحة الكتاب فى الجنازة مع ورود (۱٤) حديثاً فى ذلك ولا دليل عندهم الا الرأى ۔

**وائی په جنازه کښ به سورتِ فاتحه نه وائی او حال دا چه دا په (۱٤) احاديثو کښ راغلے ده ۔**

(۱۶۲)– قالوا : بمسئلة ضم المال مع انه عليه السلام شرط حولان الحول كما فى الترمذى وجعل لكل مال نصاباً ۔

**دوی وائی : په زکات کښ ضم د مال به کولے شی او حال دا چه نبی عليه السلام د هر مال دپاره نصاب مقرر کړيدے او حولان**

الحول ئے شرط گرځولے دے ۔

(۱٦۳) - قال ابو حنيفة فی كثير ما اخرجته الارض او قليله عشر، مع ورود الحديث الصحيح بالنصاب كما فی الصحيحين ۔

**امام ابو حنيفه فرمائی : هر څه چه د زمکے نه اوځی لږ وی او که ډير خو په هغے کښ عشر لازم دے او حال دا چه حديث کښ نصاب ښودلے شويدے ۔**

(۱٦٤) - وقالوا : لا يصوم عن الميت الولی ولا يصلی عنه مع صحة الحديث فی ذلك ای فی الصوم بخاری، مسلم هدايه، شرح الوقاية ۔

**وائی : د مړی د طرفنه به وارث روژه هم نه نيسی او نه به ترے مونځ کوی او حال دا چه په حديث کښ د روژے نيولو اجازه راغلے ده ۔**

(۱٦٥) - قالوا بجواز الصوم وان لم ينو من الليل وذكروا صوراً كثيرة والحديث قال : لا صيام لمن لم يجمع الصيام من الليل، ابوداود، هدايه ، كنز، در، رد، هنديه ۔

**وائی : که د شپے نه نيت د روژے اونه کړی هم جائز ده او پدے کښ ئے بيا ډير صورتونه جوړ کړيدی ۔ او حال دا چه په حديث کښ راغلی دی : چا چه د شپے نه نيت د روژے اونه کړو نو د هغه روژه صحيح نه ده ۔**

(۱٦٦) - قالوا : بالفدية للصلوات الفوتية من الميت واحتجوا فی ذلك بقول محمد : ارجوا ان تقبل منه، فجعلوا رجاء محمد دينا يتدينون به ويبنون به دوائر الاسقاط البدعية۔ مع عدم ورود النص بالفدية المالية للصلوات كما فصلنا فی الدين الخالص (۳) ۔

**دوی وائی : که د مړی نه مونځونه فوت شو نو د هغے فديه به**

ورکوی او دلیل کښ ئے قول د محمد پیش کړیدے چه هغه وائی : زما امید دے چه دا فدیه به قبوله شی ۔ نو دوی د محمد د امید نه دین جوړ کړو او پدے سره د بدعاتو ښکار شو دائره اسقاط لګوی او په هغے کښ ناروا کوی قرآن شریف پکښ ګرځوی او حال دا چه په احادیثو کښ فدیه صرف د روژے راغلے ده نه د مونځونو ۔

(١٦٧)- قالوا : من لم يجد ازاراً في الحج ولبس سراويل فعليه الدم كما في المرقاة ومع انه عليه السلام قال : من لم يجد ازاراً لبس سراويل ولم يذكر الدم متفق عليه ۔

وائی : چا چه په حج کښ لنګ نه موندلو او قمیص ئے واغوستو نو په هغه باندے دم لازم دے ۔ او حال دا چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه څوك لنګ نه مومی نو قمیص دِے واغوندی ۔ او دم ئے پکښ ندے ذکر کړے ۔

(١٦٨) - قالوا: يجب الدم بتقديم بعض الاركان على بعض اى فى الحج كما فى الهداية والرسول ﷺ قال لمن قدم واخّر لا حرج، بخارى ۔

وائی : که چا په حج کښ بعض ارکان په بعضو مقدم کړل نو دم پرے لازم دے حال دا چه رسول الله ﷺ پدے باره کښ خلقو ته فرمائیلی وو چه پدے کار کښ څه حرج نشته ۔

(١٦٩) - انكارهم عن المضمضة والاستنشاق للميت كما فى الهداية (١٧٨/١) مع ان الرسول ﷺ قال : ومواضع الوضوء منها بخارى (١٦٧/١) ۔

وائی : مړی له به مضمضه او استنشاق نه کوی حال دا چه رسول الله ﷺ فرمائی : د مړی اندامونه د اوداسه هم وینځل لازم دی ۔

(١٧٠) – قالوا : يرفع يديه في صلاة العيد عند كل تكبير ( هدايه : ١٧٤/١) مع انه ليس بثابت من الرسول ﷺ ورفع اليدين ثابت فى الصلاة الفريضة و النافلة فالحنفية يقولون : لايرفع يديه بل هو مكروه فعكسوا الحقائق و السنن ۔

**وائی : د اختر په تکبیراتو کښ به رفع الیدین کوی حال دا چه دا د نبی علیه السلام ندی ثابت او په نفل او فرض مانځه کښ رفع الیدین ثابت دی او دوی وائی مکروه دی ۔**

(١٧١) – ومن العجب : ان الهداية قال : وحيلة المصرى ان يخرج بهاخارج المصر فيذبح ويحل وهذا يخالف عن حديث البخارى ومسلم فى النهى عن الذبح قبل الصلاة مطلقاً ۔

**هدایه مولا د ذبح قبل الصلاه په باره کښ حیله ذکر کوی چه د ښار والا دپاره حیله دا ده چه خپل څاروے به د مصر نه بهر اوباسی او هلته به ئے ذبح کړی نو بس حلال شو ۔ او حال دا چه دا د بخاری او د مسلم د احادیثو خلاف دے چه په هغے کښ د اختر د مانځه نه مخکښ د ذبح کولو نه منع راغلے ده ۔**

(١٧٢) – قال فى الهندية : ذكر فى الجامع : ولا يعق عن الغلام ولا عن الجارية و انه اشارة الى الكراهة كذا فى البدائع فى كتاب الاضحية فتدبر والعقيقة سنة كما فى كتب الحديث وهم كرهوها فتعجب ۔

**وائی : د هلك او جینئ د طرفنه عقیقه به نه کوی او دا اشاره ده کراهت ته او حال دا چه عقیقه سنت طریقه ده او دوی ورته مکروه وائی۔**

(١٧٣)– ومن العجب : ان صاحب الهندية قال : بيع السنور والسباع والوحش والطير جائز عندنا معلم كان اولا، وهذا يخالف

عن حديث مسلم زجر النبی ﷺ عن بيع الكلب والسنور ـ

**احناف وائی : زمونږ په نيز د پيشو ګانو او درنده ګانو او صحرائی حيواناتو او مارغانو خرڅول جائز دی معلم وی او که نه ـ او حال دا چه رسول الله ﷺ منع کړيده د خرڅولو د سپی او پيشونه ـ**

(١٧٤) – انكارهم عن المصراة مع صحة الاحاديث فيها بل عن ابن مسعود كما فی البخاری ـ

**دوی انکار کوی د بيع مصرات نه او حال دا چه په صحيح احاديثو کښ ثابته ده او ابو هريرةؓ ته ئے په کښ غير فقيه وئيلے دے ـ**

(١٧٥) – ومن العجب انكارهم عن بيع المدبر، كما فی الهداية والكنز والدر والرد، وقد باعه رسول الله ﷺ كما فی الصحيحين ـ

**دوی وائی : د مدبر خرڅول نشته او حال دا چه رسول الله ﷺ مدبر غلام خرڅ کړيدے ـ**

(١٧٦) – انكارهم عن خيار المجلس فی البيع كما فی الترمذی والمشكاة وانظر تقرير الترمذی لمحمود الحسن الديوبندی (٣٦) ـ

**انکار کوی د خيار مجلس نه په بيع کښ ـ**

(١٧٧) – واباحوا بيع الثمرة قبل بدوّ صلاحها كما فی الهداية (١٠/ ) والرسول ﷺ نهی عن ذلك ـ

**دوی ميوه د پخيدلو نه مخکښ خرڅول جائز ګنړی او حال دا چه رسول الله ﷺ ددے نه منع کړيده ـ**

(١٧٨) – قالوا يجوز بيع الرطب بالتمر مثلاً بمثلٍ عند ابی حنيفة كما فی الهداية والكنز والرد والدر، مع ورود النهی عن ذلك كما فی الترمذی وابی داود والمشكاة باب البيوع ـ

**وائی : د امام ابو حنيفه په نزد تازه كجورو په اوچو كجورو خرڅول جائز دی كله چه برابر په برابر وی او حال دا چه ددې نه نهی راغلې ده ۔**

(۱۷۹) – قال فی الهداية ورد المحتار : عن تلقی الجلب انه جائز اذا لم يضر بالبلد – والرسول ﷺ نهی عن ذلك مطلقاً ۔

**دوی وائی : تلقی الجلب ( منډئ ته راتلونکو مالونو مخې ته ور وتل او هلته ترې په لاره کښې اخستل ) جائز دی کله چه ښار والا ته ضرر نه رسی او حال دا چه رسول الله ﷺ ددې کار نه مطلقا منع فرمائيلې ده ۔**

(۱۸۰) – ومن اعجب ما رأيت فی الهداية (۲/ ۳۰۵) انه قال :

الشرع الاسلامی جعل صيغة الماضی لانشاء النكاح وان كان لفظه للاخبار فنقول : فی ایّ شرع هو ؟ وما الشرع الا الكتاب والسنة والاجماع وليس لذلك اثر فی هذه الثلاثة أفلا يكون هذا من التقول علی الشارع ؟ ۔

والصحيح ان النكاح ينعقد بكل لفظ تعارف الناس عليه من عربی وعجمی وماض ومضارع وامر واستفهام وغير ذلك اذا كان ذلك هو المعروف لديهم ۔

**دوی وائی : نکاح به صرف په صيغه د ماضی سره کولې شی او حال دا چه په شريعت کښې ددې هيڅ اعتبار نشته بلکه خبره عرف ته سپارلې شويده چه په عرف کښې کوم لفظ سره نکاح کيدله نو دغه به شريعت کښې نکاح وی ۔**

(۱۸۱) – ومن اعجب العجب ما ذكره صاحب الهداية

(۳۰۹/۲) - ان من نظر الى امرأة بشهوة او مسها بشهوة او مسته بشهوة حرمت عليه امها وبنتها، ولو جامعها فى الدبر فانزل فيه لا تحرم عليه امها ولا بنتها، فهل رأيتم باعجب من هذا ثم تعسف فى توجيهه فقال : لان من انزل فمسه لا يفضى الى الوطى۔

اقول : بل من انزل يفضى انزاله الى الوطى لانه علم باللذة ولانه ليس كل احد يبرد ذكره بالانزال خصوصاً من كان مغتلماً شديد الشهوة فى عهد الشباب بل يستطيع ان يجامع بعد دقيقتين كما هو المجرب ۔

**وائی : چا چه يوے ښځے ته په شهوت اوكتل او يا ئے گوتے وروړے په شهوت سره يا ښځے سړی ته گوتے وروړے په شهوت سره نو په سړی باندے ددے د مور او لور سره نكاح حرامه شوه ۔ خو كه ښځے سره په دبر كښ جماع اوكړی او انزال ئے هم اوشی نو په ده باندے د هغے مور او لور نه حراميږی بيا ئے ورله دا وجه وئيلے ده چه ځكه د چا چه انزال اوشی نو هغه يخ شی نو هغه بيا وطی نشی كولے او ځوك چه گوتے وروړی نو د هغه شهوت راوچت شی نو بيا وطی ته خبره رسی ۔**

**ليكن دا خبره غلطه ده ځكه چه ځوان كله وطی اوكړی نو لگ وخت بعد ئے بيا شهوت راپورته كيږی نو په دواړو كښ وطی طرفته افضاء شته ۔**

(۱۸۲) - ومن العجب : ان صاحب الهداية (۴۳۰/۲) قال : ان من قال : ان تزوجت فلانة فهى طالق فتزوجها وولدت فالولد منه - كيف يكون هذا ثم قال والتصور ثابت بان تزوجها وهو يخالطها فوافق النكاح الانزال الخ فتدبر فى هذا الهذيان ۔

وائی : چا چه اووئیل : که ما فلانئ سره نکاح اوکړه نو هغه به طلاقه وی نو نکاح ئے ورسره اوکړه او اولاد ئے پیدا شو نو دا به ددے سړی نه حسابیږی ۔

(۱۸۳) – ومن العجب : انهم قالوا : کما فی الهدایة (٤/٤٧٢) ولا بأس ببیع العصیر ممن یتخذه خمراً،، ۔

اقول : وقد قال اللّٰه تعالی : ولا تعاونوا علی الاثم والعدوان ۔

وائی : د انګوروړس په هغه چا باندے خرڅول جائز دی چه هغه ترے شراب جوړوی نو دے ظلم ته اوګوره چه ګناه باندے د پیسو دپاره تعاون کوی ۔

(۱۸٤) – ومن العجب انهم قالوا : کما فی الهدایة (٤/٤٧٢) – ومن آجر بیتاً یتخذ فیه بیت نار او کنیسة او بیعة او یباع فیه الخمر بالسواد فلا بأس به، ۔

اقول : وفیه بأس عظیم لمخالفة الشرع بکله۔

وائی : چا چه یو کور په اجاره ورکړو ددے دپاره چه په هغے کښې به مجوسیان اوربلوی او یا پکښې عیسایان ګیرجه او یهودیان بیعه جوړوی یا به په هغے کښې شراب خرڅیږی نو دا کار جائز دے ۔ او حال دا چه دا ټول کارونه د شریعت خلاف دی ۔

(۱۸٥) – ومن العجب : انهم قالوا کما فی الهدایة (٤/٤٧٣) – ومن حمل للذمی خمراً یطیب له الاجر ۔ وقد قال اللّٰه تعالی : ولا تعاونوا علی الاثم والعدوان – وقال علیه السلام : لعن اللّٰه فی الخمر عشراً – حاملها الخ واجاب عنه صاحب الهدایة بجواب سخیف بل هو تحریف ۔

وائی : که چا د ذمی سره شراب بار کړل نو مزدوری اخستل

ورلـه جائـز دی او حـال دا چـه دا تـعاون علی الاثم والعدوان دے ـ او نبی عـليه السلام فرمائی : الله تعالی په شراب وړونکی باندے هم لعنت کړیدے ـ

(۱۸٦) – ومـن الـعـجب : انه قال : فی (٤/٤٧٤) – انه يجوز ادخال اهـل الـذمة الـمسـجـد الحرام، وقد قال تعالی : انما المشركون نجس الآية واجاب عنه صاحب الهداية وتحرف فی الآية فجزاؤه بما يستحق ـ

وائـی : اهـل ذمه مسجد حرام ته داخلول جائز دی او حال دا چه الله تـعـالـی مشـركانو ته نجس وئیلی دی چه دا به مسجد حرام ته نشی داخلولے ـ

(۱۸۷) – ومن العجب : ان صاحب الهداية ذكر فروعاً كثيرة فی بـاب الـرهـن و كـلهـا مبنية علی ان الرهن مضمون وهذا الاصل خطأ وبـاطـل فتـلك المسائل كلها باطلة وهی نصف الكتاب والدليل علی بطلان حديث فی المشكاة : لايغلق الرهن له غنمه وعليه غرمه فتدبر ـ

صـاحـب د هـدايه ډير مسائل په باب د رهن كښ ذكر كړيدی او ټـول ئے پدے باندے بناء كړيدی چه رهن كښ ضمان شتـه او حال دا چه دا قاعده غلطه ده د حديث خلاف ده نو دا ټول مسائل غلط شو ـ

(۱۸۸) – ومـن الـعـجـب : ان هـنـاك سبـع عشـرة مسئلة خالف الـحـنـفية فيهـا النص ومع ذلك ادعوا الحق لانفسهم كما فی التنكيل (۲/٥–۱۷۳) مفصلاً ـ

پـه التـنـكـيـل كتـاب كـښ راغـلـی دی چه اولس مسائلو كښ احنافو د نص نه خلاف كړيدے ـ

(۱۸۹) – ومن العجب المضحك كما فی الهداية (٤/٦٠٦) ان

من جلس فی المسجد للتلاوة او ذکر اللّٰه فسقط علیه رجل فمات الساقط یضمن هذا الذاکر فتعجب ۔

**عجیبه واوره : وائی : څوك چه په مسجد کښ د تلاوت یا ذکر دپاره کیناستو او په ده باندے څوك راپریوتو او مړ شو نو دا ذکر کونکے به ضامن وی ۔ ځکه دا ولے بے وقته مسجد کښ ناست دے۔**

(۱۹۰) ۔ ومن العجب کما فی الهدایة (٤/٤٢٨) ان المزارع لو کرب الارض فامتنع رب الارض عن المزارعة فلا شیء للعامل، قلت : انه ظلم لا دلیل علیه ۔

**وائی : که فصل والا زمکه واړوله او د زمکے مالك د مزارعت نه منع اوکړه نو د کار کونکی دپاره به هیڅ مزدوری نه وی او حال دا چه دا سراسر ظلم دے او بے دلیله خبره ده ۔**

(۱۹۱) ۔ ومن العجب انهم قالوا : یطلب الشفیع الشفعة ولو کان فی الصلاة (٥/١٨٥) الهندیة ۔

**وائی : شفیع به شفعه طلب کوی اګرکه په مانځه کښ وی نو د مانځه نه ورته شفعه ضروری ښکاری ۔**

(۱۹۲) ۔ ومن العجب : انهم قالوا الخمر لا تتخذ الا من تمر وعنب وما صنع من غیر ذلك فلیس بخمر کما فی الهدایة مع ان هذا یخالف الاحادیث الکثیرة : ومن عموم قوله علیه السلام : کل مسکر خمر فتدبر کیف اباحوا للناس الخمر المتخذة من مواد غیرهما ۔

**وائی : شراب صرف د انګورو او کجورو نه جوړیږی نه د باقی څیزونو نه او حال دا چه نبی علیه السلام فرمائی : هر نشائی شے شراب دی ۔**

(۱۹۳) - قالوا لا يجوز رد السلام في الصلاة باليد مع ان هذا يخالف حديث ابن عمر حيث رد الرجل السلام بالقول فارشده ابن عمر الى الرد باليد كما في المشكاة (۹۱/۱) ۔

**وائی : په مانځه کښې په لاس سره د سلام جواب ورکول جائز نه دی او حال دا چه عبد الله بن عمر یو سړی ته چه هغه په خوله جواب ورکړو اوفرمائیل : په لاس اشاره کوه او خبرے مه کوه ۔**

(۱۹٤) - ومن العجب : انهم قالوا لايفيد خبر الواحد الا الظن مع ان هذا يخالف عامة الاحاديث فان اكثر الدين قد نُقِلَ الينا بطريق الآحاد فان جبريل واحد ومحمد بيّنه للناس وهو واحد وارسل النبی ﷺ وُحدان الصحابة الى اقطار الارض والملوك بالخطوط ولم ير احد من الصحابة هذا الرأى السخيف بان خبر الواحد يفيد الظن دون القطع ۔

**وائی : خبر واحد مفید د ظن دے او حال دا چه دا د عام احادیثو خلاف خبره ده ځکه اکثر دین مونږ ته په طریقه د اخبار احادو رارسیدلی دے ځکه جبرئیل یو دے محمد ﷺ یو دے او نبی علیه السلام به یو یو کس له خطونه ورکول بادشاهانو دپاره او په صحابه کرامؓ کښې د هیڅ صحابیؓ دا رأیه نه وه۔**

(۱۹۵) - الرسول ﷺ قال في البحر : هو الطهور ماؤه والحل ميتته رواه البخارى وغيره فاباح ما في البحر من ميتات الحيتان وقالت الحنفية : السمك الطافى حرام ، وقد قال الله تعالى : احل لكم صيد البحر وطعامه متاع لكم ) وقد قال ابوبكر الصديق : السمك الطافى حلال، علقه البخارى ۔

**حدیث کښې دی چه د دریاب ټول حیوانات پاك دی احناف وائی : سمك**

طافی ( هغه ماهی چه د دریاب سر ته دریاب گوزار کړے وی ) مکروه دے ۔

(١٩٦) – قالوا : یکره سؤر السنور مع ان الرسول ﷺ قال : انها من الطوافین علیکم والطوافات وقد اصغی لها ابوقتادة الاناء لیشرب مائها کما ورد الحدیث بذلك فی البخاری ۔

**وائی : د پیشو جوټه مکروه ده او حال دا چه رسول الله ﷺ فرمائی دا په تاسو ډیره گرځی راگرځی نو ددے په جوټه کښې څه حرج نشته او ابوقتاده رضی الله عنه ورته لوښے گوږ کړو چه اوبه اوسکی ۔**

(١٩٧) – ومن العجب انهم قالوا : سؤر الحمار والبغل مشکوك فیه ۔ مع ان مسائل الدین لایشك فیها ان شك عالم لا یشك آخر لانه لا یوجد مسئلة فی الدین یشك فیها جمیع العلماء حتی تبقی الی یوم القیامة متروکة بلا عمل فابوحنیفة ان شك فی سؤرهما فلم یشك فیه آخرون فحکم سؤرهما معلوم من الدین وهو قوله علیه السلام : (الماء طهور لاینجسه شیء ) (ابوداود) ولم یرد دلیل علی نجاسة سؤر الحمار والبغل بل ولا سائر السباع لاحادیث کثیرة لیس هذا موضع ایرادها ۔ ولایجوز القیاس عند وجود النص ۔

**وائی : د خر او قچر جوټه کښې شك دے، حال دا چه د دین په مسائلو کښې شك نشته بلکه که د یو عالم شك وی نو د بل به شك نه وی په دین کښې شکی مسائل نشته چه ټول علماء دِے پکښې شك اوکړی او هیچا ته دِے د هغے راجح او مرجوح معلوم نه شی ۔ نو که د امام ابوحنیفه پدے باره کښې شك وی او تعارض د دلائلو ورته ښکاره شوے وی نو نور علماء پکښې شك نه کوی بلکه ددے حکم دا دے چه دا پاکه ده ځکه حدیث کښې دی : اوبه**

پاکے دی هیڅ شی سره نه پلیتیږی ( مګر هله چه خوند رنګ بوئی ئے خراب شی ) ۔

(۱۹۸) – ومن العجب : ان الرسول ﷺ قال فی حدیث صحیح : البکر بالبکر جلد مائة وتغریب عام ، والحنفیة قالوا : لو زنی البکر بالبکر یجلد مائة ولا یغرّب وقالوا التغریب حکم سیاسی لیس بشرعی فخالفوا حدیث الرسول ﷺ بالعقل ۔ هذا

نبی علیه السلام وائی که ځوان هلك او پیغلے زنا اوکړه نو سل دُرے به ورکولے شی او یو کال به د کلی نه شړلے شی او احناف وائی : تغریب په کښ نشته بلکه دا سیاسی حکم دے او شرعی حکم نه دے نو په عقل ئے د حدیثو خلاف اوکړو ۔

ولو تتبعنا هذه الاقوال المخالفة للنصوص لوجدتها اکثر من سبعین ضعفاً من کتب المذهب الحنفی ولکن العاقل تکفیه الاشارة، هذا ما کتبناه غیرةً علی السنة ودفاعاً عنها لا تعصباً وعناداً والله الموعد ۔

دا وو هغه مسائل چه د قرآن او حدیث او د سلیم عقل خلاف وو او دا صرف په طریقه د مشت نمونه خروار وو که مونږ د دغه شان اقوالو اراده اوکړو نو ډیر زیات به پیدا کړو لیکن عاقل له اشاره کافی وی دا څه چه مونږ اولیکل دا په سنت باندے غیرت وو او د سنت دفاع وه او پدے کښ زمونږ څه تعصب او عناد د چا سره غرض نه دے ۔او الله تعالی ته به مونږ ټول ورګرځوو او د هغه مخکښ به اودریږو خو مقصود پدے کښ دا دے چه هر مسلمان د حق طلبګار شی چه هر عالم سره وی او د هر یو عالم ټول مسائل

صحیح نه وی بلکه په څلور مذهبونو کښې غلط او صحیح مسائل شته نو ښه به ترې راخستې شی او غلط به ورته واپس کولې شی او همدا انصاف دے۔

**تنبیه** : محترم قارئینو ته دا معذرت کوو چه شیخ صاحب دغه مسائل عربی کښې لیکلی وو لیکن مونږ د بعض ملګرو په مشوره د هغه عربی سره سره حاصل ترجمه اوکړه دے دپاره چه د کتاب فائده عوامو ورونو ته هم اورسی لهذا که په ترجمه کښې کومه جلتې شوی وی نو دا به زما د طرفه وی والسلام۔ اخوکم ابوزهیر سیف الله۔

# فصل

دا نور مسائل دی چه پدے کښ د دیوبندیانو او صوفیاؤ او فقهاؤ خطاء خبرے دپاره د عبرت راجمع دی :

## د بریلیانو نه ئے په څه کښ فرق دے ؟

۱- یوه ورځ حضرت غوث الاعظم د دوه اولیاؤ سره ناست وو، ناڅاپه ئے د بصیرت په نظر اولیدل چه یو جهاز په اوبو کښ غرقیدو ته نزدے شوے، نو هغه (پیران پیر) په خپل همت او باطنی توجه سره هغه د غرقیدو نه بچ کړو۔

امداد المشتاق ص (٤٦) د مولوی اشرف علی تهانوی

## په احنافو کښ صحابه هم شته :

۲- مولوی قلندر صاحب (یو حنفی ملا) په ویښه په خپلو ظاهری سترګو رسول الله ﷺ لیدلے دے ۔

امداد المشتاق ص (۱۰۵)

۳- یو سپے د نورو سپو شیخ (پیر) جوړ شو او کمال ته اورسیدو ده به مراقبه کوله، نورو سپو به دده نه حلقه جوړه کړے وه :

جنید بغدادی ناست وو چه مخامخ ئے یو سپے تیر شو، نو دده نظر پرے اولګیدو نو هغه سپی دومره کمال والا شو چه د ښار ټولو سپو په ده پسے منډه کړه نو هغه سپے یو ځائے څملاستو، ټولو سپو ورنه حلقه ګیر چاپیره واچوله، مراقبه ئے وکړه ۔ امداد المشتاق (۱۰۷) ومثله فی (١٦٤) ۔

٤- په دنيا کښې هم د الله ليدل کيدے شی : ليکن پدے وخت کښې انسان په خپل هوش کښې نه وی ۔ امداد المشتاق ص (۷۸)۔

٥- ځمکه په غوئی ده او غوئی په ماهی او ماهی په اوبو او اوبه په هواء ۔ امداد المشتاق (۷۷) ۔

٦- مجلس ميلاد ته د رسول الله ﷺ راتلل څه بعيد نه دی ۔ امداد المشتاق ص (۵۸) ۔

۷- کله کله (انسان د عبادت) په وجه داسے حالت ته رسيږی چه د هغه نه تکاليف شرعيه (عبادتونه) ساقطيږی، ليکن دا حالت يوه لمحه دوه لمحے وی ۔ امداد المشتاق ص (۲۰) ۔

## پيران پير د الوهيت په درجه کښې :

۸- پيران پير چه دا وئيلی قدمی علی شهاب اولياء الله ۔ نو پدے وخت کښې هغه د الوهيت يعنی عروج په مرتبه کښې وو،او شيخ معين الدين چشتی د عبديت يعنی نزول په درجه کښې وو ۔ امداد المشتاق ص (٤٥) ۔

۹- دوی د وحدت الوجود عقيده لری خوپتهوی ئے، خپله د دوی اقرار واوره :

دا مسئله حقه او صحيح او د واقع مطابق ده، پدے مسئله کښې هيڅ شك او شبهه نشته دا د ټولو مشائخو عقيده ده مگر هغوی داسے خبره هسے وائی نه کنه تصديق ئے وربانديے شته يعنی پدے مسئله کښې يقين او تصديق کافی دے او پټول ئے لازم دی ددے ښکاره کول جائز ندی، دا نازکه مسئله ده او دينه د عوامو بلکه د علماؤ ذهن عاری دے ۔ امداد المشتاق ص (٤٣)۔

۱۰- فقهاء په محدثینو فضیلت لري، ځکه دوی روایت د محدثینو نه کوي لیکن درایت د رسول الله ﷺ نه فیض حاصلوي۔ امداد المشتاق ص (٤٠)۔

۱۱- مولانا روم مادرزاد ولي وو، هغه په وړوکوالي کښې څلورم آسمان ته دوه ملائکو خیژولے وو هلته ئے عجائبات او غرائب لیدلي، بیرته ئے زمکے ته راکوز کړو۔ امداد المشتاق ص (۱۵۳و ١٥٤)۔

په ارواح ثلاثه د اشرف علي صاحب دیوبندي ص (۲۷۱) حکایت (۲٥٤) کښې دي چه مولانا عبد الرحمن خان صاحب ډیر د کشف خاوند وو د کشف حالت ئے دومره وو چه چا به هلك یا جینۍ ته تعویذ غوختلو نو ده به بے تکلفه ورته ویل: څه ستا به هلك وي یا به ئے ویل: جینۍ به وي، خلکو ورته ووئیل: چه حضرت! دا ته ئے څنګه ورښائے؟ نو هغه ووېل: څه وکړم بے سو چه ددے مولود صورت زما مخامخ راشي۔

(ویعلم ما في الارحام) آیت چرته لاړو؟ د الله خصوصي صفت هم دے خلقو الله تعالی ته پرے نه ښودو هغے کښې ئے هم ورسره خپل مشران شریك کړل۔ افسوس پداسے عقیده!۔

۱۲- محمد یاسین صاحب دیوبندي وائي: چه په قاضي پور کښې حضرت نانوتوي صاحب ته روافضو اووئیل: که ته مونږ ته په ویښه رسول الله ﷺ اوښائے او هغه په خپله ژبه ووائي چه ته رشتیا وائے نو مونږ به اهل سنت والجماعت شو؟۔

نو (حضرت نانوتوي) ورته ووئیل چه تاسو پدے خبره کلك اودریږئ زه په ویښه هم د هغه سره ملاقات کولو ته تیار یم۔

ارواح ثلاثه ص (۲۸۳) (۲۸٤) طبع اسلامی اکیډمی ۔
فتاوی عالمګیری کښې دی ص (۱/٤٥) :

۱۳ – اذا اصابت النجاسة بعض اعضائه ولحسها بلسانه حتی ذهب اثرها یطهر ۔

یعنی کوم اندام باندے چه نجاست اولګی او هغه په ژبه دومره اوڅټی چه اثرئے ختم شی نو پاکیږی ۔

ومثله فی الدر المختار ص (۱/۲۰٥) ۔

۱٤ – که چاړه نجسه شی او په ژبه اوڅټلے شی نو پاکیږی ۔
فتاوی عالمګیری (۱/٤٥) ۔

۱٥ – ولو لحس الثوب بلسانه حتی ذهب الاثر فقد طهر کذا فی المحیط ۔ یوه نجسه جامه که په ژبه دومره او څټلے شی چه د هغے اثر ختم شی نو هغه پاکه شوه ۔ فتاوی عالمګیری (۱/٤٥) ۔

۱٦ – که سپے کوهی ته پریوځی نو اوس به څه کیږی ؟ :
ولو اخرج حیًا ولم یصب الماء فمه لایفسد ماء البیر، درمختار (۱/ ) ۔

که سپے ئے ژوندے رااوویستو او خولے ته ئے اوبه نوی رسیدلی نو د کوهی اوبه نه مرداریږی ۔

## طبابت او ډاکټری :

۱۷ – درمختار (۱/۷۸) کښې دی :

چه لا طولاً ولا مضطجعاً فانه یورث کبر الطحال ولا یقبضه فانه یورث الباسور ولا یمصه فانه یورث العمی، ثم یغسله والا فیستاك الشیطان به ولا یزاد علی شبر والا فالشیطان یرکب علیه ولا یضعه بل ینصبه والا فخطر الجنون ۔

یعنی مسواك به په اوږدو او په ډډه وهلو سره نه وهی بیا ئې تورے غټیږی او نه به ئې په موتی کښې نیسی ځکه دا بواسیر پیدا کوی او نه به ئې چُپی ځکه دا ړوندوالے راولی ـ د مسواك کولو نه پس به مسواك وینځلے شی که نه وی نو بیا شیطان ورباندے مسواك وهی او د لویشت نه به غټ نه وی ګنے نو بیا شیطان پرے سوریږی او نه به ئې ځملوی ګنے نو د لیونتوب ویره ده ـ

۱۸ – که ګوته خپل مقعد (دبر) ته داخله کړی نو که وچه راووته نو پدے سره اودس کول نه لازمیږی ـ درمختار (۱/ ۱۰۱) ـ

**۱۹ - یا الله توبه :**

درمختار کښې دی که یو سړی یو حیوان لکه خره، سپی، غوا وغیره وطی کړی یا د مړے ښځے سره وطی وکړی یا یو داسے وړه جینئ وطی کړی چه هغه د جماع قابله نه وی او پدے سره ئې (دا وحشی) څیری کړی او خپل عورت ورداخل هم کړی نو پدے ټولو صورتونو کښې به اودس نه ماتیږی (غسل خو لرے خبره ده) ـ

ولا عند وطی بهیمة او میتة او صغیرة غیر مشتهاة بان تصیر مفضاة بالوطئ وان غابت الحشفة لا ینقض الوضوء ـ درمختار (۱/۱۱۲) ـ

د امام ابو حنیفهؒ په نیز د ذکر وینځل هم ورباندے نشته ځکه هغه وائی چه د فرج دننه لوندوالے پاك دے۔

طحطاوی (۱/ ۹٤) درمختار (۱/ ۱۱۲) ـ

او کوم چه د فرج د خارج لوندوالے دے نو دا خو بالاتفاق (بین الامام والصاحبین) پاك دے ـ درمختار (۱/ ۱۱۲) طحطاوی (۱/ ۹٤)۔

او ولے به غسل او اودس دارنګه د خپل عورت وينځل لازميږی ځکه د احنافو خو دا مذهب دے چه فرج البهيمه کفيها ـ د حيوان لکه خره، غوا، ګډے بزے عورت خو د هغے د خولے په شان دے ( پدے سره غسل نه لازميږی ) ـ

درمختار (۱/۱۱۲) ـ

۲۰ـ والايلاج فی البهيمة والميتة والصغيرة التی لا يجامع مثلها لايوجب الغسل بدون الانزال ـ

د حيوان، مړے ښځے هغه وړه جينئ چه بالغه نه وی د جماع قابل نه وی دوی سره د جماع په کولو غسل نه لازميږی تر څو چه انزال اونشی ـ درمختار (۱/۱۱۲) فتاوی عالمګيری (۱/۱۵) ـ

لکه طحطاوی (۱/۹٤) کښې هم دا ورسره راغلی چه فلا يلزمه غسل الذکر ايضاً ـ

يعنی د ذکر وينځل هم پدے صورت کښې ضروری ندی ـ

۲۱ـ ولو کف علی ذکره خرقة واولج ولم ينزل قال بعضهم لايجب والاصح ان کانت الخرقة رقيقة بحيث يجد حرارة الفرج واللذة وجب الغسل والا فلا ـ

فتاوی عالمګيری، درمختار (۱/۱۱۱) طحطاوی (۱/۹۳) ـ

مطلب : که چرته خپل عورت ئے په کپړه کښې د ښځے عورت ته ورداخل کړو نو بعضے فقهاؤ ويلی دی چه غسل نه واجبيږی ـ صحيح دا ده چه که کپړه دومره نرئ وه چه د فرج ( د ښځے عورت ) ګرم والے او خوند ئے محسوس کړو نو غسل لازميږی، ګنے نه لازميږی ـ

۲۲- وان اولج الخنثی المشکل ذکره فی فرج امرأة او دبرها فلا غسل علیهما۔ **فتاوی عالمگیری (۱/۱۵) درمختار (۱/۱۰۹)**

**مطلب: که هیجړا د ښځې په مخکنی یا روستنی عورت کښې خپل ذکر ورننه کړونو په دواړو غسل نشته۔**

۲۳- وان اولج رجل فی فرج خنثی مشکل لم یجب علیه الغسل **۔فتاوی عالمگیری (۱/۱۵)**

**یعنی که یو سړی د هیجړا په عورت کښې خپل عورت ننه کړونو پدے سړی غسل نه واجبیږی۔**

**۲٤- که خپله دبره (کونه) کښې یو سړے خپل ذکر ننه کړی نو غسل وربانديے نه لازمیږی پدے شرط چه انزال ئے نه وی شوے ۔ درمختار (۱/۱۰۹) طحطاوی (۱/۹۲)۔**

۲۵- فلو ولج ذکر البهائم فی فرجها لاغسل علیها ما لم تنزل صرح به فی البنایة حاشیة شرح الوقایة (۱/۸۲)۔

**که یوے ښځې د حیوان ذکر په خپل فرج کښې ننه کړونو پدے غسل نشته تر څو چه انزال ئے اونشی۔**

**په لاندینو صورتونو کښې حد نشته**

۲۶- لو تزوج خمساً فی عقدة او تزوج الخامسة فی نکاح الاربع او تزوج باخت امرأته او بأمها فجامعها وقال علمت انها علی حرام او تزوجها متعة لایجب الحد فی هذه الوجوه وان قال علمت انها علی حرام کذا فی فتاوی قاضی خان ۔

**یعنی که یو سړی پنځه ښځے په یو ځل اوکړی**
**یا پنځمه ښځه د څلورو دپاسه وکړی**

يا د خينى سره نكاح وكړى
يا د خوابنيے سره نكاح وكړى
يا ئے متعه (د شيعه ګانو نكاح او د مسلمانانو په نيز زنا) وكړه نو پدے ټولو صورتونو كښ پدے (مجرم) سړى حد نشته اګر كه دہ ته دا ښه معلومه وى چه دا كار په ما باندے په اسلام كښ حرام دے ـ عالمګيرى (۱٤۸/۲) الباب الرابع ـ

## ۲۷- په كرايه سره زنا كولو كښ حد نشته :

استأجر امرأة ليزنى بها، او ليطئها او قال خذى هذه الدراهم لاطأكِ او قال مكنينى بكذا ففعلت لم يحد **فتاوى عالمګيرى** (۱٤۹/۲) درمختار ـ

يعنى يو سړى يوه ښځه په كرايه د زنا دپاره اونيوله او يا ئے ورته اووئيل چه دا پيسے واخله چه زه دِے وطى كړم او يا ئے ورته اووئيل ما ته ځان راكړه نو دے ښځے دا كار وكړو پدہ حد نشته ـ

## ۲۸- روغه ليونئ :

اذا زنى صبى بامرأة عاقلة وهى مطاوعة فلا حد على الصبى والمجنون بلا خلاف وهل تحد المرأة فعل قول علماء نا رحمهم اللّٰه لا تحدّ ـ فتاوى عالمګيرى (۲/ ۱۵۰) الباب الرابع فى الوطء الذى يوجب الحد والذى لا يوجب ـ

يعنى كه يو ماشوم يا ليونے ديوے عاقلے ښځے سره زنا وكړى او ښځه ورته تابع او راضى وى نو په ماشوم اوليونى خو بالاتفاق حد نشته پاتے شوه ښځه نو زمونږ علماء (احناف) په نزد په دغه (روغه ليونئ) هم حد نشته ـ

٢٩- رجل زنی بصغیرة لا تحتمل الجماع فافضاها لا حد علیه ـ
کـه یـو سړی د وړے جینئ سره چه هغه د جماع قابله نه وی زنا وکړه او هغه ئے خیرے کړه نو پدے (وحشی انسان) حد نشته ـ
فتاوی بزازیه هامش فتاوی عالمگیری (٤٦٩/٣)

## ٣٠- آسان چل :

اذا زنی بامرأة ثم قال : اشتریتها لا حد علیه سواء کانت حرة او امة ـ
کـه یـو سړی د یـوے ښځے سره زنا وکړه او بیا ووائی چهٔ مـا اخستے ده نو پده حد نشته که دا حره وی او که وینځه ـ
فتاوی عالمگیری (٢/ ١٥١)

## ٣١- عام اجازت :

کل شیء صنعه الامام الذی لیس فوقه امام مما یجب الحد کالزنا والسرقة والشرب والقذف لا یؤاخذ به ـ
فتاوی عالمگیری (١٥١/٢)
کـه حاکم اعلیٰ هر داسے کار وکړی چه د هغے په وجه حد لازمیږی لکه زنا، غلا، شراب څکل، په دروغه تهمت لګول نو هغه به پدے نه رانیول کیږی ـ

## واده کړے ښځه :

٣٢- ولو تزوج امرأة لها زوج فوطئها لا حد علیه عند ابی حنیفة ـ
کـه میړوښے ښځے سره واده وکړی او د هغے سره جماع وکړی نو د امام صاحب په نزد په ده حد نشته ـ

## ددے نه پس جائز دی :

٣٣- فتاوی هندیه کښې دی :

که د یوې ښځې سره زنا اوشي نو د هغې د مور، لور، نیا، نمسی ته کتل هم جائز دی، د هغوی سره لاس لګول هم جائز دی د هغوی چاپې کول د حائل نه بغیر هم جائز دی همدا صحیح خبره ده ۔

وان كانت حرمة المصاهرة بالزنا قال بعضهم لا يثبت فيها اباحة النظر والمس وقال شمس الائمة السرخسی تثبت اباحة النظر والمس لثبوت الحرمة المؤبدة – هو الصحيح وحل النظر اليه حل مسه ونظره وغمزه من غير حائل ۔

۳٤– درمختار کښې دی : چه که په یو قاضی د دروغو ګواهانو د ګواهی په وجه یوه ښځه د سړی نه جدا کړه نو دے دروغجن ګواه ته ددے ښځې سره نکاح کول جائز دی ۔

وكذا حل لشاهد زور ۔

۳۵– ویحل له وطی امرأة ادعت علیه ۔

مطلب : که یوې ښځې په یو سړی باندے په دروغه دعوه وکړی او د دروغو شاهدان تیر کړی چه دے سړی ما سره نکاح کړے او قاضی فیصله وکړی نو سړی دپاره وطی کول جائز دی ۔

دارنګه که سړی په دروغه ګواهان تیر کړل او قاضی فیصله وکړه نو ده ته وطی ورسره جائز ده ۔ اګرکه ښځه انکار کوی ۔

درمختار ونحوه فی الهندیه ۔

## روژه دار :

۳٦– که یو سړے لیونۍ یا اوده ښځه وطی کړی نو په ده د روژے کفاره نشته ۔ (درمختار)

## د خولی او عورت فرق نشته :

۳۷- درمختار (۱۱۲/۱) کښې دي :

فرج البهيمة كفيها ۔

د حيوان عورت د هغې د خولې په شان دے ۔

**۳۸- بې ادبه خوك دي ؟ د قرآن ادب :**

اذا حمل المصحف او شيئاً من كتب الشريعة على دابة في جوالق وركب صاحب الجوالق على الجوالق لا يكره ۔

فتاوى عالمگيرى (۳۲۲/۵) ۔

كه قرآن كريم يا د دين نور كتابونه په بوجو كښې واچولے شي او په سورلئ باندے واچول شي او بوجو والا په بوجو دپاسه كينى نو جائز ده ۔

۳۹- اذا كتب اسم الله تعالى على كاغذٍ ووضع تحت طنفسةٍ يجلسون عليها فقد قيل يكره وقيل لا يكره ۔ فتاوى عالمگيرى (۳۲۲/۵) تصنيف (۵۰۰) علماء ۔

كه په كاغذ د الله نوم اوليكل شي او د داسے بسترے لاندے كيښودل شي چه په هغې كينى چا وئيلي دي چه دا كار مكروه دے او چا وئيلي دي چه ندے مكروه ۔

۴۰- فتاوى عالمگيرى (۳۵۶/۵) كښې دي چه په مردار پوست قرآن ليكل جائز دي ۔

۴۱- فتاوى عالمگيرى كښې دي :

رجل وضع رجله على المصحف ان كان على وجه الاستخفاف يكفر والا لا ۔

كه يو كس په قرآن باندے د سپكاوى په نيت خپه كيږدي نو كافر كيږي او كه سپكاوے په نيت كښې نه وي نه كافر كيږي ۔

۴۲ – فتاوی قاضی خان باب الحظر والاباحه (۳۶۵/۴) او فتاوی سراجیه (۷۵) بحر الرائق او رد المحتار کښې دی :
والذی رعف فلا یرقأ دمه فاراد ان یکتب بدمه علی جبهته شیئاً من القرآن قال ابوبکر الاسکاف یجوز، قیل لو کتب بالبول ؟ قال : لو کان فیه شفاء لا بأس به ۔

یعنی که د یو سړی د پوزې نه وینه روانه وی او وینه راواخلی او په تندی باندې پرې د قرآن کریم څه حصه اولیکی نو جائز ده ۔
بیا ابوبکر الاسکاف ته ووئیل شو چه که په امتیازو باندې اولیکل شی نو هغه ووئیل چه که هغې کښې شفاء وی خیر دې جائز ده ۔

## د قرآن کریم غلا :

۴۳ – لا قطع فی سرقة المصحف وان کان علیه حلیة تساوی الف درهم فتاوی عالمگیری ۔
د قرآن کریم په غلا لاس پریکول نشته اګر که په هغه باندې د زرو روپو په اندازه ګاڼه وی ۔

## د کتب خانو غلا :

۴۴ – وکذا لا قطع فی کتب الفقه والنحو واللغة والشعر ۔
همدارنګه د فقه، نحو، لغت او شعر په کتابونو غلا کولو قطع نشته ۔ فتاوی عالمگیری ۔

## غلو ته عجیبه عجیبه چلونه خودل :

۴۵ – ولو رمی الی صاحب له خارج الحرز فاخذ المرمی الیه لا قطع علی واحد منهما ۔
که یو غل دننه وی بل بهر نو دننه کس ئې بهر فی ته مال او

غورځوی او هغه ئے واخلی په دواړو باندے لاس پریکول نشته ـ
فتاوی عالمګیری ـ

٤٦ـ ولو كان فی الدار نهر جارٍ فرمی المتاع فی النهر ثم خرج واخذه ان خرج بقوة الماء لا يقطع ـ

تــه کور کښے روان نهــر وو، غــل مــال ورګــذار کړه هغــه اوبو وويستــل او بيا روسته غله راواخستــل نو د هغه لاس نه پريکيږی-

## د نائی په لاس سره زير ناف ويښته خرئيل

٤٧ـ حلق عانة بيده وحلق الحجام جائز ان غض بصره ـ فتاوی عالمكيری (٥/٣٥٨).

د نامه نه لاندے ويښتان په خپل لاس خرئيل او يا د نائی په ذريعه ـ

## تقوىٰ :

٤٨ـ ان كانت لا تشتهی لا بأس بمصافحتها ومس يدها ـ

کـه داسے ( زړه ښځه ) وی چه هغے ته اشتهاء نه راولاړيږی نو د هغے سره لاس لګول يا سترګی مشی کول څه باك نه لری ـ
فتاوی عالمګیری، بزازيه (٦/٣٧٢) ـ

## غاړه ورکول :

٤٩ـ لا بأس بان يعانق العجوز من وراء الثياب

کـه د جامـو سره د بوډئ ښځے سره په غاړه سترګی مشی اوشی څه باك نه کوی ـ فتاوی عالمګیری (٥/٣٢٩).

٥٠ـ لا بأس بالنظر الی شعر الكافرة ـ

د کافری ښځے ويښتانو ته کتل هيڅ باك نه لری ـ
فتاوی عالمګیری ـ

۵۱- اما النظر الى الاجنبيات فنقول : يجوز النظر الى مواضع الزينة الظاهرة منهن وذلك الوجه والكف ـ

د اجنبياتو ( پردو ښځو ) د نظر په باره کښې مونږ وايو چه د هغوی د زينت ځايونو لکه ورغوی او مخ ته کتل جائز دی ـ
فتاوی عالمګيری ـ (۵/) الباب الثامن فيما يحل للرجل النظر اليه.

۵۲- خپو ته ئے هم کتل جائز دی ـ فتاوی عالمګيری ۳۲۹/۵

۵۳- غاښونه او پونډو ته هم ـ فتاوی عالمګيری : ۳۲۹/۵ .

۵٤- صحيح دا ده چه په سورلی سورولو او د هغے نه په ښکته کولو کښې د پردئ ښځے سره مرسته کولے شی يعنی په غيږ کښے اوچتول او ښکته کول شو ـ فتاوی عالمګيری ـ

۵۵- د امام صاحب نه نقل دی چه د حمام والا د سړو عورت ته کتلے شی ـ فتاوی بزازيه (۳۷۲/٦) ـ

۵٦- په حمام کښې پرتوګ ويستل ( عورت بربنډه ول د خلکو په حضور کښې ) ګناه نده، ځوك چه ورته ګوری نو هغه ګناهګار دے ـ فتاوی بزازيه (۳۷۳/٦) ـ

۵۷- ولا بأس بان يواجر منزله من نصرانی يبيع فيه او يتخذه بيعة او بيت نار ـ كذا فی التتارخانيه فتاوی عالمګيری ۱۱٦/۳ .

نصرانی ته كور په كرايه وركول د خرڅولو دپاره يا د كليسا جوړولو دپاره يا د اور بلولو دپاره څه باك نه لری ـ
فتاوی بزازيه (۳۷۰/٦) ـ

۵۸- والشعير المأخوذ من بعر الابل يغسل ويؤكل ويباع ـ
فتاوی بزازيه (۳٦۵/٦) ـ کومے اوربشے چه اوښ وخوری او بيا

ئے په پچو کښې اوغورځوی نو د وینځلو نه پس ئے خوړلے هم شی او خرخولے هم شی ۔

۵۹- د امام صاحب په نزد عام مسلمان (فاسق لکه چرسی، زانی وغیره) د عامو ملائکو نه غوره دے ۔ رد المحتار (۳۵٤/۱) ۔

٦۰- ولا بأس ببيع العصير ممن يتخذها خمراً ولا ببيع الارض ممن يتخذها كنيسةً ۔

په هغه چا انګور خرخول چه د هغے نه شراب جوړوی او په هغه چا ځمکه خرخول چه په هغے کلیسا جوړوی څه باك نه لری ۔

خو که چرته اهل حدیث د مسجد دپاره ځمکه اخلی نو بیا لا بأس نشته بلکه د هغه مخنوی دپاره هره حربه استعمالولے شی لږ انصاف پکار دے !! ۔

## د خره او سپی غوښه خرخول جائز دی :

٦۱- اذا ذبح كلبه وباع لحمه جاز وكذا ذبح حماره وباع لحمه ۔

سپے چه کله ذبح کړی او د هغه غوښه خرخوی نو جائز ده، دارنګه که خر حلال کړی او د هغه غوښه خرڅه کړی نو جائز ده ۔ فتاوی عالمګیری (۱۱۵/۳)

٦۲-فتاوی عالمګیری کښې دا هم راغلی دی : ويجوز بيع لحوم السباع والحمر المذبوحة فى الرواية الصحيحة ولا يجوز بيع سباع الميتة ۔ یعنی د صحیح روایت مطابق د درندګانو (لکه شرمخ، پړانګ ګیدړوغیره) غوښے او د ذبح کړے شوی خرو غوښه خرخول جائز دی او د مردار شوی درندګانو خرخول جائز نه دی ۔ عالمګیری (۱۱۵/۳)

۶۳- فقهاؤ ليکلي چه که د مانځه په مينځ کښ د عربي نه بغير دعاء اوشي نو دا کار حرام دے ليکن مونځ پرے نه فاسديږی ۔ (ارواح ثلاثه ص: (٤٥١) ۔

٦٤- يو معتبر حنفي ملا په شوافعو پسے په مکه کښ مونځ کولو نو هغوی چه به کله قنوت وئيل، عام احناف به چپ ولاړ وو نو دغه معتبر عالم دا اشعار په فارسي کښ وئيل شروع کړل اشرف علي صاحب ليکي : دده دا کار ځکه حرام نه وو چه دے مغلوب الحال وو ۔ ارواح ثلاثه ص (٤٥١) ۔

٦٥- د امام صاحب نه نقل دی چه د حمام مالك د سړو عورت ته کتلے شي ۔ بزازيه (٣٧٢/٦)۔

٦٦- د ښځو سنتول سنت دی ۔ بزازيه (٣٧٢/٦) ۔

## اوده سړی سره زنا کول :

٦٧- ولو مكّنت نفسها من النائم لايجب عليهما الحد كذا في محيط السرخسي ۔ عالمگيری (١٥٠/٢)

يعني که يوے ښځے اوده سړے په ځان باندے واچولو نو په دواړو باندے حد نشته ۔

## د لاس وهلو حکم :

٦٨- شامي کښ دی (١٥٦/١) : موټك د شهوت راپيدا کولو دپاره صحيح نه دے ليکن که انسان په ډير شهوت کښ وی او ښځه نه لري نو که دغه کس د شهوت سړولو دپاره موټك اووهلو نو اميد دے چه په ده به څه ګناه نه وی او که چرے د شهوت د غلبے نه په زنا کښ د واقع کيدو خطره وی نو بيا ورباندے موټك وهل

واجب دی۔

## د کومې يوې به غټ وی ؟

۶۹- فتاوی عالمگیری په الفصل الثالث فی تعلیق الطلاق کښې دی : ولو قال لامرأتین له او سعکما فرجاً هی طالق یقع علی اعجفهما وقال الشیخ الامام ظهیر الدین یقع علی ارطبهما کذا فی الخلاصة فتاوی عالمگیریه (۱/٤۳۵)

که يو سړی خپلو دوو ښځو ته اووئيل : په تاسو کښې چه د چا فرج ( اندام مخصوصه ) کھولاو وی نو هغه دِې طلاقه وی، نو په دې دواړو کښې چه کومه يوه خواره ( يعنی د بدن نه وچه ) وی نو هغه به طلاقيږی ۔ او شيخ امام ظهير الدين صاحب وئيلی دی چه هغه يوه به طلاقيږی کومه چه چاقه وی ۔

## پټه يارانه او که نکاح ؟

۷۰- رجل خطب امرأة الی نفسها فاجابته الی ذلك و کرهت ان يعلم بذلك اولياؤها فجعلت امرها فی تزويجها اليه يجوز هذا النكاح، وان كان الزوج كره ان يسميها عند الشهود فما الحيلة فی ذلك ( قال) : الحيلة انه اذا جعلت امرها اليه فی النكاح و كان توافق معها علی المهر فالزوج يجیئ الی الشهود ويقول لهم انی خطبت امرأة الی نفسی وبذلت لها من الصداق كذا فرضيت بذلك وجعلت امرها الیّ لاتزوجها فاشهدكم انی تزوجت المرأة التی جعلت امرها الیَّ علی صداق كذا فينعقد النكاح بينهما اذا كان الزوج كفواً لها فتاوی عالمگیری (۳۹٤/٦) .

فتاوی عالمگیری کتاب الحیل کښې دی : چه يو سړی يوې

ښځې ته د نکاح درخواست اوکړو، د ښځې هم زړه اوشو چه دده سره نکاح اوکړی، خو ښځه دا بده ګنړی چه ددې اولیاء (خپل خپلوان) ددې په نکاح باندې خبر شی، نو دې ښځې داسې کار وکړو چه همدغه سړې ئې د ځان وکیل جوړ کړو چه هغه ته ئې خپل اختیار ورکړو نو دا نکاح صحیح ده۔

اوس که سړې دا خبره بده ګنړی چه شاهدانو ته ئې نوم اوښائی نو دې باره کښې به حیله څه وی ؟ نو حیله دا ده چه کله ده د ښځې وکالت قبول کړو او په مهر کښې سره جوړ شو نو دا کس به ګواهانو ته راشی او هغوی ته به ووائی چه ما یوې ښځې ته د نکاح درخواست کړې وو، هغې راسره اومنله، مهر مې هم ورته مقرر کړې او هغې ما ته اختیار (د وکالت) راکړې چه زه ئې په نکاح کړم نو زه تاسو ګواه کوم چه ما دا ښځه په دومره مهر په نکاح کړه نو دا نکاح اوشوه چه کله دا سړې ددې ښځې کفو وی۔

## عجیبه فقه

**۷۱**- فتاوی عالمګیری کښې دی : رجل قال لامرأته ان لم یکن ذکری اشد من الحدید فانت طالق، لا تطلق لانه لا ینتقص بالاستعمال، کذا فی الخلاصة فی کتاب الطلاق ۔

یعنی یو سړی خپلې ښځې ته اووئیل که زما ذکر د اوسپنې نه کلك نه وی نو ته دِې طلاقه ئې، نو دده ښځه نه طلاقیږی ځکه ذکر د اوسپنې نه کلك دې ځکه چه اوسپنه په استعمال سره کمیږی او ذکر په استعمال سره نه کمیږی ۔

فتاوی عالمګیری (۱/ ٤۳٦) الفصل الثالث فی تعلیق الطلاق

۔ یا للعجب ولضیعة العقل والادب ۔

## د چا به ښائسته وی ؟

## یوه مشکله مناظره او د هغې حل :

۷۲- فتاوی عالمګیری کښې دی :

رجل قال لامرأته ان لم یکن فرجی احسن من فرجك فانت طالق وقالت المرأة ان لم یکن فرجی احسن من فرجك فجاریتین حرة قال الشیخ الامام ابوبکر محمد بن الفضل رحمه الله تعالی ان کانا قائمین عند المقالة برّت المرأة وحنث الزوج، وان کانا قاعدین برّ الزوج وحنثت المرأة، لان فرجها حالة القیام احسن من فرج الزوج وحالة القعود الامر علی العکس .

وان کان الرجل قائماً والمرأة قاعدة، قال الفقیه ابوجعفر رحمه الله تعالی : لا اعلم هذا قال وینبغی ان یحنث کل واحد منهما الخ ۔

یعنی یو سړی خپلې ښځې ته اووئیل : که زما فرج (عورت) ستا د عورت نه ښائسته نه وی نو ته دِې طلاقه ئې ۔ ښځې اووئیل : که زما عورت ستا د عورت نه ښائسته نه وی نو زما وینزه دِ آزاده وی نو شیخ امام ابوبکر محمد بن فضل وئیلی دی : که ددې وینا په وخت دواړه ولاړوی نو ښځه بری ده او سړے حانث دے او که دواړه ناست وی نو بیا سړے بری دے او ښځه حانثه ده وجه دا ده چه د ښځې اندام په وخت د ولاړه کښې زیات ښائسته وی د سړی د اندام نه او په حالت د ناسته کښې سړے ښائسته ښکاری د ښځې نه ۔

او که سړے ولاړ وی او ښځه ناسته وی نو فقیه ابوجعفر وئیلی دی چه ددې په باره کښې ما ته علم نشته صرف دا چه مناسبه ده

چه دواړه حانث شی ۔

مسلمانانو ورونو دا خبرے چه کومے مونږ اولیکلے نو دا د یو باعزته انسان په خوله نه راځی لیکن مونږ د دین د صفائی په نیت اولیکلے او دے دپاره چه زمونږ احناف ورونو ته معلومه شی چه زمونږ په فقه حنفی کښې ډیر بکواسات شته چه دا دین ګنړل ګناه ده بلکه د فقه حیثیت دا دے چه دا د علماؤ خبرو ته وائی نو کله به صحیح وی او کله به غلط نو دے وجه نه زمونږ ټولو مسلمانانو ته دا دعوت دے چه کتاب او سنت ته په هره مسئله کښې رجوع اوکړی ځکه په هغے کښې د هرے مسئلے حل موجود دے باذن الله تعالی چا ته معلوم وی او چا ته نه وی معلوم وفوق کل ذی علم علیم۔ لهذا مسلمانانو لره پکار دی چه ځان فرقو ته منسوب نه کړی چه څوك ځان ته حنفی وائی او څوك شافعی او څوك مالکی او څوك حنبلی او څوك بریلی او څوك دیوبندی او څوك نقشبندی او سهروردی او قادری او چشتی بلکه ټول دِ ځان ته محمدی وائی ځکه ددے فرقه پرستئ په وجه د مسلمانانو وحدت برباد شویدے او اسلامی خلافت دپاره لوئی رکاوټ فرقه پرستی ده ۔ الله تعالی دِے اوکړی چه پدے کتاب سره زمونږ ورونو ته د کتاب او سنت طرفته هدایت اوشی آمین یا رب العالمین ۔

تم بحمد الله وحسن توفیقه وسبحانك اللهم وبحمد اشهد ان لا اله الا انت استغفرك واتوب الیك ۔

* * * * *

| مضمون | صفحه |
|---|---|

